بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

دَ سکھانو خلاف غزاګانې

# حمونږ مجاهدين

(جلد اوّل)

مؤلف

عبدالحلیم اثرؔ افغانی

محکمۂ نشر و اشاعت قبائل حکومت پاکستان پېښور

# فهرست

# انتساب

دَ هغه غازیانو اوُ شهیدانو په نوم چه
چا دَ مسلمان قوم دَ ملک اوُ ملّت - وطن اوُ
دین اسلام دَ سرلوړيُ اوُ حفاظت په لاره
کښې په سر اوُ مال جهاد کړے دے اوُ دَ
جهاد په میدان کښې يې دَ شهادت
درجه حاصله کړے ده -

سیّد عبدالحلیم اثرؔ افغانی الحسینی

# دیباچه

الحمد لله رب العالمین والصلوٰة والسلام علی سیدنا محمد و آله و اصحابه اجمعین ۔ د پس له حمد او له صلوٰة نه زهٔ عاجز بنده سید عبدالحلیم اثر افغانی الحسینی عرض دا کوم چه په برصغیر پاک و هند د انګریزانو د سل کاله قبضے نه د راندے د مسلمانانو حکمرانی وه ۔ انګریزانو د مسلمانانو په جنګ حکومت اخستے وو ۔ په دغه مینځ کښے د سکهانو یو طاقت پیدا شوے وو ۔ هغوی هم د مسلمانانو په تباهئ کښے ناراستی نه ده کړے ۔ دربے انګریزان او د برصغیر هندوان د داره تل شول او د مسلمانانو په تباه کولو یے لاس پورے کړ ۔ د برصغیر پاک و هند مسلمانانو د انګریز په خلاف د آزادئ جنګ شروع کړ ۔ دا جنګ مختلف شکلونه وو ۔ د برصغیر په نورو حصو کښے سیاسی جنګ وو او د برطانوی هند په شمال مغربی سرحدی صوبه او قبائلی علاقو کښے مسلح جنګ وو ۔ پوره د سل کاله جد و جهد نه پس د برصغیر د مسلمانانو سیاسی جنګ د تحریک پاکستان په شکل کښے کامیاب شه ۔ د انګریزانو نه آزادی حاصله شوه ۔ برصغیر تقسیم شه او د مسلمانانو یو جدا خود مختار آزاد اسلامی حکومت پاکستان جوړ شه ۔ د برصغیر د مسلمانانو د سیاسی جنګ په کامیابئ د شمال مغربی سرحد په علاقو کښے پراته قبائیلی پښتانه او بهادر غازیان هم د انګریزانو د مسلح جنګ نه آزاد او خلاص شول پاکستان په سنه ۱۹۴۷ء کښے د سیاسی جنګ د ګټلو په ذریعه مسلمانانو جوړه کړے وو ۔ دربے اتلس کاله پس په سنه ۱۹۶۵ء چه هندوانو په پاکستان جنګ راوړ ۔ او مسلمانان په دشمن درپیوتل ۔ دشمن یے او ډهلو ۔ نو د

هغه درځې د پاکستان د تاریخ شکل بدل شه. نن ورځې پاکستان یو داسې ملک دے چې په سیاسی نظریه او سیاسی جنګ جوړ شوے دے. او د توره. همو او د جهاد په ذریعه محفوظ پاتے شوے دے. پاکستان په قیام کښې شوے دی په توره ئې حفاظت اوشه.

د دنیا د آزادو قومونو دا کار دی چې په توره د ملک، ملت او مذهب حفاظت کوی او په قلم باندے د خپلو قومی کارنامو یادونه ژوندی ساتی مسلمانان پیدائشی غازیان دی. که په برصغیر ئې زر سوه کاله حکومت کړے وو. هغه د توره کلکه دے او که د شمالمغربی سرحد قبائلی غازیانو د انګریز په شان جابر طاقت مقابله کړے ده او خپله آزادی ئې محفوظ ساتلے ده. هغه د توره برکت دے او نن چې د توره په برکت پاکستان د یو داسې مکرژن، فریبي، بې لوظه او تجاوز کوونکی دشمن نه محفوظ پاتے شوے دے.

پکار ده چې د هغه غازیانو د غزاګانو، خوانمردئ او بهادرئ د کارنامو یادونه د قلم په ذریعه تازه کړے شی چې په ۱۹۶۵ء کښې ئې توره وهلے دی او د دیرش ورسره د هغه بهادرانو. ننګیالو. توریالو غازیانو شاهکار یادونه هم تازه کړے شی چې د سکهانو، انګریزانو او هندوانو په خلاف ئې د ۱۹۴۷ء یعنے د پاکستان د جوړیدو نه مخکښې جهادونه کړی دی. ځکه چې ځما دا تالیف هم د دغه سلسلے یوه کړئ ده.

ځما دا کتاب دوه حصے دی. په اولنۍ حصه کښې د سکهانو په خلاف د غزاګانو حالات دی او په دویمه حصه کښې د انګریزانو په خلاف د غزاګانو حالات دی. د کترو دجوهاتوله مخه ما په دے کتاب کښې د ډیر اختصار نه کار اخستے دے. ځما غرض خپل قوم ته او خصوصاً نوے کهول او زیږے ته خپل زاړه افتخارات را د پاندے کول او د خپلو بهادرانو مشرانو د کارنامو یوه اجمالی خاکه په مخکښې کول دی چې د خپل قابلیت، استعداد.

د سالمو او آسانتیاګانو نه کار واخلی او د علمی او تاریخی لحاظ نه
پښتون حق ادا کړی. د خپلو مشرانو پېر افتخاره کارنامې را څرګندې کړی
او دُنیا ته ئې وړاندې کړی. د دې کتاب د مطالعې نه به معلومه شی
چې څنګه د مشرانو زمونږ د غیرت او بهادرئ او په دین اسلام باندې
د ځان او مال قربان کولو زمونږ وو. د وطن د حفاظت د پاره د مرګونو او
مرګیدلو زمونږ وو. دا ټه زمونږ د فخر زمونږ وی. راتلونکې نسل پرې فخر
کولی شی او په دې څخ سره د مشرانو د نقش قدم به زمونږ ساتلی شی.
په دې کتاب کښې چې کوم واقعات او حالات مونږ بیان کړی دی. د
ډیرو ماخذونو او تاریخی حوالې هغه دی چې د هغه زمانې انګریزانو او
هندوانو لیکلی دی او ډیرې هغه هم دی چې د هغه زمانې مسلمانانو
عالمانو مؤرخانو ـ ادیبانو او شاعرانو لیکلی دی. د دشمن فریق چې کوم
حالات بیان کړی دی. په هغې کښې مبالغه ډیره زیاته ده. په دې وجه
زما کوشش دا دی چې د هغې رښتینولی د مسلمانانو مؤرخانو د بیان په
رڼا کښې اوکړلی شی. مونږه په دې خپل کتاب د بعض غزاګانو د بیان په
ضمن کښې د بعض مشهورو غازیانو حالات هم په اختصار سره بیان
کړی دي. په دې خیال چې کوم پښتون لیکوال به په دې خاص موضوع تحقیق
کړی او کتاب به اولیکی. د دې کتاب د ماخذونو فهرست په آخر کښې
درج کړلی شو. کومو رونړو چې د دې کتاب په تالیف کښې زما سره امداد
کړیدے د هغوی هم مشکور یم. اُمید دے چې زما دا کوشش مقبول شی.
والحمد لله رب العالمین ۵

# پس منظر

په سنه ۱۷۹۸ / ۱۷۹۹ مطابق سنه ۱۲۱۳ کښې د شاه زمان درانی د طرف نه
د یو فرمان په ذریعه رنجیت سنګه له د راجه خطاب ورکړې شه اؤ په
لاهور (پنجاب) باندې د مستقل ریاست حکمران او منلې شه په دغه
زمانه چې په لاهور د رنجیت سنګه قبضه وه. په دهلی د انګریزانو قبضه وه
رنجیت سنګه ته د دوه طرفه خطره وه. د مغرب له طرفه د افغانانو نه
اؤ د مشرق له طرفه د انګریزانو نه. دغه شان انګریزان هم د کابل د درانی
بادشاهانو نه په خطره کښې وو اؤ انګریزانو غوښتل چې په پنجاب کښې دې د
سکهانو یو مضبوط طاقت موجود وی. چې د افغانستان افغانان اؤ پښتانه
د هندوستان د مسلمانانو په امداد کښې جهاد له رانه شی.

دغه سیاسی مصلحت په وجه د مهاراجه رنجیت سنګه اؤ لارډ لیک
ترمنځه په یوه معاهده دستخطونه اوشول اؤ دا فیصله اوشوه چې رنجیت سنګه
به د دهلی په طرف حرکت نه کوی. او انګریزان به د سکهانو د مقبوضه
علاقو سرحدونو طرف ته حرکت نه کوی. دا عهد نامه په سنه ۱۸۰۹ء
مطابق سنه ۱۲۲۳ه کښې عملی شوې ده. چې سکهانو ته د انګریزانو د طرف
نه اطمینان حاصل شه. نو د سرحد په طرف ئې جارحانه اقدامات
شروع کړل اؤ د موقع په تلاش کښې شول.

(۲)

په سنه ۱۸۱۱ء مطابق سنه ۱۲۲۶ه کښې د کشمیر ګورنر عطا محمد خان کابلې

دَ افغانستان دَ درانی حکومت نه باغی شه۔ دَ کابل بادشاه، شاه محمود درانی
خپل وزیر فتح محمد خان (چه دَ امیر دوست محمد خان بارکزائی رور دۀ) کشمیر
ته اولیږلو، چه دغه بغاوت ختم کړی۔ وزیر فتح خان چه دَ اباسیند نه
پورے ووت۔ نو راجه رنجیت سنګه دِرله جواب را اولیږلو۔ چه دَ کشمیر
دَ فتح کولو دَ پاره به زۀ هم دَ خپل فوځ سره ستا ملګرتیا اوکړم۔ دَ فتح نه روستو
دَ کشمیر په مال غنیمت کښے به دریمه حصه ځما دی۔ په دے شرط باندے
رنجیت سنګه خپل سپه سالار محکم چند، دَ فتح محمد خان دَ امداد دَ پاره
اولیږلو۔ لیکن دَ محکم چند دَ را رسیدلو نه وړاندے وزیر فتح خان بیا
ته رسیدلے دۀ او په تول کشمیر یئے قبضه راوستلے وه۔ په دے وجه فتح خان
وزیر اونکړه رنجیت سنګه له یئے دریمه حصه مال غنیمت ورکولو نه انکار
اوکړو۔ رنجیت سنګه را روان شه په اټک یئے حمله اوکړه۔ په اټک باندے
په دغه ورځو دَ عطا محمد خان کابلی رور جهانداد خان ګورنر وو۔
عطا محمد خان په کشمیر کښے بغاوت کړے وو۔ لیکن وهلے شوے وۀ۔ بیا خوا
ته جهانداد خان دَ عطا محمد خان رور وو۔ دَ خپل رور مرسته یئے په دے
جوړ اوکړه چه دَ رنجیت سنګه سره یئے ساز باز اوکړو۔ او دَ اټک قلعه
یئے په غیر دَ جنګ نه رنجیت سنګه ته حواله کړه۔

(۳)

فتح محمد خان وزیر لا په کشمیر کښے وو۔ دَ اټک قلعه چه سکهانو له
په لاس ورغله نو دَ فتح خان وزیر کابل ته دَ واپس کیدلو لار بنده شوله
خپل رور امیر دوست محمد خان ته یئے سوال جواب اوکړو چه په اټک قلعه
حمله اوکړی او لار صفا کړی۔ امیر دوست محمد خان راغے۔ په اټک یئے
حمله اوکړه۔ قلعه یئے فتح کړه۔ دَ سکهانو فوج په شا اوزغلیدۀ۔ دَ چچ په
علاقه کښے دَ حضرو په مقام دَ سکهانو دَ فوځ سپه سالار خپل طاقت

را جمع کړ۔ د امیر دوست محمد خان د بیرغ لاندے چه کوم غازیان وو، د هغوئ سره یې جنګ شروع کړ۔ د سکهانو فوځ شکست اوخوړ۔ مسلمانانو ته فتح حاصله شوه۔ لیکن د بد قسمتئ نه غازیان د مال غنیمت په لوټ اؤ تالان مشغول شول چه دوئ غافله شول۔ سکهانو بیرا اوخوړ حمله ئې اوکړله۔ اؤ په دے جوړ کټلے میدان د مسلمانانو د لاس نه اووتلو۔ شکست یې اوخوړ۔ د دے شکست نتیجه دا شوه چه د اټک قلعه هم د مسلمانانو د لاس نه لاړه۔ امیر دوست محمد خان کابل ته واپس شه۔ په اټک د سکهانو قبضه شوه۔ د سکهانو حوصلے اوچتے شوے۔ د علاقه چچ اؤ علاقه هزاره په طرف یې حملے شروع کړے۔ دا واقعات په ۱۸۱۳ء مطابق ۱۲۲۸ھ کښے پیښ شوی وو۔

(۴)

په ۱۸۱۴ء مطابق ۱۲۲۹/۱۲۳۰ھ کښے د رنجیت سنګه له طرف نه سردار هکما سنګه د اټک (علاقه چچ) اؤ هزاره د پاره ګورنر مقرر کړے شه۔ دا سپه سالار ډیر سنګدل۔ ظالم اؤ بے رحمه وو۔ د دے ظالم سکه سردار چه د خپلے ګورنرئ په زمانه کښے د چچ اؤ هزاره په علاقه کوم ظلمونه کړی دی۔ هغه د بیان د حد نه بهر دی۔

د ۱۸۱۴ء نه روستو چه د سکهانو سره د

علاقه هزاره مسلمانانو کوم جهاد ده کړی دی۔ اؤ د علاقه هزاره د مختلفو قومونو اؤ قبائیلو کومو قبائیلی سردارانو چه پکښے نمایان کردار ادا کړے دے۔ د شهادت درجه ئې حاصله کړے ده۔ څرنګ چه دا واقعات پیښ شوی دی۔ په هغه تاریخي ربط اؤ تسلسل سره په اختصار سره یوه تاریخي جائیزه یې پیش کوُلے شی۔ غرض ترینه

دادے چه څومره نوی کهول ته معلومه شی چه د پښتون قوم مشرانو د دين اسلام د سربوليئ د پاره اؤ د اسلام عزت اؤ ناموس د حفاظت د پاره څومره شاندارے قربانۍ کړے دی۔

د سنه ۱۸۱۸ء نه تر سنه ۱۸۲۶ء پورے په پکنه هزاره۔ پېښور۔ بنوں وغيره کښے نيازمه د سکهانو په خلاف غزاګانے کيدلے۔ په سنه ۱۸۴۰ء کښے څنے انګريزان فوځی افسران د سکهانو د فوځ د سرلښکرانو په حيث ميدان ته راغلی وؤ او بيا هغوئ خان له خپل فوځونه هم بهرتی کړی وؤ۔ لکه د مردان کائيډ پلټن شوه۔ چنانچه د سنه ۱۸۴۶ء نه تر سنه ۱۸۴۹ء پورے په هزاره اؤ وادئ پيښور کښے د انګريزانو اؤ سکهانو دواړو خلاف غزاګانے کيدلے۔ اؤ چه کله په سنه ۱۸۴۹ء کښے د سکهانو اقتدار ختم شه اؤ ميدان پرنګی ته پاتے شه نو بيا د پرنګی اؤ پښتنو ترمنځه د غزا سلسله شروع شوه۔ البته په کوهاټ، بنوں۔ ډيره اسماعيل خان کښے انګريزانو ته د سکهانو نه اقتدار په سنه ۱۸۴۵ء کښے منتقل شوے وو۔ اؤ په دغه علاقو کښے د انګريزانو اؤ پښتنو جنګونه په سنه ۱۸۴۶ء کښے شروع شوی وؤ۔

# د اټک غزا

په سنه ۱۱۶۰ھ مطابق سنه ۱۷۴۷ء کښے چه په مقام د قندهار لوئ احمد شاه بابا ابدالی" په لويه جرګه کښے بادشاه کړے شوے وؤ۔ په دغه جرګه کښے د پښتنو د نورو کنړو قبيلو سرداران هم موجود وؤ چه يو په هغوئ کښے د بارکزئ قبيلے مشر اؤ قبائلی سردار حاجی جمال خان نوميده۔ د حاجی جمال خان کتر ځامن وؤ چه په هغوئ کښے يے د مشر ځوئ نوم سردار پائنده خان وؤ۔ د دے سردار پائنده خان شل ځامن وؤ۔ په دوئ کښے د يو څو ځامنو نومونه

یې په دې غرض دلته لیکلې شي چې روستو د سکهانو او انګریزانو په خلاف په غزاګانو کښې د دوئ نومونه ډیر ځل یادیدلې شي او د سکهانو په خلاف چې د اټک په مقام کومه اولنئ غزا شوې وه د هغې سره یې هم تعلّق دې. د دغو یو شو سردارانو رونړو نومونه دا دي :-

سردار فتح محمد خان المعروف په وزیر فتح خان، سردار محمد عظیم خان، محمد جبیم خان، دوست محمد خان، پوردل خان، کهندل خان. یار محمد خان سلطان محمد خان. پیر محمد خان. سید محمد خان. بیا وروستو په دوي کښې پوردل خان او کهندل خان په قندهار وو. عظیم خان او دوست محمد خان په کابل وو. او یار محمد. سلطان محمد. پیر محمد. سید محمد خلور واړه رونړه په پیښور. محمد عظیم خان او محمد جبیم خان څه زمانه په کشمیر وو،

دا ټول رونړه د احمد شاه ابدالي. د هغه د ځوئے تیمور شاه او بیا د تیمور شاه د ځامنو محمود شاه - شاه زمان. شاه شجاع په زمانه کښې برسر اقتدار وو. او په خصوصیت سره په دوي کښې سردار فتح محمد خان د سدوزئ خاندان د حکمرانئ په زمانه کښې وزیر وو. په دې وجه په وزیر فتح خان نامه یادیږي. په سنه ۱۸۱۱ء کښې دے د شاه محمود سدوزی وزیر وو.

مخکښې دا ذکر شوے دے چې په سنه ۱۲۲۶ھ مطابق سنه ۱۸۱۱ء کښې چې عطا محمد خان کابلي په کشمیر کښې بغاوت کړے وو. نو د هغې شورش ختم کولو د پاره کشمیر ته تلے وو او بیا په هغې کښې کامیاب شوے وو بیا د هغې نه روستو چې په سنه ۱۸۱۳ء کښې چې لا سردار وزیر فتح خان په کشمیر کښې وو او مهاراجه رنجیت سنګه په اټک قلعه باندې حمله اوکړله او د دغه قلعه یې قبضه کړه نو د وزیر فتح خان ورور امیر دوست محمد خان د کابل نه راغے. په سکهانو یې حمله اوکړله. ذاتی ک نه یې ترحضرو پورې اوزغلول لیکن د مسلمانانو په بې تدبیرئ کتلے جنګ او بایللے شه. او سکهان بیا په اټک قلعه باندې قابض شول نو وزیر فتح خان په سنه ۱۸۱۳ء کښې خپل ورور سردار محمد عظیم خان په کشمیر کښې خپل نائب الحکومت

پېښور - پخپله دَ کشمیر نه را روان شه - په اټک قلعه یې حمله اوکړله - سکهانو
له یې شکست ورکړ - دَ اټک نه پورې ووت - پېښور ته ورغې دلته دده دوه نور
رونړه یار محمد خان او پیر محمد خان په پېښور ناست وو - دے پخپله کابل ته
لاړ - هم په دغه سنه ۱۸۱۳ کښې مهاراجه رنجیت سنګه یو ځل بیا په اټک حمله
اوکړه او قلا یې قبضه کړه -

په سنه ۱۸۱۵ کښې مهاراجه رنجیت سنګه په کشمیر حمله اوکړه - چه دَ
سردار محمد عظیم خان نه کشمیر اونیسي - دے بهادر پښتون سردار یې سخته
مقابله اوکړه او سکهانو له یې شکست ورکړ - لیکن مشکلات ورته داپېښ
دو چه دَ کشمیر او کابل ترمنځه دَ اټک قلعه دَ سکهانو په قبضه کښې وه -
کشمیر ته دَ کابل او پېښور نه امداد نه شه رسید لے - په دغه وجه په
سنه ۱۲۳۳ مطابق سنه ۱۸۱۸ کښې وزیر فتح خان دوباره دَ اټک دَ قلعه دَ
فتح کولو دَ پاره په سکهانو حمله اوکړه - مهاراجه رنجیت سنګه دَ وزیر فتح خان
دَ مقابلے دَ پاره جرنیل غوث خان او دیوان محکم چند سره دَ فوځ نه راولیږل -
پیاده - سواره فوځ او توپخانه ورسره وه - خونړے جنګ اوشه - لیکن دَ
بدقسمتۍ نه دَ افغانستان دَ سدوزي او بارکزي دوا په خاندانونو ترمنځه
دَ بې اتفاقۍ په وجه دَ اټک قلعه په محاذ دَ جهاد په میدان کښې مسلمانانو
غازیانو ته کامیابي حاصله نه شوه - ځکه چه وزیر فتح خان اګرچه دَ سکهانو
فوځ له شکست ورکړ - لیکن ورپسے سمدستي کابل ته ستون شه او دَ رسیدلو
سره هم په دغه سنه ۱۸۱۸ کښې دَ افغانستان امیر شاه محمود خان سدوزي
دده خپل نامور وزیر نه اول سترګے اوکښلے او بیا یې مړ کړ - ددے افسوسناکو
واقعاتو نتیجه دا شوله چه هرکله دَ افغانستان دده با اقتداره خاندانونه
بارکزي او سدوزي په کورکښې اوغښل - نو سکهانو ته لاره اوزګاره شوه
او هم په دغه سنه ۱۸۱۹ کښې دَ سکهانو ناپاک قدمونه وادي پېښور ته

راشریک شول۔

دا واقعه دا سې پېښه شوه چه هرکله په کابل کښې د افغانستان د امیر شاه محمود سدوزي د لاس نه وزیر فتح خان قتل شه۔ نو د هغه د بدل اخیستلو د پاره سردار محمد عظیم خان د کشمیر نه روان شو او پر ځائې ئې سردار محمد جبیم خان گورنر مقرر کړ۔ د دې خوا نه د کشمیر نه د سردار محمد عظیم خان وتل وو۔ او د هغه خوا نه ورپسې د مهاراجه رنجیت سنګه په کشمیر حمله سمه وه۔ سردار جبیم خان ئې مقابله اوکړه مګر شکست ئې اوخوړه ځکه چه د نوځ څه حصه د سردار محمد عظیم خان سره کابل ته تللې وه۔ رنجیت سنګه چه کشمیر اونیولو نا راستې ئې او نه کړله۔ بیا ئې د آټک قلعه قبضه کړله۔ او ورپسې په اول ځل د اټک په سیند پورې دوت وادئ پېښور ته داخل شه لکه چه مخکښې ذکر او شه دا تول د سنه ۱۲۳۴ھ مطابق سنه ۱۸۱۸ء واقعات دي۔ یو پښتون مؤرخ وادئ پېښور ته د سکهانو د مهاراجه رنجیت سنګه د راتللو تاریخ په دې جمله کښې بیان کړیدے۔

راغے (۱۲۱۱) کچ (۲۳) [۱۲۱۱ + ۲۳ = سنه ۱۲۳۴ھ] = سنه ۱۸۱۸ء]

د وزیر فتح خان د مرګ واقعه اګرچه د افغانستان د برسر اقتدار خاندانونو د خپل اندرونی کشمکش سره تعلق لري۔ لیکن افسوسناکه اثر ئې دا وو چه د دې واقعې په پېښېدلو په وادئ پېښور باندې د سکهانو د پاره د عمل دخل قائم کولو لار آسانه شوه۔ وزیر فتح خان یو بهادر او نومیالے غازی ځوان وو۔ چې ترڅو هغه ژوندے وو، سکهانو په اباسیند د پاسه پورې و تلو همت او جرأت نه شو کولے۔ وادئ پېښور ته د راتللو نه اول سکهانو په کشمیر کښې د پښتنو د درانی خاندان حکومت ختم کړے وو۔ چه څه وخت پېښور ته ئې هم پښې را اوغزیدے۔ نو خو ځلې ئې ار چتې شوے او د پښتنو خصوصًا ابدالی خاندان د مختلفو حکمرانانو په خلاف په ځلور محاذونو د جنګ تابیا ئې اوکړله۔

(۱)

دَ پېښور په محاذ چې دلته دَ سردار محمد عظیم خان او وزیر فتح خان کوم درې
رونړه سردار سلطان محمد خان. سردار یار محمد خان او سردار پیر محمد خان
مقامي طور حکمرانان وو. دوی زور او طاقت کم کړی. دَ خپل ماتحت او
باجګذار حکمرانانو په شکل یې اوساتی. خپله بالادستي یې قایمه کړې. او په
وادی پېښور کښې چې کوم نور طاقتور قبائل دي. لکه یوسفزي، محمدزي،
خلیل، مهمند. داؤدزي شول. ددې قبائیلو دَ قومي سردارانو زور هم
مات کړی او دریمې دَ خټک قوم په علاقه درستي.

(۲)

په ملتان ډیره غازي خان. میانوالي، عیسی خیل کښې چې دَ ابدالي او
سدوزي خاندان کوم حکمرانان دي. لکه نواب مظفر خان دَ ملتان حکمران
وغیره شول چې دَ معنوي طاقت ختم کړی او دغه پوره ته ذکر شوې علاقې
او نیسي -

(۳)

دَ کوهاټ. بنون. ډیره اسماعیل خان علاقې هم تالاندې کړی. په
ډیره اسماعیل خان کښې دَ سدوزي خاندان دَ یوې کورنۍ حکومت وو. په
بنون کښې هم دَ سدوزي خاندان دَ خپلوانو او رشته دارانو اقتدار وو.
دَ هغې ختم کول یې په دې وجه ضروري ګڼل. چې چرته صبا له دا اداره
داره طاقتونه راجمع نه شي او دَ سکهانو دَ ظلمونو جواب او نه کړی.

(۴)

په هزاره کښې هم دَ پښتنو دَ ترین، جدون، سواتي او یوسفزي نومې
قبیلو خلق آباد وو. په دې کښې په ترین، سواتي، مشواني، یوسفزي
خلو روار قبیلو کښې طاقتور قبائلي سرداران موجود وو. دَ دوی ختم کول یې

هم ضروری او کنټرول - چې د پېښور او لاهور ته څه خطره پاتې نه شي - دد ے سیاسي پس منظر په رڼا کښې د ۱۸۱۸ء نه وړ ستو چې سکهانو په پورته ذکر شوؤ غلورو وارو محاذو لوکوم اقدامات کړي دي - په اختصار سره به ترتیب وار په هغې بحث اوکړو .

(۵)

لکه چې مخکښې ذکر اوشو . هرکله چې په ۱۲۳۴ھ مطابق ۱۸۱۸ء کښې . سکهانو په پېښور ښهر قبضه اوکړه او د خیبر ته غرونو پورې او دسیدل نو اګرچه په د ے مزکه باندې مستقله قبضه یې او نه کړله . علاقه یې لوټ او تالا کړله - یار محمد خان یې په طور د باجګذار حکمران پرېښودو او واپس شو - لو د واپسئ نه روستو په ۱۲۳۵ھ مطابق ۱۸۱۹ء کښې یې په بنوں حمله اوکړله - د بنوں خلق په خېلو کورنو اختلافاتو او جګړو کښې اخته وو - چا یې مقابله او نه کړله او په ټول ملک یې قبضه اوکړله - اګرچې ملک یې ونیولو لیکن څرنګ چې پکار وو څه خاص انتظام یې نه وو - پرله پسې ناظمان (ګورنران) به یې راتلل - او په زور زیاتی چې څه به یې وصول کوو لے شول هغه به یې یوړل - بیا به واپس شول - دغه حالت د ۱۸۴۶ء پورے هم دغه شان جاري وو - په د ے آخري کال سردار دلیپ سنګه په بنوں حکمران وو - چې جرنیل کورټ لینډ او کرنل ایډورډس بنوں ته راغلل او ورپسې په ۱۸۴۹ء کښې په د ے ملک د فرنګي قبضه راغلله - د ۱۸۱۹ء نه تر ۱۸۴۹ء پورې په پرګنه بنوں باندې د سکهانو او غازیانو ترمنځ چه کومې جګړې شوې دي - د هغې بیان به روستو په خپل خپل ځای راشي

# سردار محمد خان ترین

سردار محمد خان ترین د سردار نجیب الله خان ترین خوئے او
د سردار همت خان نمسے وو۔ او په اووم پشت کښے بره د ملک کدائی خان
ابن ملک درویش خان نوسے کیده۔ سردار درویش خان په ۱۰۷۹ھ مطابق
۱۶۶۸ء کښے د شهنشاه دهلی اورنگ زیب عالمگیر بادشاه په زمانه کښے
د (موجوده تحصیل هریپور) په حدودو کښے واقع موضع درویش آباد
کړے وو۔ د دے کلی ابادی د هریپور ښهر د ابادئ نه سوونه کاله
وړاندې د ۱۶۶۸ء د زمانے ده۔ او موجوده هریپور ښهر په ۱۲۳۸ھ
مطابق ۱۸۲۲ء کښے آباد شوے دے۔ د سردار درویش خان پلار سردار
شیرخان په ۱۰۴۱ھ مطابق ۱۶۳۱ء کښے د شاهجهان بادشاه په فوځ
کښے لوئ نامور سپه سالار وو۔ د هغه پلار بوستان خان ترین په ۱۰۳۰ھ
مطابق ۱۶۲۰ء کښے د هزاره په علاقه کښے د ترین قوم مشر قبائلی سردار وو
د دے خاندان مورث اعلیٰ هارون خان ترین وو چه په ۵۹۸ھ کښے د
شهاب الدین محمد ابن سام غوری سره د دهلی په فتح کښے ملګرے وو۔ او
د هغے نه روستو د خپل ترین قوم د غازیانو سره د خپل اصلی وطن پښین
په ځائے په پرګنه چچ او هزاره کښے پاتے شوے او آباد شوے وو۔ او په
علاقه چچ کښے هارون نومے کلے د هغه د نوم یادګار دے۔

د محمد خان ترین پلار نجیب الله خان په ۱۱۷۶ھ مطابق ۱۷۶۲ء کښے د
علاقه هزاره حکمران وو۔ او په ۱۲۱۴ھ مطابق ۱۷۹۹ء کښے وفات شوے وو۔ د
هغه نه پس په ۱۲۳۳ھ مطابق ۱۸۱۸ء کښے محمد خان ترین د خپلے قبیلے
مشر او قومی سردار او ټاکلے شه۔ او دا نامور سردار په خپله زمانه ډیر لوئ
مجاهد تیر شوے دے۔ په خپل کم عمر کښے او د قبائلی سردار په حیث د

قوم دَ مشر منتخب کیدلو نه روستو په لږه موده کښې چه دَ سکهانو په
خلاف ئې کوم شاندار غزاګانې کړې دی دَ هغې یاد به دَ تاریخ په پاڼو
تل تر تله باقی پاتې وی۔

دے نامور مجاهد په اول سر په سنه ۱۸۱۹ء کښې دَ جهاد بیرغ پورته کړے
وو۔ او تر سنه ۱۸۲۸ء پورے نهه کاله دَ جهاد په میدان کښې په تور و وهلو
یئې ډوند نیر کړ۔ په سنه ۱۸۲۸ء کښې دا نامور "ترین سردار" چه دَ سکهانو په
بند پریوت او په سنه ۱۸۱۹ کښې دَ نظربندئ په حالت کښې په زهرو شهید
کړے شه۔ نو دَ جهاد کارنامے ئې دنیا ته یادګار پاتې شوے ــ ـ ـ د سنه ۱۸۱۹ء
نه تر سنه ۱۸۲۸ء پورے پر نهه کاله زمانه کښې چه دے ترین سردار کوم
غزاګانې کړې دی۔ دلته سلسله وار دَ هغه غزاګانو حال په اختصار سره
درج کول مناسب ګڼړو۔ دَ شجاعت داستان دے۔ راتلونکے نسل پرې فخر کولے
شی۔

## (۱) دَ کلهیرئ غزا

هر کله چه په سنه ۱۲۱۴ھ مطابق سنه ۱۷۹۹ء کښې سردار نجیب الله خان وفات شه
نو دَ ده ځوئې محمد خان ورکوټے وو۔ دَ سردار نجیب الله خان مرحوم کونډه
چه بی بیګم نوم ئې وو۔ هغې دَ محمد خان دَ ځلمی توب پورے دَ خپل جائداد
او حکومت دَ کار چلولو دپاره په سنه ۱۲۲۰ھ مطابق سنه ۱۸۰۵ء کښې ملک مشرف
ګوجر خیل مختار عام مقرر کړ۔ بیا چه په سنه ۱۲۳۳ھ مطابق سنه ۱۸۱۷ء کښې محمد خان
ځوئے دَ سردار نجیب الله خان ځلمے شه نو دَ ترین قبیلے مشران راغونډ
شول او محمد خان ته ئې په حیث "دَ ترین سردار" دَ مشرئ پټکے په سر کړلو او
دَ هغې د ورځے نه دَ ده دَ قومی ملکی او مذهبی خدماتو دَ شروندیو نوے باب
شروع کیږی۔

سردار محمد خان ترین د خپل زوړ کلي کوټ نجیب الله نه پورته شه په
کل ډهیرئ نومې مقام کښې استوګن شه - سنه ۱۲۳۳ھ (۱۲۳۴) مطابق سنه ۱۸۱۷ء (۱۸۱۸) کښې د
مانګرا نومې مقام د یو قبائلي سردار هاشم خان ترک دلاسه خپل هم عصر
قبائلي سردار کمال خان ترک او وژلې شه - د کمال خان ترک ځوئ فتح خان
کمزورې وو - د خپل پلار د مرګ بدل ئې نه شه اخیستلې - د پښتون قوم د رواج
مطابق فتح خان د مانګرا نه راغې - په محمد خان ترین پورې ئې پناه او نیوله
په دغې باندې محمد خان ترین ورسره د پښتنو د دستور مطابق ملاتړ اوکړ -
چه د فتح خان د پلار بدل واخلي - لښکر ئې اوکړ په مانګرا ورغې - هاشم خان
ئې په زور د مانګرا نه بې دخله کړو - او کلي ئې فتح خان ته اوسپارو -

هاشم خان ترک چه شړونې شه - د خپل سرویره ئې مله شوه -
ملک مشرف کوچرله ورغې چه ملاتړ ورسره اوکړي، لیکن ملک مشرف د دې
نه وړاندې د محمد خان ترین د ریاست سربراه پاتې شوې وو - نمک ئې خوړلې
وو - په محمد خان ترین پسې د ملاتړ کولو او هاشم خان ترک له د امداد ورکولو
نه ئې انکار اوکړو - د دغې نه روستو هاشم خان ترک "سرائے کالا" (ټیکسلا) ته
ورغې د هغه ځائې فوجدار سردار مکهن سنګه ته ئې خواست اوکړ، چه امداد ورسره
اوکړي او د سردار محمد خان ترین نه ورله بدل واخلي - سردار مکهن سنګه
ورسره د امداد وعده اوکړله - د راولپنډئ د فوجدار سردار جیون سنګه
نه ئې اجازت واخیست او په سنه ۱۲۳۵ھ مطابق سنه ۱۸۱۹ء کښې د سکهانو د یو
منظم فوځ سره د خانپور په لار د پرګنه هزاره علاقې ته داخل شه - سردار
محمد خان ترین د سکهانو د دې حملې نه بې خبره وو - کومه تیاري ئې نه وه کړې
د سکهانو فوځ په کل ډهیرئ حمله اوکړه - خونړې جنګ اوشه - د کل ډهیرئ
کلي د سکهانو دلاسه اوسوزیده - بیا سکهان ورله تدې شول - په مقام د "شاه محمد"
ئې فوجي قلا جوړه کړه - بخشي مهنګراج ئې د مالیه وغیره د وصولئ د پاره -

په دغه قلا کښې مقرر کړ. او په خپله سردار مکهن سنګهو واپس "سرائے کالا" ته راغی. سکهانو د دے ملک خلقو ته حکم اوکړو، چه خپل پیداوار نیمه حصه به سکهانو ته اداکوئ او سردار محمد خان ترین ته به هیڅ شے نهٔ ورکوئ او نه به ورسره څه تعلق ساتئ. سکهانو په خپل خیال کښې په دے طریقه سره د ترین حکمرانانو د موروثی ملکیت ختم کولو کوشش اوکړ. او یل خوا د محمد خان ترین چه په هرڅومره علاقه خانی او سرداری وه هغه د سکهانو په قبضه کښې راغله او په دے جوړه "د ګل ډهیرئ غزا" د غازیانو د پاره په نوی عزم میدان ته د راتلو د پاره محرک اوګرزیده چه د ګل ډهیرئ د شکست بدل واخلی.

## (۲) د قلعه شاه محمد غزا

په ۱۲۳۶ھ مطابق سن ۱۸۲۰ء کښې دا انتظام اوکړ چه د واهئ هزاره علاقه ئے د حسن ابدال او اټک سره یوځای کړه او په دے درېواړه علاقو ئے د پرګنه چهچ او هزاره نوم کیښود. مرکزی مقام ئے اټک مقرر کړو. او سردار حکما سنګهو ئے د پرګنه چهچ هزاره د نظم او نسق د انتظام د پاره مقرر مقرر کړو. د علاقه هزاره مرکزی مقام په دغه ورځو "سرائے کالا" (ټیکسلا) وو د سردار حکما سنګهو له طرفه د علاقه میدان هزاره د تحصیلدارئ کار د سرائے کالا فوجدار مکهن سنګهو ته حواله کړے شه. چه څه وخت مکهن سنګهو تحصیلدار شه نو سمدستی ئے د سردار محمد خان ترین وغیره قبائلی سردارانو او عامو پښتنو باشندګانو نه مالیه طلب کړله. محمد خان ترین د مالیه ورکولو نه انکار اوکړو. سردار مکهن سنګهه خپل زور او طاقت ته غاوړ وو. د دے نه وړاندے ئے د ګل ډهیرئ په غزا کښې محمد خان ترین له شکست ورکړے وو. په دغه وجه سمدستی ئے د هزاره په میدانی حصه حمله اوکړله. مخکښې د دینه سکهانو د ناله دوړ په غاړه د موضع شاه محمد په مقام یو

فوځي قلعه جوړه کړې وه. چنانچه په دې نوې حمله کښې د سردار مکهن سنګه فوځونه په غیر د څه مشکلا نو هلته اورسېدل. بل خوا ته هرکله چه د سردار محمد خان ترین خېل کلي کمل وهېرئ په وړاند بیئنئ غزا کښې سوزېدلے وو په دغه وخه دے په یو بل کلي سکندرپور کښې اسټرګن وو. څه وخت چه دے د سکهانو د حملے او په مقام د قلعه شاه محمد سکهانو د فوځ ډېره کېدلو نه خبر شه نو د تربګ - دلا زاګ - ترین - ګوجر وغیره خواؤشا قبائیلو لښکرونه راجمع کړه او غازیانو د یو فیصله کن جنګ د سپاره په قلعه شاه محمد باندې حمله اوکړله. غازیان بریالی شول - سردار مکهن سنګه پکښې اووژلے شه - په مقام د شاه محمد چه د سکهانو کومه فوځي قلعه وه هغه ئې وران نه کړله. بے شمېره سکهان ئې قتل کړل او چه کوم د مرګه بچ شوی وو هغه ئې تر دې حده اوزغلول چه غازیان وړسې وو. او دوئ په هغې کښې وو - په سرائے کالا (ټیکسلا) او حسن ابدال کښې ئې هم ساه راګښلو ته پرے نښودل په وهلو وهلو ئې ان تر اټک قلعه پورې اورسول.

# د موهړاوجاګل غزا

(۳)

په مقام د قلعه شاه محمد د غازیانو د لاسه د سردار مکهن سنګه چه د قلعه اټک صوبیدار حکما سنګه خبر شه او د دغه جنګ نه چه کوم سکهان فوځیان بچ پاتے شوی او په تېښته ټوندی تر اټک پورې راورسېدلی وو هغوئ ورته د خپلے عبرتناکے تباهئ حال بیان کړو. نو سردار حکما سنګه په غیر د څه تاخیر نه د هزاره په میدانی حصه د لښکر کشئ حکم جاری کړ. او په خپل کمان کښې ئې یو درونډ فوځ داخیست روان شه چه سردار محمد خان ترین له سزا ورکړی.

سردار حکما سنګه د هزاره په میدانی علاقه کښې د ناله هرو په غاړه په مقام

دَ موتھراو سلطان پور باندے پربوت - منظم فوځ ورسره وو - مورچه بندئ ئے شروع کړه - بل خوانه دَ سردار محمد خان ترین قبائلی لښکر وو چه دَ ترین دلازاک - سید خانی - او طاهر خیلی - علی زی - اتمانزی - مشوانی - گوجر - گرپال - ترک وغیره قبایلو په غازیانو مشتمل وو -

دَ موهړي په مقام جنګ اونښت - تود شه - ورپسے قدم په قدم خور شه - نخکښے لاړ - دَ جاګل مقام تر او رسیده - په قومی ننګ او غیرت دَ اسلام په مینه او دَ ایمان په جذبه سرشاره غازیانو چه جوش اخستی وو سره شوی وو - دَ الله اکبر چغه ئے پورته کړه - تورے ئے او زلقولے - تیزے ئے وربرابر کړے یرغال ئے اوکړ - چپاوُ ئے ورووړ - په سکهانو ور پریوتل - تورے ئے پرے کیښودے - په نیزه کښے ئے واخیستل - په پیش قبضو کښے ئے اوتومبل - لا ندے باندے ئے واچول - دَ سکهانو دَ درنګو انبادونه ئے اولګول - په ټیغ میدان کښے دغه سردار حکما سنګه ئے مړ کړ چه ډیر بهادر یادیده - او ډیر ظالم هم وو - غازیانو دَ سپینو تورو په خرپهار دَ خپلے مړانے او بهادرئ نخے اوچتے کړے او دَ ظالم حکما سنګه دَ ظلم خاتمه ئے اوکړه دَ جاګل په دے غزا کښے دَ سکهانو دَ فوځ نه څه ډیر لږ کسان به ژوندی پاتے شوی وو - دغه په تیښته لاړل اټک ته ئے ځان اورسولو -

# سعد الله خان سید خانی

دَ موتھرا او جاګل په دے تاریخی غزا کښے چه دَ سردار محمد خان ترین سره کوم نامور قبایلی سردار دَ زیاتے مړانے او شجاعت نه کار اخیستے وو - ډیر امداد ئے کړے وو، دَ هغه نوم خان سعد الله خان وو چه په قسام سید خانی وو - علی زی - اتمانزے - مندنړ یوسفزے وو - او دَ هزاره دَ میدانی علاقے کهلابټ او سید ونکے وو - او په دے غزا کښے ئے دَ علی زی قام دَ دوه

مشهورو قبیلو طاهرخیلی[1] او سیدخانی[2] دَ خلقو او غازیانو رهنمائی کوله ـ په تاریخی اعتبار سره داد ۱۲۳۶ھ مطابق سنه ۱۸۲۰ء دَ کال واقعات دی ۔ دَ سعد الله خان تذکره به روستو راشی

## دَ کنکر غزا (۳)

سردار حکما سنگهو په سنه ۱۲۳۰ھ مطابق سنه ۱۸۱۴ء کښې دَ مهاراجه رنجیت سنگهو دَ طرف نه دَ اټک صوبیدار شوے وو او ورپسے په سنه ۱۲۳۶ھ مطابق سنه ۱۸۲۰ء کښې دَ پرگنه چچ او هزاره لوئے صوبیدار او حکمران مقرر کړے شوے وو ۔ داسکهو سپه سالار ډیر زیات سنگدله بے رحمه او ظالم وو ۔ دَ پرگنه چچ او هزاره په خلقو ئے بے انتهاء ظلمونه کړی وو او په دغه وجه په عوامو کښې په سردار "حکما سنگهو ظالم " نامه مشهور وو ۔ که چرته دَ مرتهم او چاکئی په غزا کښې داظالم سردار دَ محمد خان ترین دلاسه وژلے شوے نه وے نو معلومه نده چه دَ پرگنه چچ او هزاره قومونه او قبائیل به دَ څومره درد ناکو عذابونو ښکار شوی وے ـ هم داوجه ده چه یوخواته دَ غازی محمد خان ترین په دے شاندار ه کامیابئ او فتح یابۍ دَ هزاره او چچ مسلمانانو دَ خدائے پاک شکریه ادا کړه ـ خوشحالئ ئے اوکړلے ـ نوبل خواته دَ سکهانو دَ فوځ په دے عبرتناک شکست او دَ "حکما سنگهو ظالم" په مرګ په خالصه دربار کښې ماتم جوړ شه ـ مهاراجه رنجیت سنگهه ددے خبر په اوریدلو سره ډیر خفګان او پریشانی ښکاره کړه او دَ سردار غازی محمد خان ترین نه دَ بدل اخیستلو او په پرگنه چچ او هزاره باندے دوباره دَ خپل اقتدار قائم کولو دَپاره ئے په هم دغه کال سنه ۱۲۳۶ھ مطابق سنه ۱۸۲۰ء کښې دَ مرکزی ښهر لاهور نه خپل تجربه کار جرنیل رام دیال او دَ هغه دَ امداد دَپاره یوبل مشهور جرنیل کرنل الهٰی بخش دَ یو لوئے فوځ سره چه په پیاده فوځ رساله او توپخانه باندے مشتمل وو ـ په هزاره باندے دَ حملے کولو دَپاره روا اولیږه

د سکهانو د افوځ په شمیره کښې د میړو او ملخونه زیات وو. څه وخت چه "سرائے کالا" (ټیکسلا) ته را ورسیده. او د دے حال نه سردار محمد خان ترین او د هغه زمانے نور ترین سرداران لکه - - - - - - - - -
- - - - - - - سردار حسین خان ترین. سردار خداداد خان ترین او سردار نجف خان ترین او دغه شان نور بے شمیره قبائلی سرداران خبر شول نو دے قبائلی سردارانو په خپل منځ کښې جرګه اوکړله او فیصله دا اوشوه چه د هزاره په میدانی علاقه کښې د سکهانو د دے مضبوط فوځی طاقت مقابله کرانه ده. پکار ده چه د هزاره میدانی علاقه خوشے کړلے شی. او په غرنیزه علاقه کښې کوم یو غر د مقابلے کولو د پاره خوښ کړے شی. د میدانی علاقے ټول مسلمانان غازیان په هغه غر کښې مورچه شی او د سکهانو سره د غزا تابیا اوکړی - چنانچه د مرکے نه پس د دے غرض د پاره د ګنګر غر خوښ کړلے شه.

## کوه ګنګر

ګنګر د هغه غرهٔ نامه ده چه د حسن ابدال د شمال مشرق نه شروع شی د میدانی علاقے په لویدیز قطبی لویدیز او قطبی ارخونو تاؤ شی او د تربیله په مقام ختم شی - ځرنګ چه دریائے سندهو د یوسفزو د ضلع مردان علاقه او د وادی چهچ ضلع کیمبل پور علاقے سره بیلے کړی دی - دغه شان د ګنګر نوے غر بناخونو د چهچ او هزارے علاقے د بیړیل نه جدا کړی دی د دے غر سوئیل طرف ته د ضلع کیمبل پور علاقه ده - قطب طرف ته ئے د امب ریاست د ختیز طرف ته ئے د هزارے میدان دے او لویدیز (مغرب) طرف ته ئے د چهچ او یوسفزو علاقه ده. د دے غر شکل او جوړښت قدرتی طور د مورچے په شان دے - پکښې د چیړ او دیار د ونو ګڼړ او ګور ځنګل دے. دا غر چه هغکښې لاړ شی نو دوه بناخونه شی - چه ابتداء ئے د سری کوټ د مقام نه کیږی. دا تاریخی

کلے دَ دواړو بناخونو جدا کیدلو په رسا ترخ کښې دے۔ دَ کوه گنگر دَ یو بناخ سلسله چه غنڅکښې لاړه شی په تربیله ختم شی او بل بناخ چه ختیځ (مشرق) طرف ته تاوشی په نارگاه نومے تاریخی مقام ختم شی۔ ییښے نارگاه نومے مقام دَ کوه گنگر دَ یوے پښے په آخری مشرقی سرحد باندے اباد دے۔ دَ گنگر نومے غرپه شاخونو کښې دَ منډنړ یوسفزی قام دَ علی زی نوم قبیلے دَ دوه بناخونو طاهرخیلی او سید خانی قبیلو خلق آباد دی۔ دَ تربیلے په علاقه کښې دَ سپین ترین قوم خلق اباد دی۔ په سری کوټ کښې دَ تربیله ترپښې پورے مشوانی اباد دی۔ دَ نارگاه په علاقه کښې خاص طور سید خانی اباد دی۔ دَ دوئ نه علاوه ترک۔ گوجر او کرېال خلق هم دلته اوسیږی او په دے اعتبار کوه گنگر دَ ټولو قبائلو یوه مشترکه محفوظه مورچه وه او په اتفاق دے محفوظے مورچے ته رابهرتل چه دَ سکهانو دَ لښکر مقابله په ښه شان اوکړے شی۔

هرکله چه دَ سکهانو دَ جرنیل رام دیال او کرنل الٰهی بخش او دَ مسلمانانو دَ قومی مشر محمد خان ترین دَ نوخونو او لښکرو ترمنځه دا تاریخی غزا دَ نارگاه په مقام شوے وه په دے وجه دَ "گنگر غزا" په نوم یاده شوه۔

سردار محمد خان ترین او نورو قبائلی سردارانو دَ سری کوټ په مقام لښکر جمع کړ۔ دَ سید خانی۔ طاهرخیلی نومے یوسفزی قام خلق دَ مشوانی نومے قام سیدان ترک۔ دلازاک۔ گوجر۔ کرېال قومونو ځوانان دَ سپین ترین او تور ترین۔ جدون۔ ځلمی۔ کاکړ او تاجک او داسے دَ نورو شمیره وړو لویو قبیلو غازیان دَ خپلو خپلو قبائلی مشرانو دَ بیرغونو دَ لاندے په پوره ایمانی جوش او دَ پښتون قوم دَ تاریخی ننگ او غیرت په جذبه راولاړ شول او دَ کوه گنگر هر اړخ نے مورچه کړ۔ دَ کملابټ خان سعد الله خان سید خانی هم دَ میدانی علاقے نه راپورته شوے وو۔ په سری کوټ پروت وو۔ سید

نور هم د مشوانی د مشوانی قبایلو رهنمائی کوله - ملک شیخا جدون په
میدان کښې ولاړ وو - حسن علی کرلال د خپلې قبیلې د غازیانو په مخکښې وو -
د امازی - مدازی حسن خیل لښکرې د ستهانې د سید اکبرشاه په
مشرۍ کښې په اباسینډ راپورې وتلې وې او مورچه ئې نیولې وه - مطلب
داچه غازیانو ورته ښه تابیا کړې وه - او ملا تړلې ښه وو -

بل خواته دیوان رام دیال او کرنل الهی بخش چه د پرګنه هزاره
میدانی علاقې ته راننوتل نو هیچا ئې لار او نه نیوله - مزاحمت ئې او نه
شه - او په دې چوربنه په پاړه دره د کوه ګنګر په مشرقی بنانغ کښې
په پوله باندې واقع تاریخي مقام نارګاه ته راورسیدل - په عامو روایتونو
کښې د نارګاه د نوم سره د ناړه نومې ځائې نوم اخیستلې شی - لیکن داد وېم
ځائې دے - او د کلابټ او نارګاه ترمنځه پروت دے - د دې غزا په
سلسله کښې د ناړه نوم ځکه اخیستلې شي چه څه وخت د سکهانو فوځ د
کلابټ نه مخکښې شه او د ناړه مقام ته اورسیده نو غازیانو ورته لاس
واچولو - په دغه ورځو کښې بیا نو ټوپکدار ټوپکونه پیدا شوی او رواج ئې موندلے
دے - د غازیانو په اولنی صف کښې دشمن ته مخامخ د مشوانی سیدانو غلمی پراته
وو - د ټوپکدار ټوپکونو ګولئ ئې په دشمن اوورولې - ټوپکدار ئې هم خطا
نه تللو - په اولنی باړ چاړلو ئې د دشمن پیشقدمی بنده کړله -

په دې موقع غازیانو ته په فوځی نقطه نګاه سره دا بالادستی حاصله
وه چه سکهان په ژوره کښې وو - په غره ورختل او غازیان ورته په لوړو مورچو
وو چه کوم پوسکو فوځی به په پورته قدم بدلولو ګولئ به ئې په سینه خوړلے
وه - او بیکته ناترین ته به ګذار شوے وو - سکهانو خپلانو که هرڅومره
کوشش اوکړه - خپلو فوځی سردارانو ورته غیرتونه ورکول مګر د غازیانو
مورچو ته په ورختلو او رسیدلو کښې کامیاب نه شول -

دا خونړیز جنګ ټوله ورځ جاري وو - د ناړه په کندو او نالو کښې
د سکهانو دومره لاشونه انبار شول چه سلي تربینه جوړ شول او د ددې په
مقابله کښې چونکه مسلمانان د اوچتو ځمکو او سنګرو څواته پراته وو - په
حفاظت کښې وو -

په دې وجه ډیر لږ مسلمانان پکښې شهیدان شوي وو - په دې ډول جنګ
بیه په زور او شور کښې جاري وو - چه ورځ راډوبېده مازیګر شه - د مازیګر
د مانځه په وخت کښې غازیانو د الله اکبر نعره پورته کړه - توري ئې او کښلې
او د سکهانو په ترځ ور خوشي شول - دا یو ډیر انتهائي خونریز لاس په لاس
او سینه په سینه جنګ وو - د پښتون قوم د سینه په سینه جنګ منظر چه چا
په خپله ترون کښې لیدلے وی هغه ئې اندازه لګولے شي چه دا څومره د
بهادرۍ او شجاعت جنګ وی - یو پښتون غازی څلې چه په دښمن ر ذټوپ
کړی لکه د زمری پرے او غرمبیږی - په توره - پیش قبضه او چاړه کښې
ئے اوتړومی - د دغے منظرے مثال نه پیدا کیږی - د یو طرف نه د الله اکبر
نعرے او د بل طرف نه د ست سری اکال چغے وے - د تورو پرقهار او
شرقار وو - اوازونه، نعرے او سورې وے چه د ناړه په کندو او د ناړګاه
په نالو کښې کړنګیدلے - د دواړه طرفه حملو نا راسته او نه کړه - سکهانو
هم ښه مړانه ښکاره کړه او غازیانو شاه حملوهم د شجاعت او جوانمردۍ
جوهر او ښودو - د دواړه طرفه ډیر شمیره جنګیالی ځوانان مړه شول -
دیوان رام دیال چه په انتهائی جوانمردۍ سره تر اخر وقت پورے په خپله
هم جنګیده او خپل فوځ له ئے هم شاباسے ورکولو - د غازیانو حملو په ګیره
کښې ګیر شه - غازیانو په تورو کښې واخیست - مړشه - او دیوانځے رام دیال
نه بلکه د دهٔ نه علاوه بے شمیره نورو سکهان افسران هم په تورو ټکړے
ټکړے شول - سکهانو شکست اوخوړ - د جهاد په میدان کښې غازیانو فتح

بیرغ لګ کړ۔ مال غنیمت په لاس ورغے۔ د سکهانو خالصه دربارچه د سکهانو د دے عبرتناک انجام نه خبرشه ماتم ئے اوکړ۔ او د سردار محمد خان ترین هیبت پرے نور هم سوا شه۔ فکر ورته واخیستل۔ سید محمد نور شاه مشرانی په دے غزا کښے شهید شوے دے۔

## (۵) دناړه کاله غزا

ډکنګر" په غزا کښے چه سکهانو تباه کوونکے شکست اوموندو او مشهور جرنیل رام دیال ئے پکښے قتل شه۔ نو مهاراجه رنجیت سنګه د بدل اخستلو دپاره په سنه ۱۲۳۷ مطابق سنه ۱۸۲۱ کښے سردار امر سنګه مجیتهه او سردار پهولا سنګه بهادر اکالی نوشے دوه بهادران جرنیلان منتخب کړل۔ یو لوے فوځ ئے ورکړ او د پرګنه پنج او هزاره د نهم سرکولو دپاره ئے د لاهور (پنجاب) نه هزارے ته راواستول۔

سردار امر سنګه مجیتهه پوهه۔ ذهین او بااثره سړے وو۔ د فوځی اقداماتو سره سره ئے د سیاسی تدبر نه کار واخیست۔ حکمت عملی ئے داوه چه په تلاره تلاره قدم په قدم وړاندے کیږي۔ او چه د علاقه هزاره په میدانی علاقه کښے ئے خپلے پښے مضبوطے کړے نو هاله د کوه ګنګر په مشرقی شاخ باندے اباد ناړه کاله نومے مقام ته وروړاندے شه۔ د جنګ په ګواخ کښے شه۔ بل خواته مسلمانان غازیان د وخته د دے حملے په پوهه وو۔ تیارے ئے کړے وو۔ د خوا وشا نه قبائلی غازیان رارسیدلی وو۔ پخے مورچے ئے جوړے وے۔ غازیانو داخل دناړه په مقام د دشمن په فوځ بلوسه اونه کړله۔ لار ئے ورکړله چه نور هم تنګے ته راوړاندے شي۔ هرکله چه د دشمن فوځونه د ناله هرو د پیسے معاون تالے (سنور) چه په ناله سمندر (سمندر کټهه) نامه مشهوره ده۔ هغے نه راپریوتل

نوغازیانو پیرے لاس پورے کړ. په داخل د غازیانو د لښکر په اولنی
صف کښې د کرېال او د هوند قبیلو ځلمیان جنګیدل - حسن علی کرېال
ئې مشر وو. جنګ تود شه - لاس په لاس او سینه په سینه جنګ او نخت
غازیان د سکهانو په فوځ ور ادختل - دواړه سکهان جرنیلان سرېلر سنګه
مجیتهیه او سردار پهولا سنګه اکالی د غازیانو په تورو قطرې قطرې شول
تاله سمندر یعنی سمندر کښته شه وو - د دوی د باره د تباهئ سمندر دریاب
شه - په دے شان سره مسلمانانو غازیانو ته په دے غزا کښې هم
شانداره کامیابي او فتح حاصله شوه - هرکله چه د دے غزاګانو سر د
غازی محمد خان ترین نه نخته وو - نو دا کامیابي د هغه په نوم شوه - او
د هغه د نوم نه په خالصه دربار کښې په هر یو سکه سردار باندے هیبت
پریوت او سکهان ئې په لړزان کړل -

# دفریب دام

د خالصه دربار سرکرده جرنیل امر سنګه مجیتهیه چه او وژلے شه نو
د غه نه روستو مهاراجه رنجیت سنګه د پرګنه چچ او هزاره د مهم سرکولو
دپاره په فکر کښې پریوت چه څه اوکړی - آخر دا چه د دے مهم دپاره
ئې سردار هری سنګه نلوه منتخب کړ - دے یو بهادر خلے جرنیل وو. په ۱۲۲۲ھ
مطابق ۱۸۰۷ء کښې د هری سنګه د بهادرئ کارنامے رنجیت سنګه پخپله
سترګو لیدلے وے - او د هغه بهادرئ د کارنامو په وجه ئې ورله د "سردار"
خطاب هم ورکړے وو - هری سنګه په ۱۲۰۶ھ مطابق ۱۷۹۱ء کښې پیدا
شوے وو او چه په ۱۲۳۷ھ مطابق ۱۸۲۱ء کښې مهاراجه رنجیت سنګه
د هزارے په مهم د ده د لیږلو فیصله اوکړه نو د غه وخت د ده عمر فقط
دیرش کاله وو - د دا دے نوجوانئ په عمر کښې د سردار محمد خان ترین په شان

بهادر او تجربه کار مجاهد اسلام د مقابلې د پاره د سردار هری سنګه نلوه
د انتخاب باعث داوو چه د دے نه مخکښې هری سنګه نلوه د قصور
په جنګ کښې چه په هغو ورځو کښې د دۀ عمر هیڅه پیله شپاړس کاله
وو- د نواب قطب الدین خان قصوری افغان په رنګه بهادر او
تجربه کار غازی په خلاف جګړه کښې ئې د ډیر شجاعت او جوانمردئ
مظاهره کړې وه او هغه بهادری ئې د رنجیت سنګه په سترګو کښې
وه- لیکن د دے ټولو خبرو باوجود چه هری سنګه نلوه یو بهادر جرنیل
وو- هر کله چه د مهاراجه رنجیت سنګه د غوږ ته ئې د سردار محمد خان
ترین د مقابلې د پاره د ټللو خبره واوریده- نو بې اختیاره لړزان پرے
راغے- ځکه چه د سردار محمد خان ترین د لاسه د دۀ وړاندے ګڼر
اعلیٰ اعلیٰ تجربه کار او افسرانو نه یواځې داچه شکست خوړلے وۀ- بلکه
د مرګ په لاره لیږلی شوی وو- لکه سردار حکما سنګه- دیوان رام دیال
سردار امر سنګه مجیټهه وغیره قبول- چه د هغوی د تجربې او بهادرئ په
مخکښې هری سنګه نلوه ته هیڅ ځان ډیر معمولی ښکاریده-

مهاراجه رنجیت سنګه چه د هری سنګه دا حالت اولیده نو فکر
واخیست او ډیر فکرنه پس ئې د مکر او دهوکې یو تجویز په خیال او
دماغ کښې راغے- په هغې ئې عملدرامد شروع کړو- مونږ د رنجیت سنګه
د عمدګی تجویز ته "دام فریب" ویلے دے- دا یو داسے دام وو چه په دے
کښې ئې د سردار محمد خان ترین د ګیرولو تابیا کړے وه-

## د مائی سدا کور مهم

د مهاراجه رنجیت سنګه د مکر او فریب د دام غوړولو واقعه داسے
وه چه هر کله د هری سنګه د ویرے او خوف نه مخبرشه چه د هزارے

تللو ته نه جوړېږي. اوبل داسې تجربه کار بهادر جرنیل ورسره نه وو.
چه دا سخت اوخطرناک مهم ئې ورته حواله کړے وے نو تجویز ئې دا اوکړو
چه خپل ولی عهد کنور شیر سنګھ او خپلې خوانېې ماۍ سداکور له ئې یو لکړه
اولوی فوځ ورکړو. او د هزارے مهم ئې ورته حواله کړو. ماۍ سداکور داسې
کار اوکړو چه د توپے او ټوپک په ځای ئې د زرشا سندے او غوړے
پیسې ژبے او نرمو خبرو وسله د ځان سره واخیستله. قربان ځما
ښځې. زارشم ځما خویه وینا ئې شروع کړه او مخکښې روانه وه. دېرکنه
هزاره د میدانی علاقے نه درېپے ورتېره شوله. د اباسین په غاړه
تربیله ته اورسیدله. دلته دیره شوله. یو ه قوتی قلا ئې جوړه کړله
غازیانو ورته کتل. تماشه ئې کوله. محمد خان ترین سربلند خان
تنولی. شاه محمد مشوانی او داسے نورکمزرقبائلی سرداران لا خوازه شوی
نه وو. د کنګر په بناخونو کښې ئې مورچې وهلې وے پرانه وو. "ماۍ سداکور"
په تربیله کښې د خوږو خوږو تیزو ولو نه پس د خپل عیارانه او شاطرانه
چالونو مزے نور هم اوبه دکړو. خوله ئې دومره خوږه کړه چه سردار
محمد خان له په دهوکه ورکولو کښې کامیابه شوه. او په قابو کښې ئې
راوست. "ماۍ سداکور" اولګیده. په محمد خان ترین ئې خطاب کیښوده
"شیر بچه" [د زمری بچے] خو ورځې پس ئې جشن جوړ کړو. او اعلان ئې
اوکړو چه سردار محمد خان ترین ما خپل ځوی نیولے دے. ماته داسے کران
دے لکه سکه ځوئے او بچنیل ځوی نیولو په دغه خوشحالۍ کښې بیوه دستوره
هم اوکړه چه په هغې کښې د سردار محمد خان ترین رنګ رنګ تعریفونه
اوقدردنه اوشول. په دغه پیسې ماۍ سداکور داسے کار اوکړو چه د
سری کوټ په مقام کوم قبائلی سرداران موجود وو. لکه محمد خان ترین
سعد الله خان سید خانی. سربلند خان تنولی. فتح خان ترک، شاه محمد

مشوانی وغیره داتول ئے دَچرکو مرکو په فریب دَملاقات په بهانه
را اوغوښتل۔ دَ دوئ ترمنځه درے ورځے خبرے اترے اوشولے۔ او
هغه محمدخان چه دَجنګ په میدان کښے ئے دَ سکهانو دلاسه شکست
نه وو خوړلے۔ دَمائی سداکور دَ فریب په دام کښے ګیر شه۔ مائی سداکور
پرے جال داتول کړ او په اعتبار باندے ئے دَ ځان سره لاهور ته
بوتللو۔ هلته ئے دارومدار اوشه۔ دَ شل زره روپئ سالانه جاګیر
ورکولو وعده ورسره رنجیت سنګهه اوکړه چه په آرام به کښینی دښمنی
اوجنګونه به پریږدی دے جاګیر به اخلی او په آرام به عمر تیره وے۔

بیا چه څه وخت سردار محمدخان ترین ئے دلاهور (پنجاب) نه
را رخصت کولو نو سردار محمدخان ترین یواځے نه وو۔ بلکه سردار هری سنګهه
نلوه ئے ورسره ملګرے رالیږلو۔ او دَ هری سنګهه نلوه سره یو مضبوط
طاقتور او لوئ فوځ موجود وو۔ په داخل هری سنګهه نلوه په چاپه زړه
راروان وو۔ ځکه چه دَهغه ویره خو دَ محمدخان ترین نه کیدله او هغه
دَ دوئ په خیال دَمائی سداکور دَفریب په دام کښے ګیر شوے وو۔ او
بورے دَپاسه دَمهاراجه رنجیت سنګهه له خوانه دَشل زره روپو
سالانه جاګیر په پیشکش خوشحاله معلومیده۔ نو بیا ویره دَڅه شی وه

## (۴) دسری کوټ غزا

دَسردار هری سنګهه په ملګرتیا کښے چه دَلاهور (پنجاب) نه
سردار محمدخان ترین واپس هزاره ته راغے او دَ راتلو سره سم هری سنګهه
نلوه دَهزاره په میدانی علاقه کښے دَترین قوم دَ تاریخی کلی درویش
سره نزدے دَ "هرکشن ګړه" په نوم یوه مضبوطه فوجی قلا جوړول
شروع کړل [دا قلعه هرکشن ګړه هغه مقام دے چه دَخپل بانی هری سنګهه

د نوم په مناسبت سره نن ورځې په "هری پور" نامه یادیږی او د یو
تحصیل صدر مقام دے] نو داسے معلومیږی چه سردار محمد خان ترین
د سکهانو د مکر او فریب په حکمت عملئ پوهه شه ځکه چه حصار نه شه
او نوراً خپل زایه سرغالی ته یعنی د کوه گنګر خپلے زړے مورچے ته ئے
ځان اورسولو - چه هلته ټول قبایلی سرداران د خپل اولسی او قبایلی لښکرو
سره لاهغه شان پراته وو او په ځان د سردار محمد خان ترین خپل سکه
رونړه عزیزان هم هغه شان هلته ډیره وو - البته یو کار ئے کړے وو
چه کله سردار محمد خان ترین د مائ سدا کور د فریب په دام کښے گیر شه
او په رضا صلا ورسره لاهور ته لاړ- نو د کوه گنګر قبائیلو د امازئ د
علاقے د ستهانه نوے کلی سید اکبر شاه بادشاه صاحب چه ترمذی سید
وو - د حضرت پیر بابا علیه الرحمة نمسے وو هغه ئے د جهاد امیر کړے وو
بل خواته هر کله چه سردار هری سنګهه نلوه د سردار محمد خان ترین
سره منګرے راغلے وو په دغه وجه سمدستی بلوسه پرے او نه شوله -
هری سنګهه د دغه مهلت نه فائده واخیسته او د وادئ هزاره په
میدانی علاقه کښے ئے د "هرکشن ګړهه" په نوم یوه مضبوطه فوځئ قلاد
درویش نوے کلی خواته جوړه کړله - لیکن چه په دغه دوران کښے سردار
محمد خان ترین د ګنګر غرو ته او خوت نو سکهانو دا خیال اوکړ چه سردار
محمد خان ترین بدګمانه شه - یقیناً چه څه فساد به ورته سازکړی - بکارده
چه د کوه ګنګر په محفوظ مقام کښے د ژوند کولو او د غازیانو د جمعیت
راغونډ ولو موقع ورله ورنکړے شی - چه په حمله کښے وړاندے نه شی
بله دا چه غالبًا سردار هری سنګهه خیال کولو چه د محمد خان ترین
لاهور ته په تللو او د مهاراجه رنجیت سنګهه سره په لیدلو کتلو او د شل
زره روپو جاګیر ورکړے کیدلو په واقعه به پښتانه قبایل د دګانه خفه

شوی وی - او په قبائلو کښې به ئې هغه پخوانی اثرورسوخ نه وی پاتے شوے - او دا خیال ئې په دے وجه به هم پیدا شوے وی چه دَ محمد خان ترین په غیر موجودګئ کښې قبائلو په سید اکبرشاه باچا صاحب دَ بادشاهئ دعا خیر کړے وه - چنانچه په دغه رنګ وجوهاتو دَ سردار محمد خان ترین دَ لانجے غوښتلو دپاره ئې داموزونه اوګڼڵه چه په غیر دَ تاخیر نه ئې په کوه ګنګر حمله اوشی - چنانچه دَ دے قسم خیالاتو او قیاسونو په سبب د ۱۲۳۸ھ مطابق ۱۸۲۲ء په آخر کښې سردار هری سنګهـ نلوه دَ کوه ګنګر په علاقه دَ حملے دپاره روان شه - خونړی جنګونه اوشول - غازیان ئې په شاړو تښتول او سکهانو په داړی او سری کوټ قبضه اوکړله - غازیانو بیرے بیا چپاؤ اوکړ - سکهان ئې دَ داړی او سری کوټ نه بے دخله کړل - په شائے اوزغلول - او دَ ناړه په مقام دَ جنګ میدان ګرم شه - لکه چه مخکښې ورته اشاره شوے ده - ناړه نومے مقام دَ سری کوټ په رسالاره کښې دے - دلته یوه فیصله کن او له حده زیات خونړے جنګ اوشه - هری سنګهـ نلوه شکست اوخوړ - دَ سکهانو دَ فوځ لویه حصه دَ غازیانو دَ تیرو تورو خوراک شه - بواځے دَ ناړه په میدان کښې په شمار پنځه سوه ۵۰۰ سکهان مړه پراته وو چه توپ بیرو ورځو تجبیرمارغانو اوګیدړانو بیرے مزے کولے - دَ سری کوټ - داړی - نارګاه په کندو او نالو کښې چه کوم سکهان مړه پراته وو - د هغې خو هډو شمار نه وو -

## (۷) دَ هرکشن ګډه فتح کول

سردار هری سنګهـ نلوه دَ پرګنه هزاره په میدانی علاقه کښې پخپله قلا هرکشن ګډه کښې ترخو مودے پورے اوسیده - لیکن دوباره ئې به محمد خان ترین څه غم غرض اونه کړ - پینځه ئې ورسره واته چوله - به

سنه ۱۲۴۳ھ مطابق سنه ۱۸۲۷ء کښې پېښے دَ شیدو دَ جنګ نه یو کال پس هری سنګهو نلوه خپل دوه[۲] ځامن ګوردت سنګهو او[۳] آسا سنګهو اکالی په خپل ځائ په قلعه هرکشن ګډه (هریپور) کښې دَ خپل نائب الحکومه په طور بانده پرېښودل - او په خپله دَ ډېره جات په مهم پسے روان شه -

دَ سردار محمد خان ترین ځوی سردار غلام خان ترین - سردار سعد الله خان سید خانی یوسفزائے - سردار سربلند خان تنولے - سید صالح مشوانی دا ټول مشران په دغه وخت په کوه ګنګر او سری کوټ کښې وو - په سید اکبر شاه بادشاه صاحب پسے ئے جواب اولیږه - غازیان را ټول شول - دسری کوټ کهلابټ - تهپله - تربیله - غازی - سمهل کمنړ - جاګل - کوټ نجیب الله سری - ډهینډه - بادو - قمایه - هری پور - پکهلئ - مانسهره - امازی حسن زی - مدا زی - ګدون - صوابئ وغیره خوا وشا علاقو ترین - سید خانی طاهر خیلی - مشوانی - ترک - سرخیلی - اخون خیل - سواتی - کړاړ - دلازاک وغیره قبیلو غازیان را جمع شول - په قلعه هرکشن ګډه (هری پور) ئے حمله اوکړله - په سکهانو ئے قتل عام شروع له تیغه ئے تیر کړل - دَ هری سنګهو نلوه دواړه ځامن په قلعه کښې دننه چرته پټ شول - پته ئے اونه لګید له -

یل خوا ته چه دَ پرګنه هزاره په کومه کومه علاقه کښې چه دَ سکهانو فوځ پروت وو - دَ دغه ځائ مقامي غازیانو پرے حملے اوکړلے - په سکهانو ئے قتل عام کړ کړه - بے شمېره سکهان ئے مړه کړل - او دَ سکهانو په قلا ګانو ئے قبضه اوکوله - په شنکیاری - رش - نواں شهر - مانسهره کښې مقامي غازیانو دَ خان حبیب الله خان سواتي په مشرئ کښې دَ سکهانو قلا ګانے اونیولے او ټول ئے دَ خانپور راجه غلام علیخان کړال (ګکهړ) دَ سکهانو په قلا بانده حمله اوکړه - فوځ ئے قتل کړ او دَ دغوئ ساز و سامان ئے لوټ او تالا کړ - دَ سربلند خان تنولی یو بهادر ځوئ وو - شیر محمد خان نوم ئے وو

صفت ئې داوو- چه د تورپک کولئ ئې کله خطانه ده تللې. نامتو نغښسه ولیشتونکے وو- هغه سکهانو ته مورچه اوېوله- په شنکرئ وغیره ځلاګانو کښے چه هرڅومره سکهان وو- یوهم ترینه بچ نه شو- په بیل بیل ئې کولئ سرے کړلے- غرض داچه په دے طریقه سره د پړکنه پچ اوهزاره غیرتیانو اوبهادرانو مسلمانانو په ۱۸۲۶ء کښے د پړکنه هزاره په علاقه کښے د سکهانو د اقتدارخاتمه اوکړله اوخپل ایمان ئې پرِ تازه کړ-

# دهزاره توریالی قبائل

د پړکنه پچ اوهزاره په علاقه کښے چه کوم قبائل اباد دی- اودسکهانو په خلاف ئې غزاګانے کړی دی- دغه توریالو اوننګیالو قبایلو نومونه لیکل مناسب معلومیږی چه د بهادرئ د کارنامو دیاد سره د دغه قبائلو نومونه هم یادګار پاتے شی. نومونه دادی-

تړین[1] - یوسفزی[2] - رسید خانی[3] (وطاهرخیلی[4]) جدون[5] - ترک[6] - دلازاک[7] کوجر- ډهونډ[8] - سواتی[9] - دیشان[10] - نغمانی[11] - سرخیلی[12] - کبری[13] - جهانګیری[14] ارغشان[15] - مکال[16] - ازنالی[17] - مندراوی[18] - رباطی[19] - دوال[20] - پنجهیرال[21] پنجغول[22] پنجکول[23] - شلمانی[24] - شرور[25] - اشلور[26] - نرور[27] - بلاسوری[28] - خانخیل[29] - باجوری[30] درنسیال[31] - جلنکیال[32] - چرجاځ[33] - شموړی[34] - بیکال[35] - متراوی[36] - بیبال[37] - اشرال[38] دتیال[39] - کیلاں[40] - پیاتی[41] - شامکوړی[42] - تنولی[43] - بلغادری[44] - کاکاخیل[45] سادات ترمذی[47] -

# نورے غزاګانے

دلته داوضاحت ضروری دے - چه مونږه داغزاګانو دحالاتو بیان په هغه ترتیب سره کول غواړو چه دسن - کال او تاریخ په لحاظ

سره غرنګ دا واقعات پیش شوي دي. هرکله چه سکهانو په وادي پچ او هزاره او وادئ پیښور پرشان حملے کوولے - چرته دپاندے او چرته دوستو نو په دغه وجه دَ وادي پچ او هزاره دَ ښځو نورو غزاګانو او دَ دے علاقے دَ بعض مشهورو غازیانو حالات او واقعات به دَ تاریخ او زمانے په ترتیب سره روستو بیان کړے شي - اوس مونږه دَ هغے غزاګانو حالات بیانول غواړو چه دَ سکهانو په خلاف په وادئ پیښور کښے شوے دے. او په هغے پسے روستو بیا به دَ هزارے دَ بعض غزاګانو حالات بیان کړو.

# امیر سید اکبر شاه، ترمذی

دسکهانو په خلاف چه دَ مارګلے کندو او دَ خیبر دَ غابښي ترمنځه په پرګنه پچ هزاره او وادي پیښور کښے کوم جهادونه شوي دي په هغے کښے یو اهم تاریخي شخصیت او مجاهد اعظم "امیر جهاد" سید محمد اکبرشاه ترمذي وو. دا نومیال او توریال غازي په قام باندے حسني او حسیني سیّد وو - دَ بونیر دَ پیر بابا علیه الرحمة نمسے وو. دَ اباسیند نه نمر پریواته طرف ته دَ آمازي په علاقه کښے په ستهانه نومے ځائے کښے په ملکا نومے کلي کښے اوسیده - چونکه په خانداني لحاظ سره هم لوئ سړے وو. دَ ضلع هزاره دپکهلئ. کاګان - تنول - او دغه شان دَ سوات - بونیر - سمه تول بااثره او دَ اقتدار خاوندان سیدان دَحضرت پیربابا دَ اولاد خاندان دے. په دے وجه په پښتنو قبایلو کښے ئے ډیر قدر او عزت کیدے شي. جهاد او غزا کول او په اسلام ننګ کول دَ دے پښتو رخاندان لوے تعریف دے. سید جمال الدینؒ افغاني چه یو ډیر لوے تاریخي شخصیت تیر شوے دے - او سید اکبر شاه دَ ملکا دواړه نژدے رونړه وو. زمانه ئے یوه وه. سید اکبرشاه بادشاه صاحب

د پرګنه هزاره په تولو غزا کانو کښې شامل وو ـ څه وخت چه په ۱۸۲۱ء
کښې سردار محمد خان ترین د سکهانو د فریب په دام کښې ګیر شوے وو ـ
لاهور (پنجاب) ته تلے وو نو د کوه ګنګر په مقام د قبائلو د لښکرو په یوه
لویه جرګه کښې سید محمد اکبر شاه صاحب د جهاد امیر منتخب کړے شوے
وو ـ د دغې نه روستو د اباسین نمر خاته طرف ته په پرګنه پچ او هزاره
کښې او نمر پریواته طرف ته په وادی پیښور کښې چه د سکهانو خلاف
کوم جهاد ونه کیدل په هغې کښې د مجاهدینو او غازیانو امیر سید اکبر شاه
وو ـ او د دوئ د بیرغ دلاندے په غزا کانے کیدلے ـ روستو د نوښار
د ترکو د جنګ تذکره به راشی ـ دغه جنګ د دوئ د بیرغ دلاندے په
رجب المرجب ۱۲۳۹ھ مطابق مارچ ۱۸۲۳ء کښې شوے وو ـ بیا چه کله په
۱۲۵۱ھ مطابق ۱۸۳۵ء کښې حضرت سید اسماعیل شهید او حضرت سید
احمد شهید پیښور ته داخل او په ورځ د چهارشنبه تاریخ ۲۰ رجمادی الاول
۱۲۴۲ھ مطابق ۲۰ ردسمبر ۱۸۲۶ء د اکوړې په مقام د سکهانو او مسلمانانو
ترمنځه غزا او شوله ـ او سید اسماعیل شهید د هغې قیادت اوکړلو ـ او
ورپسے لږ ورځې روستو په ورځ د چهارشنبه تاریخ ۱۲ رجمادی الثانی
۱۲۴۲ھ مطابق ۱۱ رجنوری ۱۸۲۷ء د شاه اسماعیل شهید د امارت اعلان
اوشو ـ نو سید اکبر شاه بادشاه صاحب راوړاندے شه ـ چه تراوسه
پورے زه د هزاره ـ سوات ـ بونیر ـ مردان ـ پیښور د مسلمانانو شرعی
امیر وم زه د خپل امارت نه دستبردار شوم او زه هم د شاه اسماعیل
(شهید) په لاس بیعت کوم ـ که فکر او کړے شی دا د اسلامی اخلاقو یوه
ډیره لویه مظاهره وه او دا ئے ثابته کړه چه حضرت سید اکبر شاه واقعی
چه لوے ایماندار انسان دے ـ په کومو ورځو کښې (یعنے په ۱۸۲۱ء کښې) چه
سید اکبر شاه صاحب د مسلمانانو مجاهدینو بادشاه منتخب کړے شوے

وو- نو دَ سردار محمد خان ترین خوی سردار غلام خان ترین- اوسردار نواب خان
تنولے دا دواړه ئے وزیران وو- بیا په ۱۸۲۷ء کښے چه حضرت سید اکبرشاه
بادشاه دَ حضرت شاه اسماعیل شهید په حق کښے دَ بادشاهئ نه دستبرداره
شه- نو بیا دَ پخپله او دَ ده وزیرانو اودَ فوځ دَ مشرانو ئے تیولو دَ شاه شهید
دَ بیرغ دلاندے غزا کوله- او وروسته چه په ورځ دَ جمعے ۲۴ تاریخ په
ذی القعده ۱۲۴۶ھ مطابق ۶ رمئ ۱۸۳۱ء کښے حضرت سید اسماعیل
شهید دَ شهادت درجه حاصله کړه- نو دَ هغے نه روستو بیا دَ مجاهدینو دَ
لښکرو بادشاهی سید اکبرشاه بادشاه صاحب ته حواله شوله- وروسته چه
په ۱۲۶۲ھ مطابق ۱۸۴۶ء کښے دَ هزارے مسلمانان راجمع شول- په مقام
دَ جاګل ئے جرګه اوکړله- نو په دغه جرګه کښې سید اکبرشاه صاحب یوځل
بیا دَ خپلے بادشاهئ نه دستبرداره شه- اودَ سردار محمدخان ترین خوئ
سردار غلام خان ترین ته ئے بادشاهی پریښوده (چه سردار غلام خان
ترین تردغه وخته پورے دده وزیر وو)

هرکله چه په ۱۸۵۷ء کښے سردار غلام خان ترین دَ انګریزانو په بند
کښے پریوتلو او دَ بهارت په اله آباد جیل کښے بندیوان کړے شه- نو بیو
ځل بیا مجاهدین اسلام راغونړ شول چه په هغے کښے دَ هزاره- سمه
سوات- بونیر او پیښور تول مسلمانان اودَ شاه اسماعیل ملګری مجاهدین
هم شامل وو- په اتفاق ئے فیصله اوکړه- اوسید محمد اکبرشاه دَ ملکانے
بیا هغه بادشاه منتخب کړ- دَ دے نه پس چه هرکله په ۱۸۴۹ء کښے انګریزانو
په پیښور بشمر قبضه اوکړله اودَ خواؤ شا علاقو خلق تربینه خبر شه- نو
دَ سوات یوه جرګه سید اکبرشاه بادشاه صاحب پسے راغله- دوئ ورسره
لاړل په سوات کښے غونډه اوشوه- دَ سوات باباجی صاحب اودَ دیرنواب
صاحب نیکه غزن خان اخند زاده هم پکښے موجود وو- په دغه جرګه کښے

په سید اکبرشاه بادشاه صاحب دعا دخیر اوشوه - او د سوات د ملک هم بادشاه کړې شه - غالبګے نوښے کلے ئے دارالامارت مقرر شه - د دے نه روستو د سوات د میدانی او کوهستانی علاقو یوسفزی هم د جهاد میدان ته را او وتل - اوڅه رنګ چه د سید اکبرشاه بادشاه صاحب د بیرغ دلاندے په ۱۸۲۳ء کښے د امازئی - چمله - بونیر - خدوخیل - ګدون - هزاره او مانسهرے غازیانو په میدان د جهاد کښے توره وهلے وه - د ۱۸۲۹ء نه روستو د سوات مسلمانان هم د دوی د بیرغ دلاندے د جهاد میدان ته راووتل او وروسته دوغه نیمه صدی د ۱۸۹۷ء پورے ئے د سکهانو او وروسته د انګریزانو په خلاف د جهاد په میدان کښے سربازی اوکړے -

دلته دا یاد لرل پکار دی چه د تاریخ مخزن پنجاب جلد ۲ صفحه ۵۱۵ د بیان مطابق هرکله چه په حضرت سید محمد اکبرشاه بادشاه صاحب باندے د بادشاهئ دعاء خیر اوشوله - نو دا فیصله شوے وه چه ټول اولس به د خپل پید اوار لسمه حصه په طور د عشر ورکوی او دغه آمدن چه په بیت المال کښے جمع کیږی نو هغه به د جهاد په لاره کښے صرف کولے شی - اوبیا روستو چه حضرت سید اکبرشاه د حضرت سید اسماعیل شهید په حق کښے د خپلے بادشاهئ نه دستبرداره شه - او د شاه شهید په لاس ئے بیعت اوکړه - نو د عشر ټول امدن ئے شاه شهید ته حواله کړے وو

هری سنګه نلوه د ۱۸۲۲ء نه تر ۱۸۳۰ء پورے په پرګنه پچ هزاره باندے ضابطه حکمرانی کړے وه - په دغه مخ کښے ورسره د حضرت اسماعیل شهید او د هغه نه روستو د سید اکبرشاه بادشاه صاحب د بیرغ دلاندے غزاګانے شوی دی - لیکن د دے لوئی تاریخی شخصیت او مجاهد اعظم د بیرغ دلاندے چه هرڅومره غزاګانے شوی دی - په هغے کښے مونږه د اختصار په وجه صرف د یوے غزا ذکر کوو - په تاریخ کښے دا غزا د "ترکو غزا"

په نامه مشهوره ده . بعض خلق ئې "دَ نوښار غزا" او د "پیر سباق غزا" په نامه هم یادوي - لیکن هر کله چه دا غزا دَ نوښار کلي نه شمال مشرق طرف ته او دَ پیر سباق نه شمال مغرب طرف ته دَ سنګ مرو دَ دوو وړوغونډو چه په "تڼرکو" نامه یادیږي په دغه مقام شوے وه - ځکه مونږه دَ "تڼرکو غزا" په نامه یاده کړه - دَ تاریخي فائدے په خاطر دے غزا تاریخي پس منظر بیانول مناسب معلومیږي -

## تاریخي پس منظر

مخکښې دا ذکر شوے دے چه سکهانو په ۱۸۱۸ء کښې دَ پیښور زمکے ته دا شریک شوي وو چه تاریخ ئې "راغے کچې" ۱۲۳۴ھ لیکلے شویدے او مخکښې دا ذکر هم شوے دے چه په ۱۸۱۸ء کښې دَ سدوزي خاندان دلاس نه دَ بارکزي خاندان نامور او لوئ غازي سردار وزیر فتح خان وژلے شوے وو - دَ وزیر فتح خان کنړ رونړه وو - یو رور ئې امیر دوست محمد خان وو چه په ۱۸۱۳ء کښې ئې دَ اټک قلعه په مقام سکهانو له شکست ورکړے وو او دَ حضرو پورے ئې زغلولي وو - او نور رونړه ئې یار محمد خان پیر محمد خان سلطان محمد خان - عظیم خان وغیره وو - دے ټولو وخت په وخت دَ پیښور په علاقه کښې دَ سکهانو برخلاف غزاګانې کوله - لیکن بوخوا په کور کښې دَ دے بارکزي سردارانو یو اتفاق نه وو - بیلے بیلے علاقے ئې ویشلے وے - یو متحده حکومت ئې نه وو - طاقت ئې ډیر دو مکړ تقسیم شوے وو - بل خوا دَ سدوزي خاندان سره ئې دشمني هم راغلې وه - په افغانستان کښې دَ سدوزي او بارکزي دواړو خاندانونو ترمنځه هم کشمکش موجود وو - په

دے وجه سکهانو ته د ۱۸۱۸ء نه روستو په وادی پیښور کښے د ظلم زور او زیاتی کولو موقع په لاس ورغلے وه . او دا یوه داسے واقعه وه چه نه د بارکزی خاندان سردارانو نظرانداز کولے شوه . او نه د وادئ پیښور قبایلی سردارانو او عامو پښتنو مسلمانانو زغملے شوه .
په داسے حالاتو کښے د ۱۸۱۸ء نه ځلور کاله روستو په ۱۸۲۲ء کښے چه په پیښور کښے یار محمد خان حاکم وو . رنجیت سنګه پیښور ته راغے نبهرے تالا کړ . چه واپس شه د اټک سره نزدے ئے یوه فوځی قلا جوړه کړه . په اټک پورے ووت . نیغ لاړ په کشمیر ورغے . د پیښور د دے تباهئ نه چه د سردار یار محمد خان او امیر کابل محمد عظیم خان خبر شه . لښکر ئے اوکړ . راغے له پیښور نه تیر شه . د خیرآباد په قلعه ئے حمله اوکړله ورانه ئے کړله . خیال ئے وو چه په اباسینده پورے شی د اټک قلعه قبضه کړی . چه روستو په کابل کښے د شورش پیدا کیدو په وجه واپس شه . کابل ته لاړ . چه رنجیت سنګه خبر شه . هغه کشمیر پریښود بیا پیښور ته راغے . په سردار یار محمد خان ئے دیکے دهرکے اوکړے . خراج ئے پرے مقرر کړو او بیا واپس شه . چه د دے نه امیر کابل سردار محمد عظیم خان خبر شه چه ځما رور سردار یار محمد خان بے همتی اوکړه . د سکهانو خراج ئے اومنلو . بیا را روان شه چه خپل رور امیر پیښور سردار یار محمد خان ته زور نه ورکړی او د رنجیت سنګه علاج اوکړی . فوځ ئے د ځان سره کړ . او پیښور ته په یرغل راغے . د بل طرف نه رنجیت سنګه ته هم د سردار محمد عظیم خان د لشکرکشئ حال چه معلوم شه . هغه هم راغے . او د ۱۸۲۳ء په اولنو میاشتو کښے دواړه فوځونه د اټک او خیبر ترمنځه مورچه شول .
څه وخت چه د امیر کابل سردار محمد عظیم خان فوځونه

خیبرته را او رسیدل ـ دَ پیښور امیر سردار یار محمد خان دَ پیښور نه
او وتلو ـ دَ سوات علاقې ته یوسفزو له لاړ ـ په دے چل ئے هیښکله
خپل ځان دَ خپل رور سردار محمد عظیم خان دَ سپورو ستفو او پیغورونو
نه خلاص کړ ـ لیکن نقصان ئے دا اوکړ چه دَ ده په تللو دَ غازیانو ملا
کمزورے شوه ـ او په میدان کښے هم صرف هغه غازیان پاتے شول ـ کوم چه
دَ سردار محمد عظیم خان سره راغلی وو ـ یا دَ پیښور او خوا و شا قبائلی علاقو
عام مسلمانان وو ـ دَ دے نازک صورت حال دَ مقابلے دَ پاره سردار محمد
عظیم خان په پښتنو قبائلو لیے استازی خواره کړل ـ چه غزا له راشی ـ دَ دے
خبرونو په رسیدلو دَ پښتنو دَ قبائلی علاقو مسلمانان غزا له راغلل ـ دَ
سید اکبر شاه بادشاه صاحب دَ بیرغ لاندے راغونډ شول ـ چه زیات
تعداد پکښے دَ دے او دَ سوات دَ یوسفزو قبائلو وو ـ او بیا په دوی کښے
هم په خصوصیت سره دَ علاقه بونیر ـ سلارزی ـ آشی زی ـ گدائی زی
اسماعیل زی ـ اخون خیل (دَ هزارے) نوریزی ـ اکوزی (دَ سوات) دَ قبائلو
غازیان ډیر زیات وو ـ او دَ سید اکبر شاه بادشاه صاحب دَ بیرغ دَ لاندے
دَ دے قبائلو تعداد شل زره بیان شوے دے ـ

دَ سکهانو فوځ دَ مهاراجه رنجیت سنگهه په مشرئ کښے په اباسینډ
باندے دَ هنډ دَ گودر په مقام راپورے وتلے وو ـ مسلمانانو غازیانو
پورے حملے کولے ـ مگر سکهانو دَ دریائے لنډا شمالی غاړه نیولے وه ځکه په بره
دران وو ـ ځان ئے هشتنغر ته او سکلو چه ټوله او هشتنغر قبضه کړی
نو دَ دریائے لنډا جنوبی غاړه او دَ پیښور غاړه به په اسانه قبضه کړلے
شی ـ سکهانو دَ دریائے لنډا په شمالی غاړه چه چپاؤ شروع کړے وو ـ
دَ هغے بله وجه دا هم وه چه دَ دے سیند په جنوبی غاړه دَ امیر کابل
سردار محمد عظیم خان دَ لښکرو سره دَ جنگ پیښیدلو ویره ورسره وه

دَسکهانو دَ فوځ جنګی مصلحت داؤ چه دَ سید اکبرشاه بادشاه صاحب
دَ قبائلی لښکر سره توپونه نشته دے - مقابله ئې اسانه ده - او دَ
سرداران کابل او پیښور سره توپ خانه شته دے - که جنګ دَ دریائے
لنډه په جنوبی غاړه وی - نو مجاهدین دَ سردار محمدعظیم خان امداد
له په سیند پورے وتلے شی - او که جنګ دَ لنډه سیند په شمالی غاړه
وی نو دَ قبائلی مجاهدینو امداد له دَ بارکزی امیرانو توپ خانه په سیند
نه شی راپورے وتلے - چنانچه دَ سکهانو دغه فوځی حکمت عملی کامیابه
شوه - دَ لنډی سیند په غاړه غاړه دَ سکهانو فوځ مخ په بره روان وو -
دَ سردار محمدعظیم فوځ ئې په لنډی سیند پورے وتلو ته پرېښے نه وو - او
دَ شمال دَ غاړے دَ قبائلی غازیانو سره به ئې انګته کوؤله - اومخ په
وړاندے تلل - اخر دا چه دَ سمه - سوات - بونیر - هشنغر - باجوړ -
مهمندو غازیانو دَ سکهانو دَ فوځ مخه ونیوله - دَ نوښار کلی نه مرخانه
طرف ته دَ کابل سیند په شمالی غاړه دَ پیرسباق په مقام دَ سکهانو او دَ
مسلمانانو ترمنځه اوله جنګ اوشه - دغه لاس په لاس جنګ وو -
غازیانو ښکلے مړانه ښکاره کړه - بے شمیره سکهان ئې مردار کړل - او دوئ
هم بے شمیره شهیدان شول - په دے غزا کښے هغه خټک چه په قام
بلاق دی - او په سمه کښے دَ یوسفزو سره یو ځائ اباد دی او په بلاق زرم
نامه یادیږی - هغوئ او دَ سمے یوسفزو ښه مړانه ښکاره کړے وه - دَ
خټک نامے نور خټک غازیان او دَ خلیل او مهمند غازیان دَ بدقسمتئ نه
دَ سردار محمدعظیم خان دَ لښکر سره دَ کابل سیند په جنوبی غاړه پراته وو
او دَ دغو غازیانو دوئ امداد ته په صحیح معنیٰ کښے را او نه رسید لے شول.

دَ پیرسباق په مورچه دَ سکهانو فوځ په مسلمانانو غازیانو ځلور
ګذاره سخت حملے اوکړے - لیکن هر ګذار به مسلمانانو غازیانو ورته خپلے

سیني والونه کړل ۔ او دَ سکهانو حمله یې اوتنبوله ۔ آخر دا چه یې پنځم ځل رنجیت سنګه په خپله دَ خپلې محافظ دستې سره په حمله کښې شامل شه ۔ او دَ یو خونړۍ جنګ نه پس مسلمانان په شا شول ۔ او دَ پیر سباق غونډۍ سکهانو له په لاس ورغلله ۔

# دَ ترکو غزا

لکه چه وړاندې ذکر او شه ۔ دَ سکهانو فوځي حکمت عملي داوه چه دَ کابل سیند په غاړه غاړه ځې په بره لاړ شي ۔ سمه ۔ هشنغر ، دوآبه تول میداني علاقه قبضه کړي ۔ هر کله چه په پیر سباق سکهانو قبضه راغله نو مسلمانانو غازیانو لښکر پوره ته کړ دَ سکهانو دَ مخې وهلو په نیت د نوښهرکلي نه شمال مشرق طرف ته دَ ترکو غونډۍ سره او نیولې ۔ مورچه شول ۔ او دَ جنګ پوره تابیا ئې اوکړه ۔ لکه چه مخکښې ذکر شوې دے ۔ د دے قبائلي مجاهدینو چه په شماره شل زره ۲۰۰۰۰ وو ۔ او زیات تعداد پکښې دَ هزاره ۔ بونیر ۔ سوات ، دَ قبائلي غازیانو وو ۔ دا لوئ لښکر تول دَ ستهانے دَ ملکا دَ سید اکبرشاه بادشاه صاحب دَ بیرغ دلاندې وو ۔ او دَ پیر سباق دَ شکست نه روستو په ترکو غونډوئے مورچه نیولے وه ۔ جنګ شروع شه ۔ وغه دَ جمعة المبارک ورځ وه ۔ دَ رجب المرجب اوله تاریخ وو سنه ۱۲۳۸ھ مطابق ۱۴ مارچ سنه ۱۸۲۳ء وو چه دَ پښتنو او سکهانو ترمنځه دَ نوښار کلي نمرخاته طرف ته دَ ترکو غونډو په سوبلي لمنو کښې او دَ نوښار سیند په غاړه دَ دے مشهور او تاریخي جنګ ابتداء شوې وه ۔ په دغه وخت دَ سردار محمد عظیم خان امیر کابل فوځ د نوښار سیند په جنوبي غاړه دَ موجوده نوښار چهاونړۍ په مقام پروت وو مهاراجه رنجیت سنګه دَ خپلې فوځي حکمت عملۍ مطابق څه حصه دَ نوښار

سیند په شمالی غاړه اېښوے وه - چه د امیر کابل فوځ په دریاب د ډاپوړے وتلو او د غازیانو امداد له د راتللو نه حصار کړی - او په خپله د فوځ د یوے لویے حصے سره د پښتنو غازیانو مقابلے ته د پیر سباق کلی نه قبلے طرف ته په "کلپانئ خوړ" د پورے وتلے وو - او د کنبد کلی نه بیکته سوئیل غاړه ئے نیولے وه - د نوښار کلی ته ئے ځان اوکښلو -

د میدان جنګ په دے نقشه چه غور اوکړے شی - نو صفا معلومیږی چه په دغه وخت د مهاراجه رنجیت سنګه مقابله په حقیقت کښے د هغه غازیانو سره وه چه غیر منظم قبائلی لښکر وو - او د خپل امیر سیّد اکبر شاه بادشاه د بیرغ د لاندے جنګیدل - ځکه خو هغه خپل ټول فوځی طاقت د غازیانو مقابلے ته وړاچولے وو - د پښتنو غازیانو او سکهانو ترمنځه لاس په لاس جنګ شروع شه - غازیانو داسے بے مثاله بهادری ښکاره کړه چه د سکهانو په منظم او قواعددان فوځ کښے ئے پرے اوبیکلے - سکهانو په پوره طاقت سره بیا بیا حملے کولے - ولے پښتنو غازیانو د دوی هر حمله به په شا اوتمبوله - په پنځم ځل حمله کښے رنجیت سنګه په خپله د خپلے محافظ دستے سره راوړاندے شه - چپاؤ ئے اوکړه - او د ترکو غونډئ ئے د غازیانو نه اونیوله -

په داسے نازک وخت کښے چه د ترکو غونډو او د نوښار کلی نمر خاتہ طرف ته اواره میدان کښے د غازیانو او سکهانو ترمنځه داخونړے جنګ کیده - سردار عظیم خان سره د خپل فوځ د سیند په بله غاړه پروت وو - لیکن د غازیانو امداد له ئے څه حرکت او نه کړه - د ترکو غونډو په مقام دوه ورځے اویوه شپه جنګ وو - که په سردار محمد عظیم خان کښے د احمد شاه ابدالی په شان جرأت موجود وے نو به یکم رجب ورځ د جمعه ۱۲۳۸ھ چه جنګ اوښت ده به هم د نوښار په سیند خپل فوځ

هغه شان وراچولے وے لکه چه د پانی پت په جنګ کښے چه احمد شاه ابدالی په دریاب لښکر وراچولے وو - اوکه دغه ئے نه شوه کولے نو چه د خالی په شپه ئے سره د فوځ نه پیښور ته مات کوله - کهٔ د هغے په ځای د نوښار نه لږ بره د پیرپیائی سره څنګ د مومن خان د ډهیرئ په ګودر په سیند راپورے وتلے وے . نو هلته خو د سیند په بله غاړه د سکهانو فوځ نه وو - بے د څه مقابلے نه پورے وتلے شول - او د شپے شپے به خوښکی ګلی باندے د نوښار ترکوغونډو ته رسیدلے شول - او په صبا له چه د خالی (شنبه) په ورځ ۲۰ رجب المرجب ۱۲۳۸ هـ مطابق ۱۴ مارچ ۱۸۲۳ء هم د ترکوغونډو په محاذ د سکهانو او مسلمانانو ترمنځه جنګ وو - نوکه د دغے ورځے په سحر د سردار محمد عظیم خان امداد غازیانو ته رسیدلے وے نو د خالی په ورځ په ورستنی پاړ کښے د "ترکوغونډو" مورچه د غازیانو د لاس نه نه وه وتلے - او په څومره زیات تعداد کښے چه په دغه ورځ غازیان شهیدان شول - شاید چه دومره بے دریغه دیر به قتل شوی هم نه وو - لیکن هرکله چه سردار محمد عظیم خان په دے خاصه موقع د جرات او فوځی تدبر نه کار نه وو اخیستے نو غازیانو ته هغه نقصانات اورسیدو چه په نتیجه کښے ئے سکهانو ته په پیښور کښے د عمل دخل مضبوطولو دپاره موقع په لاس ورغله - څو ورځے پس ئے په پیښور ښهر هم قبضه اوشوه - او ورپسے په دے علاقه ئے هغه ظلمونه اوکړل چه په یکوئے هم زړه درد کوی -

سردار محمد عظیم خان یو بهادر غازی وو - د کشمیر او اټک په محاذ ئے سکهانو له عبرتناک شکستونه ورکړی وو - په دے وجه د حیرانتیا خبره ده چه د نوښار د غزا په موقع د اسے افسوسناکه بے تدبیری ترینه څنګه اوشوله؟ ورسره بله د افسوس خبره دا ده چه د سید اکبر شاه بادشاه

صاحب په مشرئ کښې دَ هزاره سمه او سوات دَغازيانو لښکر دَ نوښار غزاله هم ددے سردار محمد عظيم خان په استازى راغلى وو. چه وادئ پيښور دَ سکهانو دَاقتدار نه بچ کړے شى. که په دے موقع دَ سردار محمد عظيم خان سوال جواب نه وے. نوسيد اکبرشاه بادشاه صاحب تر په خپله دهزاره په ميدانى علاقه کښې دَ سکهانو په خلاف مهم وربخاره وو. په سنه ۱۸۲۳ء کښې اګرچه په مقام دَ دارى او "سرى کوټ" دهرى سنګهو نلوه دغازيانو دلاسه شکست خوړلے وو. او بيا دَ "نارګاه" په مقام دَ سکهانو دَ فوځ غالب اکثريت تباه شوے وو. ليکن دَ هرى سنګهو نلوه دَ طرف نه هروخت دَ حملے خطره وه. او دَ سمه او سوات خصوصًا امازى. مدى زى. جدون. خدوخيل او اتمان زى قبيلو غازيانو له دا ډيره مشکله وه چه خپل ټول فوځى طاقت دَ ايا سيد دَ غاړے نه دومره لرے دَ پيرسباق او نوښار محاذ ته وړاندے کړى دَ افسوس خبره داده چه هرکله سردار محمد عظيم خان دَ جهاد دپاره امداد او غوښت نو بيا دغه امدادى لښکرئ په ميدان کښې دشمن ته ولے خوشے پريښو ده. او دَ هغوى امداد ئے ولے او نه کړو.

قاضى عطاء الله خان مرحوم په خپل کتاب "دپښتنو تاريخ" کښې دَ "ترکو غونډو" دَ غزا په حقله يوه تاريخى او رزميه چاربيته درج کړے ده[1] دَ دغه تاريخى شهادت نه هم معلوميږى چه دَ محمد عظيم خان په درخواست دَ سمه. سوات. هزاره غازيان دے غزاله راغلى وو. په دے تاريخى چاربيته کښې دَ هغه قبيلو کوے چه په دے غزا کښې شامل وے او دَ هغه غازيانو چه په دے غزا کښې ئے شهادت موندلے وو. ذکر شوے دے په دے وجه دَ دے تاريخى او رزميه چاربيتے نقل کول دلته مناسب ګڼړد دَ دے چاربيتے په اخرى شعرونو کښې شاعر خپل تخلص "مويزى" راوړے

[1] کتاب دَ پښتنو تاريخ جلد ۱ صفحات ۲۳۹ و ۲۴۰ و ۲۴۱

دے ۔ اودائے نه ده خودلے چه دے په قام خوګ دے او دَکومے علاقے دے ۔ اونه قاضی عطاء الله خان مرحوم ئے څه وضاحت کړے دے ۔ دَقیاس نه معلومیږی چه داشاعرډ بونیر دے ۔ په قام یوسفزے دے ۔ اوبله داچه دے پخپله په دے غزاکښے شامل وو۔ چاربیته داده ۔

# دَترکوغزانامه

قاصد دَبادشاه راغے یوسفزی اولړزیده

مطلع:- په نیت دَغزا لاړشه په نوښار اورژیده

قاصد دبادشاه راغے رالیږلے عظیم خان

دَ اوله ئے جرګه کړل ملایان او ملکان

دارو ګولئ په مادی درکوم به خرڅ تاوان

الفاظ ئے خوږ شکرود په هرچا او لګیده

قاصد دَبادشاه راغے یوسفزی اولړزیده

الفاظ ئے خوږ شکرود پرے راضی یوسف نامرشوه

راتلل به ځائ ترځایه نه ئے خوب نه ئے دمه شوه

خپل کور په هرچا اورشه پیښه داسے علامه شوه

توکل دعائے اوکړه سیلاب ونه یهیده

توکل دعائے اوکړه اکوزی[1] ووُ په زرګونه

---

[1] دَاکوزی نه مراد دَاکوزی (ابن اتمان ابن مندنړ یوسفزی) دَدرے[3] قبیلو سیاره خیل ۔ ابراهیم زی اوچارسده خلق دے چه "اتمان نامے" په علاقه سمه اوهزاره کښے آبادی ۔ راش

داتلل ئې مشران دَ سپند[۱] په غاړه کله غرونه
دَ زغرو ئې خلکې وې دوشالې ئې په سرونه
دَحسن په صفت ئې بادشاهان هوَسیده
دَحسن په صفت به ئې لګیا یم شوګو کاله
ګلونه دَ ګلاب وو خزان نوی کړه ځما لاله
ساتل به مېند و خوېند والله وروستل قضانه
اجل ئې په ډیرو وو[۲] دلته هسې لوئیده
اجل ئې په ډیرو وو[۳] اشیزو وکړله تو ره
رحمت په سلارزو[۴] شه مدعا ئې کړه حضوره
نران دی ګدائی زی[۵] سرونه نه اړی له ترپوره
خاوند ه خدو خیل[۶] دَ پیښې کله تښتیده
دَ پیښې نه ځا روزی نوریزی[۷] دی اکند رات
مدام ئې صف جنګی وی دَ روښکلو[۸] په میدان
دَالله نوم چه به ئې واخیست ترې به تاشولو سکهان

---

[۱] دَ سپند دغاړې نه مراد اباسیند دے چه دَ اکازی ابن اغان دَنسل خلق دَاباسیند په دواړو غاړو اباد دی - دَ اباسیند نمرخاته طرف ته په هزاره کښې او نمر پریواته طرف ته په سمه کښې - (ناشر)
[۲] ډیرو نه مراد دَ نوښهر دَ ترکو غونډئ دی - [۳] اشیزی دَ علاقه بونیر دَ ایلئ او تور ورسک وغیره کلو خلق په قام اشیزی دی [۴] دَ علاقه بونیر دَ جوړ - بازارګی پام پوخه - انغاپور - وغیره نورے کلو خلق سلارزی دی - [۵] دَ سلطان ویس - پاچا - نربټول - ملک پور وغیره خلق ګدائی زی دی - [۶] دَ طوطالئ - پنجتار وغیره خلق خدو خیل دی - او په قام مندنړ یوسفزی دی - [۷] نوری زی په قام دَ ملی ابن یوسفزی اولاد دی - دا شیزی او چغرزی سره اباد دی - [۸] ادښکلے توره - شمشیر برهنه (ناشر)

دَ تخښو دَ ګمندره[1] ئې رنجیت اوبریده

دَ تخښو په ګمنډ کښې شهید شوې دې پیرخان
دَ قام په مخکښې مړه شو فیض طلب او الطاف خان
شیرداد محب الله رونړه، میرات شه سردرخان

اسماعیل زی[2] دَ لوئی ملا سره اعلونه توییده

اسماعیل زی دَ لوی ملا په مخکښې مړه شو امانت
معصم او عدل شاه دے الله کاندی په جنت
د اوښکلو جنګ ئې اوکړو په میدان کښې یو ساعت

په مرګ ئې په اسمان کښې ملائک او ژړیده

په زمکه ژاړی چرنه ملائک دی په اسمان
بوشرق په تاره[3] پریوت اخوندخیل[4] شو لیندبران

---

[1] دَ تخښو دَ ګمنډ نه مراد دا دے چه دَ یوسفزو مندنړو، او سواتو قومونو دَ هرے یوے وړے لوے قبیلې ځان ځان له خپل بیرغ (تخښته) وه. چه په رنجیت سنګهو ئې هیبت پربوتے وو [2] اسماعیل زی - مندیزی - برکازی دریواړه قبیلې دَ دولت زی قام شاخونه دی - په اوچته پیرئ کښې په مالی زی ابن یوسفزی ودګه یزی - په بونیر کښې اباد دی - ددے چار بیټې پر دواړو بند ونو کښې چه دَ کومو شهید انو نومونه اخستی شوی دی ګمان دے چه دا ټول اسماعیل زی وو - [3] تاره نومے مقام دَ ضلع هزاره په میدانی علاقه کښې دَ کلابټ او سری کوټ ترمنځه تاریخی مقام دے - دلته دَ علی زی اتمانزی مندنړ قوم خلق اباد دے - په تاره کښې دَ شرق پریوتلو مطلب دا چه دَ تاړه دَ علی زی قام به شمیره غازیان شهیدان شول - [4] اخوند خیل دَ ضلع هزاره دَ پکهلئ او مانسهره - ډهوډیال وغیره دَ اخوند عبدالکریم دَ نسل خلق ته وائی چه په قام سرخیلی سواتی وی - دَ دے مطلب دا شه چه په دے غزا کښې دَ ضلع هزاره دَ پکهلئ او مانسهره دَ سواتی قوم غازیان هم شامل وو - (ناشر)

دمرګه پورې پلار دَ حضرت دین کوی ارمان

میراث ئې پالنګونه په میدان خاورې کیده

میراث ئې پالنګونه په میدان شولو یوازې

ژاړی ئې خویندې میندې کلی ئې کړې اغازې

دخاورو نه شوې لاندې هغه ښې پکړئ درازې

په صف ئې «مویزی» لکه فولاد اولیشیده

صفت دَ یوسفزو کوم چه قتل ئې کړو خان

په مینځکښې ئې تمام شو پیر، ملا اوصاحبزادګان

دوزخ کښې به کفاروی په جنت کښې مومنان

هر بیت دَ "مویزی" لکه مرجان بیجه کیده

قاصد دَ بادشاه راغې یوسفزی اولړزیده

په نیت دَ غزا لاړ شه په نوښار اورژیده

ددې چار بیتې دَ آخری بند نه معلومیږی چه په دې غزا کښې چه هرڅو مره پیران - ملایان - اوصاحبزادګان شامل وو - په هغوئ کښې اکثر بلکه ټول شهیدان شوی وو - د "ترکو غونډو" نه چار چاپیره ددې شهیدانو زیارتونه اوس هم موجود دی - چه په دین اسلام د ننګ کولو یاد تازه کوی - دَ خدائ رحمتونه دِ پرې وی - او په دوئ دِ پرې وی -

د نوښار دَ جنګ نه روستو مهاراجه رنجیت سنګه دَ څه خوف او خطر نه په غیر دَ پیښور ښهر نیولو له روان شه - په لاره کښې چه څه په مخه ورتلل هغه ئې تباه کول - او چه پیښور ښهر ته اورسیده نو دَ بالاحصار قلعه ئې په توپونو دړې وړې کړله - میدان خالی وو - سردار محمدعظیم خان دَ رنجیت سنګه د لاسو نه فرار ندې دَ کابل په لور په ماتې تلے

وو۔ دَ قدرت کار دنو ته گوره چه کابل ته دوغ او نه رسیده۔ شاید دَ ملامتیانه خفگان پرے زور شوے وو۔ په لاره کښے مړ شه۔ سکهانو په پیښور ښهر دَ قبضے کولو نه روستو چه کوم لوئی ظلم کړے وو۔ هغه دَ مهابت خان جمات بے حرمتی بے ادبي اوترڅه حده ورانول وو۔ په دغه شان حالاتو کښے چه یار محمد خان خبر شه۔ دَ سوات دَیو سفزو دَ علاقے نه پیښور ښهر ته راغے۔ دَ رنجیت سنگهه تابعداری ئے بوخُل بیا اومنله۔ په خراج ورسره فیصله اوشوه اودَ سکهانو دلاسه بیا نائب الحکومة شه۔ او رنجیت سنگهه دَ کوهاټ۔ بنوں۔ ډیره اسماعیل خان په طرف دجنگ دپاره روان شه۔

دَ ترکو غونړو دَ جنگ نه روستو دَ سید۔ سوات۔ برنیر۔ گدون او هزاره پښتنا نه قبائل چه خپلو خپلو علاقو ته اوړسیدل۔ تیارے ئے شروع کړ۔ او یو کال پس په سنه ۱۸۲۴ء مطابق سنه ۱۲۴۰ھ دَ سید اکبر شاه بادشاه صاحب دَ بیرغ دلاندے دَ سکهانو په خلاف دَ اباسیند هر په غاړه جنگ ته راواوتل او دَ کلابټ او سری کوټ په مقام یو خونړے جنگ اوشه۔ او دَ سکهانو فوځ له شکست ورکړے شه۔

# دَ پیښور غزا

دَ ترکو غونړو په مقام چه رنجیت سنگهه او غازیانو ترمینځه په سنه ۱۸۲۳ء کښے کومه غزا شوے وه۔ دَ هغې په سلسله کښے داخو خبرے دَ یاد ساتلو دی چه په دے غزا کښے دَیو سفزو نه علاوه دَ خټک قبیلے توریالو او جنګیالو غازیانو هم ډیره لویه مړانه کړے وه۔ بله دا چه دَ غازیانو دَ لښکر یو بل نومیالے مشر غازی سمندخان وو۔ چه دَ هغه دَ بهادرئ کارنامے به تل ترتله دَ تاریخ په پانړو یادگار پاتے وی۔

دَ ترکو په غزا کښې دَ سکهانو مشهور جرنیل سردار پهولا سنگهه قتل شوے وو۔ دَ دې نه روستو مهاراجه رنجیت سنگهه خپل یلغار جاری او ساته پیښور ښهر ته رَاوړاندے شه۔ دَ چمکنی کلی په مقام ور سره لوئ جنګ اوشه۔ غازیان په شا شول۔ سکهان په پیښور ښهر را ننوتل۔ ښهر ئے لوټ او تالاکړل۔ کورونه او آبادئ ئې وړانه کړه۔ په پیښور پریوا ته۔ دَ افریدی قبیلے خلقو چه فکر اوکړو چه سکهان دَ خیبر پولے ته را نزدے شول نو یوه شپه ئے دَ بارے او به پرے را خلاصے کړی۔ سکهانو ئے پے درکه کړل۔ غازیان پرے راپریوتل۔ مال اسباب ئے لوټ او تالا کړو۔ رنجیت سنگهه وارخطا شه۔ دَ واپس تللو په تکل شه۔ او څلور بارکزی سرداران۔ یار محمد خان سلطان محمد خان۔ پیر محمد خان۔ سید محمد خان ئے په پیښور باندے په طور دَ نائب الحکومة پریښودل۔ خراج ئے پرے مقرر کړو۔ واپس لاړو۔ اګرچه دَ پیښور سردارانو دَ خراج ورکولو لوظ کړے وو۔ لیکن وختی خبره وه۔ روستو پرے عمل نه وو شوے۔

## سید احمد شهیدؒ

مفتی غلام سرور لاهوری په خپل کتاب "تاریخ مخزن پنجاب جلد ۱ صفحه ۶۸۶" کښې لیکی چه په سنه ۱۲۴۱ھ مطابق سمت ۱۸۷۶ بکرمی لاهور ته خبر راغے چه سید احمد او سید اسماعیل نومے دوه علمانو دَ پیښور په طرف شورش پورته کړے دے او دَ مجاهدینو دَ لښکر په زور ئے په پیښور ښهر قبضه کړے ده۔ چنانچه دَ دے مجاهدینو دَ مقابلے دپاره دَ لاهور نه دَ سکهانو یو مضبوط فوځ اولیږلے شه۔

د دے واقعے وضاحت داسے دے۔ چه دَ بهارت دَ رای بریلی نومے علاقے یو سید چه نوم ئے احمد وو دَ دیوبند مشهور سید چه نوم ئے اسماعیل

وو۔ ذکنړو مجاهدینو ملګرو سره په ورځ د سه شنبه ۷ر تاریخ د جمادی الثانی سنه ۱۲۴۱ھ مطابق ۱۷ر جنوری سنه ۱۸۲۶ء توره ترملا کړه۔ د رائ بریلي نه د جهاد په نیت را روان شول۔ چه د پښتو وطن وادئ پیښور ته راشي سکهانو له مخه او وهي او د سکهانو طاقت چه په سنه ۱۸۱۸ء کښې د اټک په سیند پورې وتلي دے۔ پیښور۔ کوهاټ۔ بنون۔ او د ډیره اسماعیل خان علاقے ئے رالاندے کړي دي۔ او د دے علاقو مسلمانان د خپلے بے اتفاقئ له کبله د سکهانو مخه نه شي نیولے۔ چه په دغه زمکه د مسلمانانو پښے مضبوطے شي۔ او د دین اسلام د دښمنانو مقابله په کامیابئ سره اوکړے شي د مجاهدینو دا لښکر د دغه دواړو نامورو سیدانو او ورسره نورو بے شمېره سیدانو عالمانو او رښتینې مسلمانانو په رهنمائئ کښې د مارواړ۔ سنده حیدرآباد۔ پشین۔ قندهار۔ قلات غلزئ۔ غزني۔ او کابل په لاره هم په دغه سنه ۱۸۲۶ء کښې پیښور ته را اورسیده۔ د پیښور نه چارسدے ته اوچارسدے نه نوښار ته راغے۔ د قندهار په مقام بے شمېره قندهاري پښتانه غازیان هم ورسره ملګري راغلي وو۔ په چارسده کښې ورسره د هشتنغر بے شمېره غازیان ملګري شول۔ تعداد ئے د سوؤنو نه زرګونو ته اورسیده۔ او د رانللو سره ئے د سکهانو په خلاف جهاد تابیا شروع کړه۔

مخکښے دا ذکر شوے دے چه په سنه ۱۸۲۳ء کښې د نوښهر د جنګ نه روستو چه رنجیت سنګهو پیښور رښهر وهلے وو۔ نو روستو ئے یار محمد خان سردار په طور د باجګذار په پیښور حاکم پریښے وو۔ چه هرکله د سید احمد شهید په مشرئ کښې مجاهدین راغلل نو یار محمد خان ئے امداد اونه کړ۔ چه هسے نه سکهان ترے خفه شي۔ ځکه مجاهدین چارسدے ته تلي وو۔ بل خوا د اټک په قلعه کښې او د اټک د قلعه نه په غرپریوا ته غاړه د خیرآباد په قلعه کښې د سکهانو فوځ موجود وو۔ د تاریخ مخزن پنجاب د بیان مطابق

دَ مجاهدینو د را تللو اطلاع چه لاهور ته اورسیده نوکنور شیر سنگھ ئے دَ مقابلے دپاره رالیږلے شوے وو۔

# دَ اکوړی غزا

نوښار ته دَ را رسیدو نه مخکښے سید صاحب دَ سکهانو دَ لښکر حالات معلوم کړی وو۔ دَ سکهانو دَ لښکر شمیره لس زره شو دلے شوے وه۔ او مجاهدین ټول په شماره یونیم زر وو۔ دَ سکهانو دَ فوځ سره دَهر قسم ساز او سامان نه علاوه اته توپے هم وے او دَ دوئ په مقابله کښے دَ اکثرو غازیانو سره ټوپکو نه هم نه وو۔ توره ۔ پیش قبضے او تبرونه ئے لویه وسله وه۔ دا دَ سید صاحب دَ سکهانو سره اولنے جنګ وو۔ صلاح په دے راغله چه په سکهانو دِے دَ شپے حمله اوشی۔ دَ دغے دپاره تیاری ئے اوکړه۔ دَ شپے چه دریم پاړ شه۔ او دَ سکهانو په لښکرګاه کښے ګهړیال درے ټنګه او وهل نو دَ دغے سره سمدستی غازیان دَ الله اکبر په یوه نعره دَ سکهانو په مورچه وراوختل او دا سے یې شرق ئے حمله اوکړله او دا سے بے واره ئے په تورو کوشره کړل چه دَ سکهانو ئے وار پار خطا کړ۔ او چه غازیان دَ خپلے کامیابے حملے نه واپس کیدل۔ نو سکهانو ورپسے دَ خپلے مورچے نه هم و قدم بدل نه کړے شه۔ دَ سحر مونځ کزا رلو نه پس بنه په قلار زړه غازیان په لنډی سیند پورے وتل په مصری بانډه او په پیر سباق باندے نو ښهره راغلل۔

دا جنګ په ۲۰ ر جمادی الاول سنه ۱۲۴۲ھ مطابق ۲۰ ر دسمبر سنه ۱۸۲۶ دَ چارشنبه (۲۰ ر دسمبر) او پنجشنبه (۲۱ ر دسمبر) په منځنۍ شپه باندے شوے وو په دے غزا کښے شپږ دیرش هندی مهاجر او شپږ خلویښت قندهاریان غازیان شهیدان شوی وو۔ او دا نه ده معلومه چه دَ سمه ۔ سوات ۔

هشتنغر۔ هزاره او د پیښور د خواؤ شا علاقو نورڅومره غازیانو په یکښې
د شهادت درجه موندلې وه۔ البته دا معلومه شوې ده چه په دې
جنګ کښې کم نه کم یو زر سکهان وژلی شوی وو۔ او د خوځ سردارئ په
تیښتنه ځان خلاص کړے وو۔

غازیان چه واپس خپل مرکزی مقام نوښهرې ته راغلل نو په دے
کامیابئ باندے ئے حوصلے نورے هم اوچتے شولے۔ او د هرسکهه په ژبه به
دا الفاظ وو چه د سید صاحب د غازیانو یښان څرا ئمرده خلق موښو تر
اوسه نه دے لیدلے۔ د دادی پیښور او څوا و شا علاقو مسلمانانو باندے د دے
فتحے دا اثر اوشه چه د جهاد میدان یو ځل بیا ګرم شه۔ هغه ټول غازیان
چه دے کاله وړاندے د نوښار د ترکو غونډو په محاذ د سکهانو برخلاف
جنګید لی وو۔ هغوی او د ورسره نور بے شمیره مسلمانان غازیان تپے تپے
راتلل او د نوښار په مقام د سید صاحب د بیرغ لاندے راجمع کیدل۔

## شرعی امارت

د اکوړی د غزا نه دوه میاشتو په ورځ د پنجشنبه د ولسم تاریخ د جمادی
الثانی سنه ۱۲۴۲ھ مطابق ۱۱ جنوری سنه ۱۸۲۷ء ټولو مسلمانانو د سید صاحب
نه بیعت اوکړ۔ او خپل شرعی او مذهبی امام او امیرالمؤمنین ئے مقرر کړ۔
لکه چه مخکښے ذکر شوے دے په دغه موقع سید محمد اکبر شاه صاحب ستهانه
(ملکا) هم موجود وو۔ مونږ دے نه وړاندے د سمه ۔ بونیر او هزاره د علاقو
هغه امیرالمؤمنین منتخب کړے وو۔ لیکن د تاریخ مخزن پنجاب د بیان مطابق
سید اکبر شاه بادشاه صاحب یو بهادر او مدبر انسان وو۔ هغه د ډیر لوئ
ایثار او تدبر نه کار واخیست ۔ د خپل امارت نه ئے لاس پورته کړ۔ او
د سید احمد شهید په لاس ئے بیعت اوکړ۔ په دے باندے نور هر څومره
قومی او قبائلی سرداران چه وو۔ هغوئ هم په اتفاق را مخکښے شول۔

دَسید شهید په لاس ئے بیعت اوکړ- چه په هغې کښې د ښادی خان دَهنډ اشرف خان دَ زیدے- احمد خان دَ هوتی او فتح خان دَخدوخیل دَپنجتار نوموړ نه دَ یادَ ولو وی- دَښادی خان په مشوره دَ مجاهدینو مرکز دَتوبیلر په ځائے هنډ اوګرزولے شه- دَ دے نه دَ ښادی خان دوه غرضه وو- یو داچه هرکله تولو یوسف نامه دَ سید صاحب دَ بیرغ لاندے دَجهاد میدان ته راوتلی ده- نوپکار ده چه مجاهدین هغکښی لاړشی- اوسکهانوته لاره اونیسی او دَ لارے تیولو دَ پاره دَ هنډ په مقام مرکز جوړول ضروری ی- ځکه چه په ۱۸۲۳ء کښې دَ سکها نولښکر دَ هنډ په کودرپه اباسیند دَ اپورے وتلے وو- چه هنډ مرکز شی نو سکهان به په اباسیند دَ داپورے وتلو نه په اسانه بندکړے شی- بله داچه دَ اباسیند نه پورے غاړه هنډ ته مخامخ دَ اټک په قلعه چه دَ سکهانو فوځ پروت دے- دَ هنډ دَ مرکز نه دَ سکهانو په دغه فوځ حمله هم اسانه ده- او دَ خیراباد په مقام چه دَ سکهانو کومه فوځی قلعه ده دَ هغې وهل هم اسان دی- اوکه بالفرض سکهان دهزارے په لاره په تربیله په اباسیند داپورے وتل غواړی نو دَ هنډ دَ مرکز نه دَ هغې تابیا هم په جلتیٔ او اسانه کیدلے شی- غرض داچه دَ ښادی خان تجویز په فوځی نقطه نظرسره بهترین تجویز وو- تولو مشرانو خوښ کړ- او دَ مجاهدین اسلام مرکزی مقام هنډ اوګرزولے شه- لیکن دَ بدقسمتیٔ نه بیا شه داسے حالات پیښ شول چه دَ هنډ په ځائے دَ خدوخیلو په علاقه کښې پنجتار نومے مقام دَ مجاهدینو مرکز اوګرځولے شه- اوسید شهید هلته کښې لاړ په فوځی نقطه نظرسره دا فیصله صحیح نه وه- لیکن دَ بعض غلطو او غلط فهمو په وجه او شوله- دَ پنجتار دَ استوګنے په دوران کښې دَ سکهانو او مسلمانانو ترمنځه درے حمله جنګونه اوشول- لیکن درے واړه حمله مسلمانانو ته فتح حاصله شوه-

په دغه ورځو کښې چه سید صاحب په پنجتار کښې وو. د سکهانو یو فوځ د یو سکهـ جرنیل "بدهو سنګهـ سندهیان والا" په ماتحتۍ کښې په اټک راپورے شه او د اکوړې په خوا وشا کښې دیره شه. او مسلمانانو د هغوئ مقابلې ته تیار شول.

# د شیدو غزا

په دغه وخت کښې چه د جرنیل بدهو سنګهـ فوځ اکوړې ته را اورسیده. هلته د شیدو په مقام د حاکم پیښور سردار یار محمد خان فوځ پروت وو. چه اکثر پکښې درانی پښتانه وو. لیکن سکهانو ورله څه اهمیت نه وو ورکړے ځکه چه حاکم پیښور سردار یار محمد خان د سکهانو باجګزار وو. بل خوا ته په غیر د څه خاص ثبوت د جرنیل بدهو سنګهـ پیښور ته د لښکر کشئ کولو ته د سردار یار محمد خان په زړه کښې شک پیدا شوے وو چه هسې نه سالانه خراج بدے نور هم زیات کړے شی. دا شک ئے بدے پیدا شوے وو چه د دغې نه څه ورځے وړاندے چه جرنیل بدهو سنګهـ په پنجتار حمله کړے وه او په مخ درّه کښې ئے بے شمیره فوځ تباه شوے وو نو سردار یار محمد خان د سکهانو امداد له ځان نه وو رسولے. په دا شے حالاتو کښې اګرچه یار محمد خان په یواځے ځان د سکهانو د مقابلې توان نه لرلو لیکن دائے خیال وو که چرے مجاهدینو د سکهانو برخلاف جهاد شروع کړے نو دے به د مجاهدین اسلام امداد له میدان جنګ کښې شامل شی.

د مجاهدین اسلام مرکز پنجتار ته چه د پیښور په طرف د بدهو سنګهـ د لښکر کشئ خبر اورسید نو سید احمد شهید د غزا تیارے اوکړ. د سمه د میدانی علاقے د مندنړ یوسفزی ټول قومونه. د هشتنغر او دوآبے علاقے د هزاره. اماڼزی. مداڼزی. ګدون. خدوخیل. مجله او بونیر ټول قبائیل

دَخپل پخوانی امیر سید اکبر شاه باچا صاحب او نوے امیر سید احمد بریلوی په مشرئ کښې را رَوان شول۔ دسکهانو مخه ئے اونه وهله۔ یعنې دَ سکهانو مخے له نو بنارته لاړ نه شول۔ بلکه دَسکهانو دَ فوځ شا ئے اووهله۔ په جهانګیرئ راپورې قتل او په شیدو ئے ورته مورچه اوډوله۔ په شیدو کښې دَسردار یار محمد خان چه کوم فوځ دیره وو۔ هغه هم دَ مجاهدینو مګرے شه۔ سردار یار محمد خان پخپله هم دَ جنګ میدان ته خان را اورسولو۔ دَسکهانو جرنیل بدهو سنګهو چه په اکوړی پروت وو۔ بیرته په شا را اوګرزیدو اودَ شیدو په مقام، په لوړو، ژورو میدانی حصه اوکندو خارخوړ و کښې خونړے جنګ شروع شه۔ سلامته ورځ جنګ اوشه۔ او دواړه طرفه بے شمیره خلق مړه او ژوبل شول۔

په دیمه ورځ سحروختی دَشیدو په مقام بیا دَجنګ میدان ګرم شه۔ سردار یار محمد خان دَشاه اسماعیل په نګرانئ کښې یو سنبال کړے هاتی رالیږلو۔ چه غازیانو په میدان جنګ کښې سید صاحب په هاتی سور اوڼیده ۔ نو دَ داسے بے مثاله مړانے او بهادرئ نه ئے کاس واخیست چه هرچا پرے آفرین اووے۔ دَ شپې هزارے چلے۔ بونیر هشنغر۔ دوآبے وغیره غازیان او دَ حاکم پیښور سردار یار محمد خان فوځیان ټول داسے په ځوانمردئ اوجنګیدل چه نزدے وه چه سکهانو له شکست ورکړی۔ لیکن دَمسلمانانو په فوځ کښې څه داسے حالات را پیدا شول چه ګټلے میدان دَغازیانو دلاس نه لاړ۔ او فتح په شکست بدله شوه۔ دیوان امرناتهـ لیکی:۔ چه په دے جنګ کښې دَسکهانو ډیره بے حده او بے حسابه نقصان شوے وو چه اندازه لګول ئے ګران دی البته غازیان پکښې تقریباً شپږ زره شهیدان شوی وو۔ چه پکښې ډیر نامور قومی مشران۔ قبائلی سرداران۔ سیدان۔ عالمان۔ اخوند زادګان او

صاحبزادګان هم وو- او دَ مقامي غازيانو نه علاوه هندي، او قندهاري مجاهدين هم په کښې زيات شهيدان شوي وو - دلته دَ يو څو غازيانو ذکر کول مناسب معلوميږي. کوم چه دَ شيد و په غزا کښې شهيدان شوي وو -

## سَيّد يوسفؒ او سيّد عمر ترمذيؒ

دا دواړه رونړه وو- په تمام سيدان وو - دَ يو نيږ دَ پير بابا غني وو- او دَ سيد اکبرشاه بادشاه صاحب دَ تره ځامن وو- دسمه دَ علاقے (تحصيل صوابئ. ضلع مردان) دَ کالوخان نومي کلي او سيدونکي وو- دَ دوي دَ پلار نوم وو سيد عصام الدين ولد سيد اميرشاه ولد سيد بهاء الدين ولد سيد مسعود ولد سيد عبدالوهاب ولد سيد مصطفى محمد ولد سيد علي ترمذي پير بابا عليه الرحمة، دا دواړه دَ شيد و په جهاد کښې شهيدان شوي وو- او هم هلته په ميدان جنګ کښې پاتے وو- دَ دوي لاشونه چا نه وو راوړي - ځلوبيښت ورځے پس دَ کالوخان شجاع نوجوانو پښتون ورپسے لاړ- دَ دے دواړو سيدانو رونړو لاشونه ئے کالوخان ته راوړل- خلق به ئے ليدلو له راتللو- دَ شهادت لوړه مرتبے تر به ئے حيرانيدل- دا سے تازه پرانه وو- لکه چه هم دغه ساعت شهيدان شوي وي- او بله دا چه ځلوبيښت ورځے پرے تيرے شوے وَليکن زخمونو ئے هغه شان تازه وو- او غورځنۍ غوټئ سره وينے به ترے څڅيدلے. دَ دے دواړو سيدانو او شهيدانو رونړو زيارتونه دَ خپل پلار سيد عصام الدين دَ مزار سره په کالوخان کښې دي -

---

# ګل بابا او محمد خان

د شهیدو په غزا کښې د باجوړ یو مشهور خان هم شامل وو. خان میر عالم خان نوم ئې وو. دے ډیر لوئ خان وو. په قبایلی علاقه باجوړ او د ضلع پېښور د دوآبې په علاقه په دواړو ئې خانی په اوړی به په باجوړ وو. په ژمي به په دوآبه وو. میر عالم خان ډیر ښه شاعر هم وو. د شهیدو په جنګ کښې چه د هشتنغر او دوآبې په علاقه کوم غازیان شهیدان شوی وو د هغوئ مرثیه ئې لیکلې ده دا مرثیه په حقیقت کښې یو رجزیه نظم دے. چه ډیر دردناک هم دے او د اسلام سره د دے د لیکه مینې د اظهار ترجمانی هم کوی. او علاوه د دے تاریخي نظم هم دے. په دے مناسبت د دے نظم څه لږه حصه دلته درج کوو په کوم کښې چه د ګل بابا شهید او خان محمد خان شهید ذکر ئې کړے دے.

## مرثیه او رجزیه نظم

دغسې دریځ دراله ښائسته ده کړو سپاڼ — چه د دین په ننګ ئې ځان کړلو قربان
هر ځلې په ئې زمرے وو په میدان — یرغل به ئې له سهمه کافران
ماموزی تیپونه[1] او ترپل روان شول — هر ځلې ئې کوښې کوښې پهلوان
چه به ټک تیکي[2] ګذار کوی د توره — شتر په لیاظ[3] کښې م محمد د شاهي خان
د ترانځ به ئې له غځه هر چرے وی — هسې د کوسې ځای پرښته، بې نقصان

---

[1] "تیپ" د قبایلی علاقه باجوړ په پښتو ژبه کښې د فوځ قطار قطار کیدلو ته وائی۔

[2] په ټک تیکی ګذار کول محاوره ده په داسې ځای استعمالیږي چه یو بهادر د توره د تیکی نه اوکښلو ته هم انتظار اونه کړي. توره ئې لا په تیکي کښې لګرړی وی او سره د تیکی ئې دښمن له راخلاصه کړي چه دا د ډیر بهادرئ نخښه ده. [3] لیاظ نه مراد لحاظ دے. (راشد)

خنکه دَخلمی نه پاتے شول کلونه
په پیرونه به راځی پرے پټنګان

چه دنیائے په ربښتیا وه ترکه کړے
کل محمد فقیر به وو بشره روښان

چه دَکوره شه روان زړونې صابرکه
دَمولیٰ په تنا وو ډیره ښکو یا ن

دغه مرګ ئے دَشهادت بیا موند بهتره
ښخ په خپله هدیره شو زاهدان

شپے او ورځے ئے په مینه په سرکړے
دوئ په حقه پیژندلے وو سبحان

دَمنصور هسے وینا دَرب په مینه
اناالحق ناره ئے وهلے په هر آن

پنځ بنائے وه تغفر کړے په نهوس
حرکت پرے باندے نه کړلو شیطان

پنځه وقته به وو ناست په جماعت کښے
دوباره شو ئیم لشره دَ دیسنداران

میرعالم فقیر له سوخته غزل او دَے
په زړه کښے ئے غشی لګ وُوری دهجران

که دَدوئ په روئ م او بخښے خاونده
میرعالم عاجز دے کرم تا ته حنان

محمد په دے پورته نظم کښے دَ محمد خان شهید نوم یاد شوے دے دَهشنغر دَ شولګرے په علاقه کښے دَمامون زی قام یو کلے دے ـ په "چینی" شاهئ نامه یادیږی محمد شهید دَ دغه شاهئ نوے کلی خان وو ـ

کل بابا په دے پورته نظم کښے دَ دویم شهید نوم کل محمد فقیر یاد شوے دے چه دَ هشنغر دَ شولګرے دَ مرزادهیر نوے کلی او سیدونکے وو ـ او زیارت ئے نن ورځ په کل بابا نامه مشهور دے ـ

---

په دے پورته نظم کښے یوه مصرعه ده "ښخ په خپله هدیره شو زاهدان" خبره داسے ده چه دَ مرزادهیر کلی مغرب طرف ته یوه وړه هدیره ده ـ په دغه کښے په شمار یو اتیا قبرونه دی او دا ټول دَ شهید و دَ غزا دَ شهیدانو مزارات دی ـ دَ مرزادهیر کلی خلق په دے قبرستان کښے مړی نه خښوی او په دے جوړ دغه خالصه دَ شهیدانو هدیره ده ـ دَ دے هدیرے قبلے غاړے ته دَ کل بابا شهید مزار دے ـ کچه چار دیواری ترینه تاوده

او دَ کجورے وند پکښې ولاړه ده۔

سردار هری سنگهٔ سند هیا نوله دَ شید وپه جنګ کښې دَ فتح حاصلولو نه روستو لاهور (پنجاب) ته واپس شه او په دے شان سره په پیښور او هزاره دواړه علاقو باندے دَ سکهانو اقتدار نور هم مضبوط شه۔

# دَ پرګنهٔ هزاره احوال

اوس به هغه واقعات بیان کړو چه د ۱۸۲۶ء نه روستو دَ هزاره په علاقه کښې پیښ شوی وو۔ او په هغې کښې تنکیالو او توریالو پښتنو غازیانو دَ دین اسلام دَ سرلوړئ او دَ وطن دَ حفاظت دپاره دَ سکهانو په خلاف غزا ګانے کړی دی۔ هرکله چه سکهانو دَ مارګلے او خیبر ترمنځه په پرګنه چچ او هزاره باندے کله وړاندے او کله روستو او کله په دواړو علاقو په یو وخت کښې برغے حملے کړی دی۔ په دغه مناسبت سره لکه چه وړاندے هم مونږه دے خبرے ته اشاره کړے ده۔ ددے دواړو علاقو دَ واقعاتو بیان په تاریخی ترتیب سره کول غواړی

هغکښې دا بیان شوے دے چه په ۱۸۲۷ء کښې چه سردار هری سنگهٔ نلوه دَ ډیره جات دَ علاقو مهم له لاړ۔ او خپل دواړه ځامن اسا سنګهٔ او ګوردت سنګهٔ ئے پخپل ځائے باندے په هزاره کښې پرېښی وو۔ او سردار محمد خان ترین په هغوی حمله کړے وه او په هزاره کښې ئے دَ سکهانو اقتدار ختم کړے وو۔ چنانچه هرکله سردار هری سنګهٔ نلوه په ډیره جات کښې دَ هندو دواړو ځامنو دَ تباهئی او دَ سکهانو دَ اقتدار دَ دغه عبرتناک انجام نه خبر شه نو دَ لاهور خالصه دربار ته ئے ددے په خلاف دقدم پورته کولو درخواست اولیږه۔ خالصه دربار دَ هزارے مهم ته توجه

را اوګر زوله - او د دے دپاره سردار بدهو سنګهه سند هیانواله مقرر شه - په دے خیال چه دے سکهو جرنیل د شیدو په جنګ کښے د مجاهدینو په خلاف کامیابي حاصله کړے ده - لیکن سردار بدهو سنګهه ته معلومه وه چه د شیدو په جنګ کښے سکهانو ته د خپلے بهادرئ په وجه کامیابي نه وه حاصله شوے - بلکه هغه شو دا سے حالات پیښ شوی وو چه د مسلمانانو په لښکر کښے د بے اتفاقئ پیدا کیدلو په وجه سکهانو ته میدان پاتے شوے وو - بل خوا ته سردار بدهو سنګهه د مانړئ او تارګاه په مقام د جنګونو او په هغے کښے د سکهانو د قتل عام نه خبر وو - او دا هم ورته معلومه وه چه په دے جنګونو کښے مشهور جرنیلان سکهان - لکه دیوان رام دیال ، سردار حکما سنګهه - سردار امر سنګهه مجیټهه وغیره وژلی شوی وو د دغے نه علاوه د سردار محمد خان ترین نوم هم دا سے هیبتناک وو - چه د هغے په اوریدلو به هم په ډیرو سکهانو لړزان راتللو - په دے وجه اګرچه سردار بدهو سنګهه سند هیان والا دیولوئے فوځ سره د لاهور نه را روان شه - لیکن د مېږی په قدم منزل ئے شروع کړ - چل ول ئے کا وه وخت ئے اړول غوښتل او هزارے ته ئے راتلل نه غوښتل - چنانچه په لاره کښے ئے یو ځائے کښے اړه ولی وو - هزارے ته رانغے -

## دَسرى كوټ غزا

هرکله چه هری سنګهه نلوه د ډیره جات د مهم نه را واپس شه او د دے نه خبر شه چه جرنیل بدهو سنګهه په هزاره باندے د حملے کولو نیت نه دے کړے نو په خپله ډیونوی فوځ سره په هزاره باندے د حملے کولو دپاره را روان شه - هری سنګهه د ډیره جات نه نیغ هزارے ته راغے د لاهور نه ئے نور امداد را او غوښت - او چه کله امدادی فوځ ورله را اورسیدو

نوڈ مسلمانانو مجاهدینو سره ئے په جنګ لاس پورے کړ۔

په دغه موقع ډ مسلمانانو مجاهدینو ډ لښکرو مشری سردار محمد خان ترین کوله ۔ بل خواته سردار سربلند خان تنولے ۔ ډ هغه ځوی سردار شیر محمد خان ډ تنولی ۔ ترک ۔ ګوجر قوم ډ لښکرو قیادت کولو خان سعد الله خان سید خانی ډ خپل قوم سید خانی او طاهر خیلی مشرود چه سکهانو ډ سری کوټ په طرف حمله اوکړه ۔ ډ تنولی قوم شاه ځلمی ورله مخے ته اودریدل ۔ ډ ګنګر غره په سکته لمنو کښے خونریز جنګ اوشه ۔ سردار شیر محمد خان تنولے پکښے شهید شه ۔ غازیان په شا اوتنبیدل ۔ اوچت شول ۔ ډ سردار شیر محمد خان شهید پلار سردار سربلند خان او سردار محمد خان ترین خپلے مورچے روستو کړے ۔ ډ سری کوټ په مقام ئے نوے مورچے اوډهلے ۔ او په دفاعی انتظاماتو کښے معروف شول ۔

په هزاره کښے مشوانی نوم یو بهادر قوم آباد دے ۔ په اصل حسینی سیدان دی ۔ ډ هزاره په زمکه ډ مردم شمارئ په لحاظ یو لوئے طاقتور او توردزن قوم دے ۔ ډ دے قوم ننګیال او توریال غازیان په تاوده جنګ کښے موقع له را اورسیدل ۔ هغوئ هم داغوره کړه ۔ چه سری کوټ مورچه کول مناسب دی ۔ لیکن ډ جنګ میدان ډ سری کوټ نه څه لږ وړاندے ډ نارګاه مقام چوړ ول پکار دی ۔ په دغے دعاء ډ خیر اوشوه ۔ غازیان ډ سری کوټ نه وړوړاندے شول او په نارګاه باندے پریوتل ۔

بل طرف ته هری سنګهه نلوه ډ سکهانو یو طاقتور فوځ چه توپکے او توپونه ورسره وو ۔ ډ کملابټ نه را مخکښے کړ ۔ په مقام ډ ناره ئے جمع کړ ۔ دغلته ئے خپل مرکز قائم کړ ۔ او ډ غازیانو په مورچه نارګاه ئے ګوله باری شروع کړه ۔ ډ ناره نه شمال طرف ته ډ غره په یوه غونډئ باندے اوس

هم سپین برج موجود دے چه دغه برج ته هری سنگهو توپے خیژولے وے او دغه ځائ نه یے د مسلمانانو په مورچه نارگاه بانده گوله باری کووله - په دے شان سره تووله ورځ سخت جنگ اوشه - د دواړه طرفه نه په گولو وره ولو کښے څه کے نه دد راغلے - چه د مازیگر مونځ اوشه - سردار محمد خان ترین - سردار سربلند خان تنولے - سردار سعد الله خان سید خان علی زی - سید سلیم شاه مشوانی - خپل خیل میرغونه پوره تکړه د الله اکبر نعره ئے پوره تکړه - په غازیانو ئے غزا اوکړه - او په یوه چغه په سکهانو ئے حمله اوکړه او د هری سنگهو فوځ ئے د تیره توره په گذارونو لکه د مولو کاځرو په شان قطرے قطرے کړ - سکهان اول زیبدل - او ترهیبدل - او زغلیدل او د اسے خلاص او زغا بشتل چه په روستوئے نه ووکتلی - د جنگ سامان خرخ خوراک وغیره هرڅه ئے په داگه پریښودل - نرهغه دوچه هر یو ته ئے ځان اورسولو -

په دغه ځان ځائ کښے سردار هری سنگهو - سردار مهان سنگهو - سردار کشن سنگهو درے واړه سکهان جرنیلان په ناره کلی کښے په یوه وران کور کښے پټ شوی وو - او غازیانو په دوی پسے تلاش شروع کړے وو - یو یو کوټ ئے درپسے لټولو - د ماښام تیاره خوره شوے وه - موندل ئے گران وو لیکن څه وخت چه دوی په دغه وران کور کښے پټیدل - هغه وخت د یو غازی پرے نظر برابر شوے وو هغه نورو غازیانو ته حال اووایه چه په دے فلانکی کور کښے درے سکهان پټ شویدی - غازیان د هغه کور نه تاؤ شول - را گیرئے کړ - چه دے سکهانو جرنیلانو اوکتل چه غازیان ئے په سررا اوختل دار خطا شول - ناساپه سردار کشن سنگهو را اووت په تیښته شه - یو مشوانی غازی ورله توره راخلاصه کړه - سر ئے ترینه قلم کړ - حمله ئے گذار کړ - زرسے سردار مهان سنگهو او سردار هری سنگهو تلوه هم د هغه کور نه را اووتل -

تیښتنه ئې کړوله چه شاه خلمي غازیانو پرې ورتړپ کړ. تورې ئې پرې کیښودلې. په تورو ئې پرې ټوټې ټوټې کړل او وهل. په زمکه ئې پرېیستل. بیا دپاسه ئې د تورو ګذارونه پرې اوکړل. او چه په خپل خیال کښې مردار اومړه ئې کړل نو په تورو کښې ئې اوچت واخیستل. شکسته کندې ته ئې ګذار کړل.

د غازیانو دا یقین وو. چه دا دواړه سکهان جرنیلان ئې اووژل او مړه شوی دی. چونکه شپه وه. نور زیاتې تالاش اولټون ئې او نه کړو. په سبا له چه سحر وختي غازیان د سکهانو مورچې ته ورننوتل. ټوپې شمیره مال غنیمت په لاس ورغې او هلته د یو مړشوی سکه لاش ئې هم اولیده چه شکل ئې هو بهو د هری سنګه نلوه په شان وو. غازیانو دا اوګڼله چه هم دا هری سنګه دې چه مړشوی دې. د هغه نه ئې سر پریکړلو. بیا دغه ئې اوغږو دلې او دائې مشهوره کړه چه د هری سنګه کار تمام شوې دې.

## د اتفاق خبره

بل طرف ته دې اتفاق ته ګورئ چه څه وخت هری سنګه نلوه د کوټې نه راووتلو تیښتنه ئې شروع کړه اوغازیانو په تورو اووهلو. او بیائې کندې ته ګذار کړو. سره د دې هری سنګه دګه د پیښوپیښان سل سالانې وې لا نه وو مړشوې. او په دا سې حال کښې چه د زخمونو له وجې بیهوشه وو. کندې ته ګذار لې شوې وو. غازیانو مړشمیرلې وو. لیکن مړ شوی نه وو بچ شوې وو. ترڅه وخته خو بې هوشه پروت وو. لیکن چه په خود شه په دغه منځ کښې یو سکه سپاهي چه د مړک د دیرې د چرته په کومه ځاځه کښې پټ شوې وو هغه په دغه کنده کښې غلي غلي روان وو. چه د هری سنګه په خوا تیر شه. هری سنګه د هغه پښه اونیوله. په فلاره ئې ورنه ځان اوښود و چه زه هری سنګه یم. د واهګورو په خاطر مې بچ کړه. هغه سپاهي اوګلګ

هری سنګه ئې په شا کړ. ترڅه منځ ئې یوړو. خپلو ملګرو ته ئې او رسولو
هغوی ټول هریپور ته په تیښته روان وو. چونکه هری سنګه ډیر
زیات زخمي وو. د سپاهي په شا باندې یا د آس په شا باندې د دریدلو
نه وو. د کملا بیټ خوا ته په بیوپتی کښې سکهانو یو مات کټ په کټ پیامونده
هری سنګه ئې په هغه کټ کښې واغیسته او هرکشن ګړه (هریپور) ته ئې
او رسولو. بل طرف ته لکه چه ذکر او شه غازیانو په خپل خیال کښې
هری سنګه نلوه وژلې وو. او په خپله فتح باندې خوشحاله وو. په دغه
وجه د قبائلي غازیانو خلق او لښکر وو. بنو رشه. او ټول خپلو
علاقو ته لاړل. په تاریخي اعتبار سره دا واقعات په ۱۲۴۴ھ مطابق
۱۸۲۸ء کښې پېښ شوی وو. په دغه ورځو کښې سید احمد شهید د
سوات د دورې نه را واپس شوې و مرکزي د هغه د پنجتار ته
بدل کړې وو. او په پنجتار باندې پروت وو.

## د سرې کوټ دویمه غزا

د سرې کوټ په مقام چه کومه غزا شوې وه او غازیانو یقینی خیل
دشمن په خپل خیال کښې وژلې وو. لیکن مړ شوې نه وو. او په ډیر
بد حالت کښې هریپور ته را رسیدلی شوې وو. نو سکهانو دا اعلان کړې
وو چه مسلمانانو که هرڅو مره د هری سنګه نلوه د وژلو کیسې خپرې
کړې. یا ئې خوشحالي کړې. دوی په هغې هیڅ غور نه کاوه. خو له
ئې پټه کړې وه او د هغه د زخمي کیدلو او ژوندی پاتې کیدلو
ئې هیڅ حال نه ښکاره کولو. او چه په دې شان سره څه موده تیره
شوله. او د هری سنګه زخمونه ورغلل. روغ شه. نو په ډیره
راز داری سره ئې پیروه په پیړه کښې تیاری او کړه. فوځ ئې جمع کړه

او په ناخبرئ کښې ئې په سری کوټ دابره واچوله - مسلمانان په ځان پوهه
هم نه شول چه د سکهانو فوځ په سری کوټ ور ورخوت - او سردار
محمد خان ترین ئې راالندې کړ - گرفتار ئې کړ - سمدستی ئې په هغه کړ
هری پور ته ئې اوډ ستوو - او په سری کوټ کښې ئې مورچه اودیوله -
اپے کړے ئې ساز کړ -

د سکهانو د دې ناسابي حملې او د سردار محمد خان ترین د گرفتا
کیدلو نه چه قبائلي اولس خبر شه - لور کلوره نه په ناخته راغلل - سری
کوټ ته ئې ځان را اورسولو - جنګ ئې شروع کړ - دړې ورځې پرله پسې
سخت جنګ او شه - لیکن واقعات داوو چه سکهانو د پوره تیاری نه
روستو د منظم فوځ او سنبه مضبوط فوځي ساز و سامان سره حمله کړې وه - بل
په حمله کښې ډیر اندے شوی هم وو - د سری کوټ په خواؤ شا کښې چه
کوم د کار مورچې وے - هغه ئې نیولے وے - او بل خواته غازیان په
هیبت باندے په غیر د څه تیاری نه راروان وو - او د هغې سره داحال
وو چه د خواؤ شا نزدے علاقو نه اخوا د لرے علاقو غازیان ورله امداد
له نه وو رارسیدلی - ځکه د غازیانو د وسلې طاقت هم کمزورے وو - او
ځوانان ئې هم کم وو - د دغه وجوهاتو له کبله سکهانو له ئې پخه چغره
ورنه کړے شوه - او په دے غزا کښې چه په دغه موقع یوائځ د کوه ګنګر
سید خاني - طاهر خیلي - ترین او مشواني جنګیدل - هغوئ د سکهانو لښکر
د سری کوټ نه په پوره ګولو کښې بریالی نه شول - هرکله چه دړے ورځې
جنګ او شه - او هری سنګه تلوه سره داویره پیدا شوه چه د اماذی
مداذی - حسن زی - ملاخیل - جدون - خدوخیل وغیره قبایلو امداد
غازیانو ته رارسیدونکی دے - او بیا د قبایلو د لښکر د لوئ زور مقابله کول
به ورته ګران شی - نو د جنګ په دریمه ورځ د سری کوټ کلے ئې او سیزلو.

اوبیا هریپور ته واپس ستون شه - او د دغه ځائ کوم مسلمانان چه د
مرګ نه بچ پاتې شوی وو اوغرونو ته شوی وو - او اکثر په قام مشوانی
سیدان وو - هغوئ د سری کوټ د تباهئ نه دوستو په ابا سیند هر اپورې
وتل - د یوسفزی قام د سدوخیلو په علاقه کښې کنټرول نوے ځائ ته په
کړه لاړل - تر ډیرے مودے پورے د دے جلاوطن غازیانو مشران او
توریالی ځوانان لکه نورخان - مهران - طره باز - حسین خان - نوبت شاه
او سید علی په مشرئ کښې د غازیانو ډلے به تللې - او د سکهانو په قلاګانو او
فوځونو به ئې شبخونونه وهل -

محمد خان ترین چه ګرفتار کړے شه او هری سنګهـ نلوه پخپله
نګرانئ کښې لاهور ته بوتللو - په دغه ورځو کښې مهاراجه رنجیت سنګهـ پخپله
په اټک قلعه کښې دیره وو - چه د محمد خان ترین د ګرفتارئ او لاهور ته
د نظربند بوتللو نه خبر شه نو هغه هم را روان شه - هری سنګهـ او رنجیت سنګهـ
دواړه په حسن ابدال یوځائ شول - او دواړه کټه لاهور ته روان شول -
محمد خان ترین ئې د ځان سره بندی روان کړ -

په لاهور کښې رنجیت سنګهـ حکم اوکړ - محمد خان ترین ئې په دربار
کښې پیش کړ - ورته ئې او وئیل چه که پنځه ویشت زره روپئ جرمانه ورکو
او اسنډه دپاره د سکهانو د حکومت سره د وفادارئ وعده کوے نو معاف
به دے کړو - لیکن دے جوانمرد "ترین سردار" دغه پیشکش قبول نه کړ -
او په ډک دربار کښې چه سپورے ستیغ شه په خولے ورتللې سخه ئې ورته
او وئیلے - نتیجه دا شوه چه نظربند کړے شه - او د سکهانو د حکومت
د یولوئ دشمن خطره د منځ نه او وتله -

---

# دَ سرې کوټ دریمه غزا

دَ سرې کوټ په مقام یوه بله دریمه غزا داسې اوشوله چه څه وخت سردار محمد خان ترین دَ سکهانو په بند بندیوان شه او لاهور ته دهغه دَ بوتللو دَ پاره هری سنگه نلوه پخپله لاهور ته روان شه نو په خپل ځائې باندې ئې سردار میهان سنگه دَ پرگنه هزاره دَ نائب الحکومة په طور په قلعه هرکشن گډه کښې پریښے وو۔

دَ سردار محمد خان ترین وراره، سردار بوستان خان ترین یو نومیالے او بهادر ځلمے وو۔ هغه دَ خپل تره دَ بدل اخیستلو دَ پاره راپورته شه میدان ته راغے۔ دَ پرگنه هزاره دَ میداني او کوهستاني علاقے په قومونو او قبیلو او گرځیده۔ دَ قبائلو لښکرے ئے راجمع کړ۔ دَ سکهانو په مضبوط فوځي قلاگانو هري پور (رکشن گډه) او سرې کوټ ئے حملے اوکړلے۔ او سکهانو له ئے عبرتناک شکست ورکړ۔ دا دواړه قلاگانے ئے دَ دشمن نه خالی کړلے او یو ځل بیا دَ جلاوطن مشراني سادانو دَ قبیلے خلق خپل کلی سرې کوټ ته راغلل۔ استوگن شول۔

# دَ سرې کوټ څلورمه غزا
## او
## دَ سردار بوستان خان ترین شهادت

هرکله چه دَ سردار میهان سنگه دَ شکست خبر لاهور ته اورسیده نو دَ هغه ځای نه سردار هری سنگه نلوه یو ځل بیا دَ یو لوئی فوځ سره چه په پیاده پلټنو۔ رساله۔ او توپخانه باندے مشتمل وو۔ په ډیره

جلتیٔ اوتندیٔ سره د لاهور نه را روان شه - پرگنه هزاره ته را ورسیده ظلمونه ئے شروع کړل - مګر د بوستان خان ترین طاقت ئے ختم نه کړے شه - آخر هری سنګهه نلوه د لاهور (پنجاب) خالصه دربار ته خواست اوکړ - چه ترڅو پورے محمدخان ترین ژوندے وی په هزاره باندے قبضه برقرار ساتل ګران دی - هری سنګهه نلوه پنځه ویشت زره روپئ مهاراجه رنجیت سنګهه له ورکړے - محمدخان ترین ئے په بیچه واخیستو - په دغه ورځو کښے محمدخان ترین د راولپنډیٔ په موضع رواټ کښے نظربند وو - زهر ئے ورکړل - شهید ئے کړ - په دغے د مجاهدینو ملا ماته شوله - د دغے نه پس د هری سنګهه نلوه حوصله اوچته شوله - پیش قدمی ئے اوکړله - د خلور واړه طرفه نه ئے په سری کوټ حمله اوکړله - درے ورځے او شپے تور شر توره خونریز جنګ اوشه - د اسلام غازیانو په خپلو سرونو لوبے اوکړلے په دشمن ئے قیامتونه راکوز کړل - نزدے وه چه میدان اوګټی او سکهان په ماتے سرشی چه په دغه منځ کښے چا مخبر سکهانو له خبر ورکړ - چه فرانسیسی جرنیل ونتوره د مهاراجه رنجیت سنګهه په حکم سره د لاهور (پنجاب) نه راغلے دے - پولوے فوځ ورسره دے - پیښور ته روان دے - او دا وخت په حسن ابدال پروت دے - هری سنګهه نلوه چه دد ے نه خبر شه - موقع ئے غنیمت اوګڼړله - جرنیل ونتوره ئے سره د فوځ نه د خپل امداد د پاره را اوغوښتلو - دغه راغے د سکهانو د فوځ ملا مضبوطه شوله - طاقت ئے زیات شه - بیا ئے پښے ټینګے شولے - جنګ نوے شکل اختیار کړ - او د جنګ میدان د غازیانو د لاس نه لاړ - د غازیانو د سرسرمشران د سکهانو په بند پریوتل - "بوستان خان ترین" او ورسره نور اوۀ قبایلی سرداران ګرفتار کړے شول چه نومونه ئے دادی - ملک جلال خان دلازاک - سید سلیم شاه مشوانی (۲) سید شیر محمد مشوانی (۳) ملک عبیدالله خان جدون

(۵) ملک شیخا جدون (۶) سردار پائنده خان تنولي (۷) محمد خان ترلوک -

هرکله چه سکهانو دا ټول قبائلي سرداران گرفتار کړل - نو په توپ ئې والوزول - د دوی کلی او کورونه ئې اوسیزل - او د دوئ بال بچ ئې په قلعه هرکشن گړه (هریپور) کښې بندیوان کړل -

په دے شان چه د ترین - دلازاک - جدون - مدااړائي - پښتنو قبائلو د سر سر مشران او وړلي شول - او د قبائلي جهادیانو طاقت کمزورے شه - نو په هزاره کښې د سکهانو اقتدار نور هم مضبوط شه - او د سری کوټ - سائکوټ - برنې گرام - کره - نارګاه په مقام ئې قلاګانې جوړې کړے - او د سری کوټ پخوانے کلے ئې وران کړ - ور پسے قحط سالی راغله او علاقه نوره هم تباه شوله -

په هزاره باندے په ۱۸۲۹ء کښې د مکملے قبضے حاصلولو نه روستو تر ۱۸۲۹ء پورے د سکهانو د ظلم زور او زیاتي یو خونړے دوران تیرشوے دے - او د ۱۸۲۹ء نه روستو د سکي شاهئ تر اخری ورځو پورے بیا هم مسلمانان غازیان تر سے په قلاره نه وو - په دے منځنئ زمانه کښې چه د سکهانو برخلاف د جهاد کوم واقعات پېښ شوی دی - او په خصوصیت سره د سید احمد شهید په مشرئ کښې چه په پرگنه هزاره کښې کومے غزاګانے شوی دی - د هغې بیان به روستو راشي -

# د پنجتار غزا

مخکښې د شیدو د غزا ذکر شوے دے په د غه غزا کښې د سید احمد (شهید) په مشرئ کښې د یوسفزی قبیلے قبائلي سردارانو لکه فتح خان د پنجتار - اشرف خان د زیده - بابادی خان د هنډ - امیر محمد خان باجوړئ د زروبئ د خپلو خپلو قومي لښکرو سره ښه بهادری کړے وه -

دَ دے غزا نہ روستو سیدؔ شہید خپل مرکز هنتو مقرر کړے وو لیکن دَیوے واقعے پیښیدلو په وجه خپل مرکزئے دَ هنتو نه پورته کړه پنجتار ئے مقرر کړے وو ۔ [ دَ دے واقعے دَ تفصیل دپاره ملاحظه کړئ محمد نعیم تالیف روحانی تړون صفحه ۹۲۱ تر ۹۲۳ ] سید صاحب په جمادی الاخر ۱۲۴۳ھ مطابق دسمبر ۱۸۲۷ء کښے پنجتار ته تلے وو۔

په ۱۲۴۵ھ مطابق ۱۸۲۹ء کښے چه جنرل ونتورا دَ حسن ابدال په مقام پروت وو او دَ هری سنگهه نلوه په بلنه هزاره ته دَیوسفزو خانانو تر جنګ له لاړ او مسلمانانو له شکست ورکولو نه روستو دَ پیښور په نیت راروان شه اټک ته را اورسیده ۔ نو په ابا سیند هم راپورے وتلو ۔ دَ هنډ خان بیادی خان دَ سید صاحب نه خفه شوے وو دَ سکهانو دَ فوځ مقابله ئے اونه کړله ۔ دَ سکهانو فوځ پنجتار ته وړاندے شه ۔ مجاهدینو دَ جنرل ونتورا په لښکر حمله اوکړه ۔ سکهانو شکست اوخوړه شا شول ۔

دَ دغې نه روستو سید صاحب دَ خواؤشا علاقو مسلمانانو ته پیغامونه اوکړل ۔ غزاله ئے راتول کړل ۔ غازیان راجمع شول ۔ په دغه منځ کښے دَ سکهانو فوځ دَ جنرل ونتورا په قیادت کښے بوځل بیا په پنجتار دَ حملے دپاره رااوخوزیدل ۔ دَ سلیم خان نه وړاندے هوطالئ ته اورسیدل ۔ جنګ اونه شه سکهان واپس شول ۔ دَ مسلمانانو ګټی کلی ئے اوسیزل ۔

# دَ تربیله غزا

په پنجتار باندے چه سکهانو کومه حمله کړے وه دَ هغې نه روستو دَ سید احمد شهید دَ ملګرو مجاهدینو او دَ یوسفزی اولس دَ مقامی مشرانو او دَ پیښور دَ سردارانو په منځ کښے اختلافات زیات شول په خپل منځ کښے اړم شول ۔ تردے حده چه دَیوبل په وینو ئے هم لاس وونه

سره کړل - یوځوا ته چه دا حال شه - نو بل خوا ته د سکهانو جرنیل هری سنګه نلوه چه د هزارې په میدانی علاقه ئې قبضه وه - هغه د مسلمانانو د دې ځانه جنګئ نه فائده واخیستله - د پنځه زره فوځ سره ئې حمله اوکړله - او تربیله ئې قبضه کړله او د قبیله امازی په لاره د بونیر د علاقې د نیرلو په تکل شه - لیکن د ستهانې مشهور مرد مجاهد سید اکبر شاه باچا صاحب او نواب خان تنولی ئې زبردسته مقابله اوکړله - دومره خونړی جنګونه اوشول چه مثال ئې نه پیدا کیږی - د سکهانو فوځ ئې د امازی د غاړې نه په واپس کیدلو مجبوره کړ - بیا هم د سکهانو فوځ په دریائے سندهٔ راپورې وتلې وو - د سید په غاړه غاړه نښترته ئې مخه اوکړه - په دغه کښې چه کوم مجاهدین وو - هغه ئې ګرفتار کړل (دا مجاهدین بیا روستو سید بخانې نه تښتیدلی وو) سید احمد شهید - فتح خان د پنجتار او نور مجاهدین هم د هری سنګه مقابلې له ورغلی وو - او په دغه موقع په ټولو غزاګانو کښې ئې مړانې ښکاره کړې وې.

# د بالاکوټ غزا

د تربیلې د غزانه روستو د سید احمد شهید د مجاهدینو او د وادی پیښور د مشرانو او د پیښور د سردارانو ترمنځه اختلافات دومره حدته اورسیدل او په دغه سلسله کښې دومره افسوسناک واقعات پیښ شول چه د هغې تفصیل مونږه په خپل کتاب روحانی رابطه بحث د سید احمد شهید کښې کړې دې - د هغې واقعاتو په وجه او د بالاکوټ هزاره د خان حبیب الله خان خانخیل سواتی په بلنه په رجب المرجب ۱۲۴۶ھ مطابق دسمبر ۱۸۳۰ء کښې سید صاحب بالاکوټ ته لاړ - په شعبان المعظم ۱۲۴۶ھ مطابق ۸ جنوری ۱۸۳۱ء د هزاره د علاقې راج دواره نومې ځائ ته اورسیده - هلته دیره

شه ـ سکهانو د خان حبیب الله خان سواتی نه بالاکوټ اخیستے وو ـ سید صاحب هغه د سکهانو نه واپس قبضه کړ ـ ورپسے د سچون او دره بهوګرمنګ خلق ئے د سکهانو د پنجے نه خلاص کړل ـ او دلته ئے اویاکسان مجاهدین د درے د حفاظت د پاره پرېښودل ـ بیائے د مولوی خیرالدین شیرکوټي په مشرئ کښے مجاهدین مظفرآباد ته اولیږل ـ جنګ اوشه ـ په مظفرآباد مجاهدینو قبضه اوکړه ـ

په دغه موقع مجاهدین په شماره دولس سوه وو شه د سواتي وغیره قبائلو غازیان وو ـ بل خوا ته د سکهانو شل زره فوځ د کنورشیرسنګه په کمان کښے په مجاهدینو باندے د بالاکوټ په محاذ حمله اوکړه ـ په دغه موقع سید اسماعیل شهید د بالاکوټ نه جدا په دره بوګهرمنګ باندے پروت وو ـ او په بالاکوټ باندے یواځے خان حبیب الله خان سواتے د لړ شان لښکر سره مورچه وو ـ هغه د سید احمد شهید نه امداد اوغوښت ـ سید صاحب راغے ـ د سکهانو فوځ د مټي کوټ په کنډو باندے په بالاکوټ راواوختل ـ خونړے جنګ اوشه ـ د سید احمد شهید سره په مورچه کښے پنځولیښت غازیان ملګری وو ـ چه په هغوئ کښے د میان جي چشتي ـ نوربخش جراح ـ مولوی خان ـ بهرام خان خیل د برتهکال (پېښور) لعل محمد قندهاری او ناصرخان غازی نوموند د یاد ولږدی ـ دا پنځویشت واړه کسان او سید احمد صاحب امیرالمجاهدین ټول شهیدان شول ـ سید اسماعیل صاحب هم شهید شه او نور بے شیره مجاهدین او د هزارے د مختلفو قبائلو غازیان یکښے شهیدان شول ـ

دا واقعه په ۲۴ تاریخ د ذی القعده ۱۲۴۶ھ مطابق ۷ رمئی ۱۸۳۱ء پیښه شوے وه ـ د علاقه هزاره ګل محمد نوے یوشاعر چه په دے غزا پورے کومه چاربیته وئیلے ده د هغے څه حصه دلته

نقل کول مناسب گنړم ۔

مطلع

سید احمد بادشاه دے بولی بهرام خان مولوی
په کونهار جنګ دے کونهار شه په تا بوستان مولوی

سید احمد بادشاه یې بولی خنګ حال دے نا
دهٔ وے مردود وهم راکړے خدا ے اقبال دے نا
د اسلام ننګ نشته غالب خلق ارزال دے نا
د زیرو توپې خلاصیدے پرے شهنیان مولوی

د زیرو توپې خلاصیدے چه زهار وو نا
مزکه اسمان شول ترکني چه دوند غبار وو نا
د مولوی صاحب په لاس کښے ذوالفقار وو نا
چه له مردود سره ئې شه جنګ په سپین میدان مولوی

چه له مردود سره ئې شه جنګ د لعل محمد قندهاری
سید نو ماتے چه اوکړه ولاړ حیران کسیری
د جنګ تدبیر برابر نه شه داوه ورځ دلری
پوره ئې نه وه ژوبل لاړ شه ناصر خان مولوی

دا ناصر خان غازی د توریو مړ وو خلقه
غازیانو هیڅ کے ونه کړه پرلړے وو خلقه
نکی ئې اوکړه چه په نوم ګبرے وو خلقه
چیرے ئې پوره نه کړے روان چه شول سیدان مولوی

سید احمد شاه بادشاه روان شه کوز شو لکر وته
کفار پرے ویر شول غلیه غوږ شه خبرے وته

هورو پیالے راوړے شه ور د جنت لرے وته
خدای دے له سیلے تاسو کاندی جنتیان مولی

# د پېښور دویمه غزا

مخکښې دا ذکر شوے دے چه په پېښور ښهر باندے څلور بارکزی سرداران پیرمحمد - یار محمد - سلطان محمد - سید محمد حکمرانان وو - چه یار محمد د مجاهدینو په جنګ کښے مړشه نو بیا دا باقی پاتے درے رونړه په پېښور براته وو - په ۱۸۳۳ء کښے چه امیر دوست محمد خان په کابل باندے د خپلے باد شاهئ اعلان اوکړو او کال پس په ۱۸۳۴ء کښے د شاه شجاع په خلاف د جنګ کولو د پاره قندهار ته تلے وو - نو د پېښور سردارانو د رنجیت سنګھ سره ساز باز جوړه کړه چه د سکهانو په امداد باندے د دوست محمد خان نه کابل اونیسی - رنجیت سنګھ د دے موقعے نه فائده واخیسته او د جرنیل هری سنګھ نلوه په کمان کښے د سکهانو یو لوئی فوځ ئے پېښور ته را اولیږه - او په مئی ۱۸۳۴ء کښے سکهانو په پېښور ښهر باندے قبضه اوکړوله - ترد غه وخته سلطان محمد خان د سکهانو د باجګذار په حیثیت د پېښور حاکم وو - لیکن چه هری سنګھ راغے او د پېښور ښهر د ګورنرئ اختیارات ئے په خپل لاس کښے واخیستل - نو په ځائ د دے چه د سلطان محمد خان د پاره په کابل باندے فوج کشی اوکړی، او لنډ کار ئے دا اوکړو چه سردار سلطان محمد خان او د هغه دواړه رونړه سردار پیر محمد خان او سردار سید محمد خان ئے د پېښور نه اوکښل - دا درے واړه سرداران د کابل په لور روان شول او په جلال آباد پریوتل - نیت ئے دا وو چه تیارے به اوکړی که امیر دوست محمد خان په قندهار کښے شکست اوخوری نو دوئ به په کابل حمله او قبضه اوکړی - لیکن هلته چه په قندهار کښے

چه دوست محمد خان فتح اوکړله . او بریالے کابل ته راغے نو دا دواړه رونړو مبارکئ له ورغلل.

په کال ۱۸۳۵ء کښے امیر دوست محمد خان د پیښور د فتح کولو په غرض د کابل نه را روان شه . خپل رور سردار سلطان محمد خان له ئے لس زره فوځ ورکړو . ورانده ئے را اولیږو . وزیسے پخپله راکوزشه په خیبر را تیرشه . قبائلی لښکر ورسره وو . په شماره غلوینبت زره ته رسیده . لس زره فوځ د سردار سلطان محمد خان سره وو ټول پنځوس زره پیاده او سواره فوځ وو . د پیښور ښهر نه قبلے طرف ته د نهه میله په فاصله د شیخانو کلی په میره کښے مورچه شول . چه سکهان ترینه خبر شول . دوئ هم تیارے اوکړے په دے موقع رنجیت سنګه د خپلے فطرتی چالاکئ او سیاسی حکمت عملی نه کار واخیست . هرلینګ نوم یو امریکنے فیرنګے او د سکهانو اعتباری سړے فقیر عزیز الدین پنجابے دلا هور او سید د نکے دا دواړه ئے په ایلچی توب (استاذ کیرنه) د امیر دوست محمد خان فوځی کیمپ ته اولیږل . په ښکاره یاندے د امیر دوست محمد خان سره مخبرے اترے کول وو او په پړده کښے د سردار سلطان محمد خان لمسول وو . او په دے جوړ د غازیانو په لښکر کښے نفاق اچول وو . دغه امریکنے هرلینګ او بد بخته مسلمان فقیر عزیز الدین لاهورے په خپل ناپاک مهم کښے کامیاب شول . سردار سلطان محمد خان لس زره غازیان د ځان سره کړل او د شپے په تیاره کښے د مسلمانانو د فوځ نه راجدا شول . د سکهانو فوځ سته را واوختل . په دے جوړ چه د قبایلی مهمندو د پښه یالئ خراته ئے مخه اوکړه . د امیر دوست محمد خان سره داخیال پیدا شه چه سردار سلطان محمد خان چه د لس زره فوځ سره د قبایلی مهمندو په لاره کابل ته روان شوے دے هسے نه چه په کابل قبضه اوکړی . چنانچه په دغه خیال

واپس شه او میدان جنګ خوشې پاتې شه۔ مقامي طور چه کوم غازیان پاتې دو لکه ختټک ۔ افریدی ۔ خلیل ۔ مهمند ۔ داؤدزی ۔ ملاکوری۔ شنواری یوسفزی ۔ مندنړ هغوی مقابله اوکړه ۔ د اولسی غازیانو سره چه کومه وسله وه هغه د نشت برابر وه ۔ په دغه موقع د پښتو ژبې مشهور شاعر عبدالعظیم بابا رانې زی موجود وو ۔ هغه په ډیر درد ناکو الفاظو د غازیانو د حالت منظر کشي کړې ده ۔ او د وادی سمه سوات د وه روحاني پیشوایان ۱۔ حضرت جي صاحب د کوټهې (مردان) ۲۔ او باباجی صاحب د سوات هم موجود وو۔ د غازیانو رهنمائي ئې کوله ۔ غازیان ښه په بهادرئ اوجنګیدل لیکن د بارکزو سردارانو د میدان جنګ نه د تښتیدلو او د غازیانو سره د دسیسې د کولې په وجه د جنګ میدان سکهانو له په لاس ورغے او په دے شان سره په ۶ رمئ ۱۸۳۴ء په پیښور ښار باندے رنجیت سنګهه قبضه اوکړله ۔ او د رنجیت سنګهه ځوئ سردار نونهال سنګهه د پیښور ګورنر شه ۔ میاں ولی محمد علیه الرحمة چه د علاقه چچ د شمنرو نوښے کلی او سید و ګے وو او په دے غزا کښې شامل وو ۔ د هغه دا لاندینې اشعار د لوستلو قابل دی ۔ د غازیانو په صفت او د غزا په بیان کښې وائی ۔

| | |
|---|---|
| تبرے تورے ئې په ملا کښې اویزانده | چقماق توپک ئې پاس په اوګو باندے |
| کمربند سره دے ملا د دوئ تړلے | او سرے سترګې ئې په دېنو وے لړلے |
| په دیدن سره راغلي وو درویشتا | د دښمن به پرتو غالب شه ورته سست |
| په شوق ټه کښې ووهیلاکه لکه باز | ترے مرغئ غوندے دښمن کاوه پرواز |
| چه به ئې چغه دښمن دا وریده په غوږ | غوږ زاوه به ئې د خولے نه ورنه زړه |
| مومنان ښه اوچت شول دهر لوری | د دښمن ته ئې شو دل د اسمان ستوری |
| پسینې تورے ګویا و ځ ده له اسمانه | سور باران ځینې د دینو وو روانه |

هېبقل تورو کښې برېښنا وه لکه برق | په تلوار به ئې دښمن کاندلو غرق
هرطرف ته د مرګي نعرې سوزوې | لکه ګورګې په سرو اېښې آرې وې
چې ګذار به ئې په دښمن کړ د کوتک | هيڅ حاجت نه وو د تورې د ټوپک
روغ تندى باندې به ئې دوا هيڅ يو وب | مرګ راد نه به پرې پرېوت په يو غرب
په ګذار کښې هسې درو ند وو لکه ګټ | نوم ئې اېښې وو پرې باندې "دښمن چټ"

دښمن وتښتاوه سر په دوا پړه لاسه
چې کوتک نه دې وسله ده د هراسه

تر وخت چه امير دوست محمد خان کابل ته واپس شه - او غازيانو
عاجزانو په تش لاس په کوتکو نو جنګ اوکړ - مګر بايلات ئې اوکړه نو سردار
سلطان محمد خان واپس شه - پېښور ته سکهانو له راغې په دې طمع چه د عهد
مطابق به د پېښور حکومت ورکړي - ليکن سکهانو د پېښور ګورنري نونهال سنګهه
له ورکړې وه - سلطان محمد له ئې د خالصه په علاقه کښې څه لږ جاګير
ورکړ - د خپل رور او مسلمانانو غازيانو سره ئې غداري اوکړه - مګر ګټه ئې
اونه کړله - او نه يوائې دا بلکه د تاريخ مخزن پنجاب جلد ۲ صفحه ۱۸۴ د روايت
مطابق په ۱۸۳۵ ع کښې د سردار نونهال سنګهه په حکم د علاقه پېښور جاګير
هم د سردار سلطان محمد خان نه واخيستلې شه - ضبط ئې کړ - او خالصه سرکار
اوګرځولې شه - سردار سلطان محمد خان ئې د پېښور نه بهر اوکښلو د پنجاب
په علاقه کښې رهتاس نومې قلعه ته اوليږلو - ډېره موده هلته وو - بيائې
کوهاټ ته دا و ستلو -

د سردار نونهال سنګهه د ګورنرۍ نه روستو په ۱۸۳۵-۳۶ ع کښې سردار
هري سنګهه نلوه د پېښور ګورنر مقرر کړې شه نو د پېښور په علاقه باندې
د سکهانو قبضه ټينګه شوله - او بله دا چه د کابل د طرف نه چه د سکهانو ته
ذره کښې د خپلې کومه ډېره وه - تر ډېره موده پورې څه هم ختم شوله

او د دغو نه پس دے جابر سکھ حکمران چه په مسلمانانو باندے هر قسمه ظلم نه کوولے شول هغه ئے اوکړل۔

هری سنګھ یو تجربه کار فوځی جرنیل وو۔ په پېښور باندے د قبضے کولو او د پېښور نه د بارکزی سردارانو د بے دخله کولو نه دو ستونځے د وادی پېښور د حفاظت او مستحکم والی طرف ته توجه را اوګرځوله

۱۔ د کابل د طرف نه د غازیانو د حملو د مخه نیولو دپاره ئے په ۱۸۳۶ء کښے د جمرود په مقام قلا جوړه کړه۔

۲۔ د پېښور ښهر تاریخی قلعه "بالاحصار" چه د دغے نه وړاندے د رنجیت سنګھ د اولنی حملے ۱۸۱۸ء او دویمے حملے ۱۸۲۳ء په دوران کښے ورانه شوے وه۔ هغه ئے د نوی سرنه بیا دوباره مضبوطه جوړه کړله د دے نه وړاندے امیر تیمور د بالاحصار د قلا دیوالونه د پخو خښتو جوړ کړی وو۔ او د سکهانو په اولنو حملو کښے سکهانو د بالاحصار د دیوالونو خښتی د پېښور ښهر په خلقو خرڅے کړے وے نو هری سنګھ اګرچه دوباره آبادی پخه جوړه نکړے شوه لیکن کچه آبادی ئے ډیره مضبوطه جوړه کړے وه۔

۳۔ د پېښور او اټک ترمنځه د سړک د حفاظت په غرض یوه قلا ئے د پیر سباق په مقام جوړه کړه۔ او دویمه قلا ئے د جهانګیره په مقام جوړه کړه د خیرآباد په مقام د مخکښے نه قلا موجوده وه۔ هغه ئے مضبوطه کړله۔

۴۔ د قبائلی مهمندو او اتمان خیلو د حملونه د بچ کیدلو په خاطر ئے دوکې او مهمندو په سرحد د شبقدر په مقام یوه مضبوطه قلا د "برج هری سنګھ" په نوم جوړه کړه۔

هری سنګھ نلوه د خپل حکومت په دوران کښے د موجوده ضلع پېښاور په علاقه کښے داؤدزی۔ خلیل۔ مهمند۔ ګګیانړی۔ ماموند زی۔ او د ضلع

مردان په علاقه کښې د مندنړ او یوسفزو په علاقه کښې ناختونه اوکړل -
کلی ئې تالاکړل - د پښتنو آبادی خصوصاً جماعتونه (مسجدونه) ئې وران کړل
په جماتونو کښې ئې اسونه . ټیراو تړل - د پیښور ښهر د مشهور جمات، جامع
مسجد مهابت خان سره ئې هم دغه د بې حرمتۍ سلوک کړے وو - دا یو دا سے
طوفان وو چه د میدانی علاقے پښتانه قبایل خلق خپلو هغه درونړو له
په کډه لاړل - کوم چه په غرونو کښې آباد وو - د خلیلو ، مهمندو ، داؤدزو
پښتانه د بره مهمندو ، شلمان او خیبر غرونو ته اوختل او د هغه ځای
نه ئې په سکهانو حملے شروع کړے -

# دجمرودغزا

هر کله چه د وادئ پیښور د میدانی علاقو او ورسره د ملحقه
قبائلی علاقو خلق د هری سنګهو نلوه د ظلم نه ډیر تنګ شول - نو په
سنه ۱۸۳۷ئه کښې د سکهانو په خلاف د غزا کولو مهم شروع شه - په دغه
موقع د امیر دوست محمد خان ځوی غازی محمد اکبر خان هم د یو لوئ لښکر
سره غزا له راغے - چه لنډی کوتل ته را اورسیده - نو د درهٔ خیبر شنواری
ملاګوری - آفریدی غازیان هم ورسره ملګری شول - په جمرود ئے حمله
اوکړله - د بل طرف نه هری سنګهو نلوه هم د مقابلے د پاره میدان له راغے
جنګ په دوه طرفه خورشه -

(الف) څه حصه فوځ د تخت بیګ په مقام جنګیده -

(ب) او څه حصه فوځ د جمرود او قدم په منځ کښې جنګیده -

هری سنګهو پخپله د هغه فوځ کمان کولو چه د جمرود او قدم په
منځ کښې ئې جنګ کولو - بل خوا ته د مسلمانانو غازیانو لښکر هم د سکهانو
په فوځ د دوه طرفه نه حمله کړے وه او په سکهانو ئې قیامت راګوز کړے وو -

(۱) غازي محمد اکبرخان د غرب پر لوانه (مغرب) د طرف نه حمله راوړې وه۔

(۲) او غازي شمس الدين خان د قطب (شمال) د طرف نه چپاو کړی وو

د جنګ په میدان کښې هري سنګه نلوه په آس باندې سور وو۔ يو پښتون غازي پرې د توپک ګولۍ ورخوشې کړه۔ ګولۍ د سايه نامه کښې پرې اولګېده۔ د آس د شانه سر د لاندې راګذار شه۔ سکهان سپاهيان وارخطا شول۔ د هري سنګه لاش يې راپورته کړ۔ د جمرود قلا ته يې اورساوه۔ درې ورځې يې د هغه د مرګ خبر پټ اوساته۔ ليکن آخرحال ښکاره شه او د سکهانو پرې ملامات شوله۔

هغه هري سنګه چه د قصور (پنجاب) نواب قمرالدين خان د هزاره محمد خان ترين او بوستان خان ترين او د هغوي ملګري او نور بې شميره قومي او قبايلي سرداران د هغه د لاسه مړه شوي وو او د پښتون قوم ملا يې ماته کړې وه۔ هغه د يو پښتون د لاسه قتل شه۔

د سنه ۱۲۵۲/۵۳ هـ مطابق سنه ۱۸۳۷ء دوستو مهاراجه رنجيت سنګه يو ځل بيا بارکزي سرداران را اوغوښتل۔ هشتنغر يې سردار سيد محمد خان له ورکړ۔ په دوآبه يې سردار پير محمد خان کښېناوه۔ او کوهاټ يې سردار سلطان محمد خان له ورکړ۔ او پېښور ښهر او خوا و شا نزدې علاقې يې د هري سنګه نلوه جانشين سردار تيجاسنګه له ورکړې۔ د پېښور ګورنر يې کړ۔ او په پېښور او مردان کښې يې ځاي په ځاي قبايلي مشرانو او ملکانو له جاګيرونه ورکړل۔ په دغه سلسله کښې په خاص طور سره د خليل او مهمندو د علاقې کنړ و مشرانو له ملکۍ او اختيارات ورکړل۔ چه د غرو نو د قبايلو د حملو نه پرې ځان بچ کړي۔ ليکن سردار

نیجا سنگه زیاتے ورځے پاتے نه شه - وروسته سردار دهیان سنګه دیو معتبر فوځ سره پیښور ته راغے مګر هغه هم ټینګ نه شه - په هغه پسے مهاراجه رنجیت سنګه اولګیده یو اطالوی جرنیل اوی تي بایل (ابوطبیله) راولیږه د پیښور د ګورنرۍ کړ- دا ګورنر د ۱۸۳۸ نه تر ۱۸۴۲ پورے په پیښور باندے حکمران وو - او د پیښور ښهر په چار چاپیره علاقو ئے تاختونه کول -

# د ټیرې غزا

هر کله چه ابوطبیله په پیښور باندے ګورنر مقرر کړے شه نو د یوسفزو په علاقه او د کوهاټ په علاقه ئے په خاص طور سره یرغلونه شروع کړل - د دغه په ملک کښے یوه غوغا پورته شوه - د خټک نامه غازیان د ټیرې په مقام را جمع شول - د تاریخ مخزن پنجاب جلد ۲ صفحه ۴۸۶ و ۴۸۷ د بیان مطابق غازیان په دومره زور اوشور کښے راجمع شوی وو چه د هغوی د مقابلے د پاره رنجیت سنګه یخپله تلے وو - خونړے جنګ او شه په اولنی جنګ کښے سکهانو له داسے شکست ورکړے شه چه د کوهاټ پورے په تیښته را اوزغلیدل - سکهانو د خپل امداد د پاره نور فوځ را اوغوښتلو - بیا ئے دوئمه حمله اوکړله - بیا جنګ اوشه - د دواړه طرفه نه بے شماره مړی اوشول - د غازیان تعداد کم وو - په شا شول - دا واقعه په ۱۸۳۹ء کښے پیښه شوے ده -

# په بنوں حمله

رنجیت سنګه چه د ټیرې د جنګ نه اوزګار شه نو په بنوں ئے حمله اوکړله - دوے نه ورپاندے په ۱۸۱۹ء کښے رنجیت سنګه دا علاقه

دهغې وه - په ۱۸۳۹ئه کښې یو ځل بیا په دے علاقه راغے -

دلته دا یاد لرل پکار دی چه د سکهانو د حکومت طریقه دا وه چه په یوه علاقه به ئے حمله اوکړله - لوټ مار به ئے اوکړ - کلی تالا - کورونه وران - خلق څه وژلی - څه ژوبل کړی - که دوی به شکست اوخوړ - نو او به تښتیدل - اوکه مقامی خلق به ئے اوواهه - نو د هغه علاقے څوک مشر ملک، خان یا سردار به ئے په هغه علاقه حکمران کړو - بلکه حکمران څه هغه علاقه به ئے په ټهیکه او اجاره ورکړله - چه دومره ذره روپئ به ته سرکار خالصه له هر کال ادا کوے - او نه به د علاقے د خلقو د کورونو په حساب دومره خراج وصول کوے - سکهانو به لاړل اوکال دوه پس به ئے د خپل خراج وصول کولو د پاره بیا لشکرکشی کوله - چنانچه په ۱۸۳۹ئه کښې د مهاراجه رنجیت سنګهه دا لشکرکشی هم د دغه قبیلے وه - د سکهانو دا طریقه د کار د انګریزانو تر زمانے پورے بدستور جاری وه - لفټننټ کرنل ایډورډس ناظم بنوں (۱۸۴۶ئه) په خپل کتاب صفحه ۲۶/۲۷ کښې لیکی هغوی تجویز داوو - چه د سکهانو هغه پخوانی تجویز چه په هر دویم او دریم کال دے لښکرکشی اوکړے شی او په زبردستی دے خراج ، مالیه چیتهی وصول کړے شی - او س دا طریقه پریښودل پکار دی - او د بنوں علاقه په مستقل طور سره رعیت کړل پکار دی " د مسټر ایډورډس د دے بیان نه حمو نږ د خبرے تصدیق کیږی -

رنجیت سنګهه د بنوں د علاقے نه د مروت او عیسی خیل علاقو ته او بیا د ډیره اسماعیل خان علاقو ته اووتلو - مقابله ئے او نه شواه البته په ۱۸۲۹ئه کښې د کس خان ابن رن مست خان ابن شاه بزرګ د بازار احمد خان او سید ونکی د شیر شلے څوانانو سره موضع موچی علاقه میانوالی ته د شاه نواز خان امداد له تلے ور - او د سکهانو په خلاف ئے جنګ کړے وو

(صولت افغانی ص۵۲۲)

په ۱۵م تاریخ د هاړ سمت ۱۸۹۶ بکرمي مطابق ۱۷م جون سنه ۱۸۳۹ء مهاراجه رنجیت سنګھ مړشه او د هغه د مرګ نه پس تر د هغه ځامن کهړک سنګھ نونهال سنګھ ـ شیر سنګھ او دلیپ سنګھ پرله پسې د سنه ۱۸۳۹ء نه تر سنه ۱۸۴۹ء پورې په دے ملک حکمرانان وو ـ چه د دوی په زمانه کومے غزاګانے شوی دی د هغے حالات به په اختصار سره بیان کړو ـ

# د عیسی خیلو غزا

په سمت ۱۸۹۶ بکرمي کښے سردار نونهال سنګھ د عیسی خیلو په علاقه حمله کړے وه او خاص د عیسی خیلو په مقام ئے د سکهو فوځ د پاره یو قلعه (تهانړه) جوړه کړے وه ـ د سکهانو په ظلمونو کښے لویے ظلم دا وو چه د مسلمانانو په مذهبي امورو کښے به ئے دخل ورکولو ـ اذان وئیل به ئے بند کړو ـ د جماتونو بے عزتي به ئے کوله ـ چنانچه د دے قسم واقعاتو په وجه په سنه ۱۸۴۲ء کښے د پرګنه عیسی خیل ضلع بنوں خلق راپورته شول ـ د سکهانو په تهانړه ئے حمله اوکړله ـ په قلعه کښے چه هر څو مره سکهان وو اکثر ئے قتل کړل ـ او قلا ئے محاصره کړله ـ د منکیره نواب احمد خان کوشش اوکړو چه کوم سکهان ګیر شوی وو ـ هغه ئے د قلا بندۍ نه آزاد کړل ـ په ابا سینده ئے پورے ایستل ـ لیکن د سکهانو په دغے تسلي اونه شوه ـ د سردار سوچیت سنګھ په کمان کښے د یو لوی فوځ سره د عیسی خیلو په علاقه ئے حمله اوکړله ـ چه څه وخت د سکهانو د حملے اوازه عوره شوله ـ نیازي قوم هم د عیسی خیل ملا تړله د غزا میدان له راغے او نواب احمد خان هم د غازیانو ملګرتیا اوکړله ـ خونړے جنګ اوشه ـ مګر میدان سکهانو له په لاس ورغے ـ احمد خان سره د هلکرو نه دوه ... او وزیر ز ملک ... اوکړه

سکهانو دا ملک دیوان لکهی مل ته په اجاره ورکړ- په دے پسے یوکال پس په ۱۸۴۳ء غازی دلاسه خان چه په عیسیٰ خیلو کښے د کشرانو خانخیلو د کورنۍ یو بهادر شاه خیلے وو- هغه راپورته شه- د عیسیٰ خیل او خواؤشا نورو قبائلو لښکرے جمع کړ- د سکهانو په قلعه او اجاره دار دیوان لکهی مل ئے حمله اوکړله- د سکهانو فوځ د جرنیل تاراچند په کمان کښے مقابلے له راغے- غازی دلاسه خان پرے د غازیانو لښکر ورواچاوه- د تورو جنګ وو- په دوه لاسی تورے ئے اوچلولے- د سکهانو سپه ګکر وٹے لوبے اوکړلے- جرنیل تاراچند شکست اوخوړو- غازیان بریالی شول- اوکوم غازیان چه یوکال وړاندے د سردار سوچیت سنګو د جنګ په ورځو کښے جلاوطن شوی وو- په دوړو اووزیرو کښے پراته وو- هغه بیرته خپلو کلو اوکورونو ته راغلل- (صولت افغانی صفحه ۵۶۷ و ۵۸۰)

د دے نه پس مونږه د هغه غزاګانو او غازیانو ذکر کوو چه د ۱۸۴۲ء نه روستو تر ۱۸۴۹ء پورے د هزاره په علاقه کښے د سکهانو په خلاف ئے کړے وے-

# حبیب الله خان خانخیل سواتی

په هزاره کښې د سواتی خانخیلانو یوه کورنئ ده چه مشر ئې بهائی خان وو - په دے خاندان کښې حبیب الله خان ولد سعادت خان ولد محمد سعید خان ولد مراد خان ولد بهائی خان په سنه ۱۸۲۲ء / ۱۲۳۸ھ کښې مشهور قبائلی سردار وو - کړهی حبیب الله د ده په نوم یادیږی

۲ | په سنه ۱۸۱۴ء / ۱۲۳۰ھ کښې راجه رنجیت سنګه په علاقه چچ، هزاره اټک باندے قبضه کړے وه - په سنه ۱۸۲۷ء / ۱۲۴۳ھ کښې چه سکهان د پیړجا د علاقے په جنګ کښې مصروف وو - د سواتی قوم خلقو د حبیب الله خان په مشرئ کښې د سکهانو په قلعه شنکیاری حمله اوکړه او ډاکرو ر ټکرئ - کونش علاقے ئے او وهلے -

۳ | د حبیب الله خان په درخواست باندے د هزاره د علاقے نه د سکهانو د عمل دخل ختم کولو دپاره سید احمد شهید د علاقه خدوخیل د پنجتار نومے مقام نه راغے - د مجاهدینو لښکر ورسره وو - دے غازیانو په اولنئ حمله په مقام د کونش، بهوګرمنګ او بالاکوټ کښې د سکهانو دوه قلعه ګانے فتح کړلے - په سنه ۱۸۳۰ء / ۱۲۴۶ھ کښې د سید احمد شهید او سید اسماعیل شهید دواړه لښکرے په مقام د بالاکوټ یو ځاے شولے - سواتی او کاغانی غازیان هم ورسره ملګری شول - د دوی مقابلے له سردار شیر سنګه د یو مضبوط فوج سره بالاکوټ ته راغے - د جمعے په ورځ جنګ شروع شه - د بالاکوټ په میدانی حصه «ماټکائی» کښې خونړی جنګونه اوشول - په سنه ۱۸۳۱ء / ۱۲۴۶ھ کښې سید احمد شهید او سید اسماعیل شهید هم دلته د خپلو دیارلس سوه مجاهدینو

سره شهيدان شول

۴ — په سنه ۱۸۴۳ء (۱۲۶۰ھ) کښې سردار ګلاب سنګهـ والئ کشمير خپل جرنيل
ديوان ابراهيم له فوځ ورکړ چې په هزاره حمله اوکړي -
سواتي او کاغاني سيدانو پرے حمله اوکړه - دَ سکهانو ټول فوځ ئے
په يوه کنده (کهـ) کښې قتل کړ - دغه کنده تراوسه په کهډ بيله نامه
مشهوره ده - ددے غزا مشر حبيب الله خان وو -

۵ — په اګست سنه ۱۸۴۳ء (۱۲۶۰ھ) کښې حبيب الله خان دَ سکهانو په قلعه
کهوړي حمله اوکړله - غلام محي الدين ناظم کشمير دَ سکهانو
دَ امداد دپاره فوځ راوليږه - دَ مجاهدينو اوغازيانو لښکر شکست
اوخوړ - حبيب الله خان پکښې شهيد شه -

۶ — دَ حبيب الله خان دَ شهادت نه روستو دَ موضع کهوړي
رئيس راجه سلطان خان (اخ حبيب الله خان شهيد درے واړه
ځامنو (محمد امين خان - امير الله خان - دوست محمد خان) او دَ دوی نه
علاوه دَ کوهستاني علاقو نورو غازيانو دَ خپلو قبائلي سردارانو په
مشرئ کښې دَ سکهانو په قلعه کهوړي حمله اوکړه - فتح ئے بيا موندله
قلعه ئے قبضه کړله - ښهر ئے اوسوزولو -

۷ — دَ مسلمانانو غازيانو سره دَ راجه زبردست خان ځامن او
دَ اوړي او دوبهټه دَ راجګانو په مشرئ کښې دَ نورو غازيانو
دلښکرو په ملګرتيا دَ مجاهدين اسلام طاقت زيات شه - په نومبر سنه ۱۸۴۳ء (۱۲۶۰ھ)
کښې ئے په بارامولا او شوپور باندے قبضه اوکړله - وروسته ټول کشمير
ئے فتح اوتالان کړ - دَ سکهانو دَ فوځ مسلمانانو سپاهيانو بغاوت
اوکړ - او دَ کوهستاني علاقو ماتحت سردارانو هم دَ حکم منلو نه
انکار اوکړ -

۸ — په ۱۸۴۶ء (۱۲۶۲ھ) کښې چه دَ سکهانو او انګریزانو اولنئ جنګ شروع شه ـ نو دَ سید احمد شهید ملګرو مجاهدینو او دَ هزاره دَ سواتیانو لښکرے دَکاغان په کوآئ کښې جمع شولے ـ دَګړهی ـ شنکیاری ـ آګرور ـ بهیرکنډ په مقاماتو کښې چه دَ سکهانو قلعه ګانے وے هغنر ئے قبضه کړلے ـ او دَ سکهانو محصور فوځیان ئے قتل کړل ـ

# (۳) خان سعدالله خان

سید خانی ، علی زئ ـ مندنړ یوسفزائے

---

دَ سید خانی قوم خلق چه موضع کهلابټ تحصیل هري پور ـ ضلع هزاره کښې آباد دی ـ دَ دوئ مشران دَ اباسیند دَ مغربي علاقے دَ تحصیل صوابئ دَ موضع ټوپئ او کوټهی نه راغلی دی ـ په دے خاندان کښې دَ دوئ دوه مشران نیکونه سید خان او خوشحال خان هزاره ته راغلی وو ـ

۱ — په ۱۸۲۲ء (۱۲۳۸ھ) کښې ملک امیرخان په دے خاندان کښې قبائلی سردار وو ـ په کهلابټ کښې اوسیده ـ دَ ملک امیرخان دَ کشر روے نوم سعد الله خان وو ـ دَ سکهانو په خلاف چه جنګ شروع شه نو سعدالله خان او دَ هغه رور مواس خان دَ کهلابټ نه پورته شول ـ په مقام دَ ناړه ئے دَ جنګ مورچه اونیوله ـ لکه چه مخکښې ذکر او شه محمد خان ترین هم په دغه موقع په مقام دَ ناړه کښې مورچه نیولے وه

۲ — هرکله چه خان سعدالله خان په ناړه کښې مورچه او نیوله نو خیل ورارہ حید رخان او دَ هغه ځامن معظم خان ـ اختیار خان او دَ خان سعدالله خان خیل ځوی میرزمان هم ورسره وو ـ دَ

دغې نه علاوه دَ مواس خان درې کشران رورنړه، عبدالله خان - قلندرخان ارسلا خان هم ورسره وو - اوترين - سيد خانی - مشوانی قومونو نه علاوه داندوال نور قوم غازيان هم ورسره وو - دَ سکهانو دَ فوځ دَ جرنيل ديوان رام ديال سره ئې جنګ اوشه - رو په دغه جنګ کښې دَ خان سعدالله خان ته کاميابي حاصله شوله - دريم جنګ ئې دَ مائی سداکور او جرنيل الهٰی بخش سره اوشه - په دغې کښې هم خان سعدالله خان ته فتح حاصله شوه -

دَ دغې نه روستو سردار هری سنګه نلوه دَ يولوئ فوځ سره دَ خان سعدالله خان په مرکزی مقام ناړه حمله اوکړله - ليکن دَ سکهانو فوځ شکست اوخوړ - اوغازی سعدالله خان ته فتح حاصله شوه -

۳ دَ هری سنګه نلوه دَ شکست نه روستو مهاراجه رنجيت سنګه چه په خپله په هزاره باندې فوج کشی اوکړله - ناړه - سری کوټ کيا اوکهبل ئې اوسيزل - لکه چه مخکښې ذکر اوشه - محمد خان ترين سربلند خان تنولی - شاه محمد خان رئيس مشوانی ئې په مکر او فريب نظربند کړل - ليکن خان سعدالله خان او دَ هغه خوئ ميرزمان خان - او دَ هغه دَ تره خوی مواس خان دَ ناړه نه او وتل - دَ اباسين نه پورې غاړه مهابن ته لاړل - چه يوه هفته پس رنجيت سنګه بيرته اوګرزيده نو مواس خان راغې - په کهبل ديره شه - سعدالله خان په موضع کوټها صوابئ ميره کښې استوګن شه - ارسلا خان په موضع توپئ کښې پاتې شه وروستو خلور کاله دَ سيد خانی قوم دَ خانانو او دَ سکهانو دَ فوځونو تر منځه پرله پسې جنګونه اوشول - او دَ سکهانو مشهور قلعه "کانې قلعه" بدنو - قلعه بهاروکوټ اوقلعه سری کوټ ئې خرخوټله اوسيزلې -

۴ سردار هری سنګه دَ سيد خانی خانانو دَ پرله پسې جنګونو دَ

لاس ته مجبور شه - په خان میرزمان خان ولدخان سعدالله خان سره جرګه اوکړه - صلح ئې ورسره اوکړله - لیکن دغه صلح د سکهانو په بې لوظئ ماته شوله - خان میرزمان د انګریزانو ... ل په بتدائی ورځو سنه ۱۸۴۸ء ۱۲۶۴ھ کښې وفات شه - او د هغه نه روستو د هغه مشر ځوی خانی زمان خان قومی او قبائلی سردار منتخب شه - او چه کله په سنه ۱۹۰۶ء ۱۳۲۴ھ کښې "خانی زمان خان" وفات شه نو د هغه په ځائ د هغه مشر ځوی محمدامان خان ګدی نشین شه -

د خانی زمان پنځه ځامن وو - ۱ محمد امان خان ۲ محمدجان خان ۳ خواص خان ۴ ناصرخان ۵ شیرمحمدخان - په دوی کښې د خان ناصرخان د ځوی نوم خان فخرالزمان خان دے چه نن ورځے د کرم ایجنسئ پولټیکل ایجنټ دے - او دا یو داسے نامورخاندان دے چه د اسلام په لاره کښې ئې شاندار جهادونه کړی دی -

# غُلام خان ترین

په سنه ۱۸۴۶ء کښې چه د سکهانو او انګریزانو ترمنځه اولنئ جنګ شروع شه - په دغه ورځو په پرګنه هزاره باندے د سکهانو د طرف نه دیوان مول راج حکمران وو - د هزارے مسلمانانو د انګریزانو سکهو ترمنځه اختلاف او جنګ نه فائده اوچته کړه - د سردار محمدخان ترین ځوئ غلام خان ترین را پورته شه - د ترین - سید خانی - علی زی - دلازاک - مشوانی وغیره قومونو غازیان ئې د هری پورسره نزدے په مقام د جاګل راغونډ کړل او په تاریخ د ۷ مارچ سنه ۱۸۴۶ء مطابق ورځ دوشنبه ۸ ربیع الاول سنه ۱۲۶۳ھ د سردار غلام خان ترین په مشرئ کښې د مسلمانانو لښکر په هری پور ښهر حمله اوکړله - د هرکشن ګړه قلا او د هری پور ښهر دوائړه تالاکړل - بیا ئې په

اور باندے اوسیزل۔ او په دے شان سره په بنبهن باندے غلام خان
ترین قبضه اوکړله

په ۱۶ر اپریل ۱۸۴۶ء ورځ د هفتې ۱۹ر ربیع الثانی سنه ۱۲۶۲ هـ
دیوان مول راج او سردار اتم سنګهه دواړو سره د خپل فوځ د هزاره
میدانی علاقه مجبوراً پریښودله۔ او د حسن ابدال په طرف ئے مات
اوکړله۔

د سکهانو د شکست نه وړاندے چه غازیان په مقام د جاګل
جرګه شوی وو۔ نو سید اکبر شاه ترمذی چه تر دغه وخته پورے "امیر جهاد"
وو۔ دا اوغوښتل چه د ده په ځائے دے غلام خان ترین امیرالجهاد
منتخب کړے شی۔ چنانچه دغه تجویز منظور کړے شه۔ غلام خان ترین
ئے خپل مشر، قومی سردار (د غزا امیر) مقرر کړو۔ او سید اکبر شاه باچا صاحب
او نواب خان تنولی دواړه ئے وزیران مقرر شوی وو۔ او د هری پور غزا
د دوئ په مشرئ کښے شوے وه۔ د هزاره د علاقے عوام دغه دور ته
"لنډه مسلمانی" وائی۔ ځکه چه زر تر زره ئے پسے د انګریزانو دور راغے
او د دغه اسلامی حکومت دوران ختم کړے شه۔

د دیوان مول راج او سردار اتم سنګهه د شکست نه روستو بیا
جرنیل ګلاب سنګهه راغے۔ او د هغه نه روستو سردار هری چند یوځل بیا
هزارے ته راغے۔ او د دے دواړو سکهانو جرنیلانو په دوران کښے چه
په دغه منځ کښے هرڅو مره جنګونه شوی وو۔ د هغے مشری سردار غلام خان
ترین کوله۔

د اکتوبر په میاشت ۱۸۴۶ء کښے جرنیل هری چند په اباسینډه
پورے ونلو۔ او د اباسینډه په غاړه غاړه د یوسفزو په علاقه ئے حمله
اوکړله۔ لیکن د سردار غلام خان ترین۔ سردار نواب خان تنولی۔ او سید اکبر شاه

باچا صاحب په مشرئ کښې غازیانو ئې سخت مقابله اوکړله. او د سکهانو جرنیل هری چند په خپله هم کښې کامیاب نه شو.

د هزارے په علاقه باندے د انګریزانو د عمل دخل نه روستو سردار غلام خان ترین د اباسینډ نه پورے غاړه وادی پیښور ته د درانی سردارانو علاقے ته لاړه. (دا واقعه د ۱۸۴۸ / ۱۸۴۹ء مطابق ۱۲۶۵هجری ده.) مګر په ۱۸۴۶ء کښې بیا په وادی پیښور باندے پوره عمل دخل راغلے وو سردار غلام خان ترین ګرفتار کړے شه. د اله آباد جیل ته اولیږلے شه او په ۱۸۵۵ء مطابق ۱۲۷۴هجری کښې ئې هم هلته د اله آباد په جیل کښې پهانسی ورکړے شوه. اولاد ئې نن صبا د هزارے په "نوردی ګلدهیری" نومے کلی کښې آباد دے.

د انګریزانو په خلاف جهادونه

# ځمونږ مجاهدین

(جلد دویم)

جلد دویم

مؤلف

عبدالحلیم اثر افغانی

ځمونږ مجاهدین

محکمه نشر و اشاعت قبائل حکومت پاکستان پېښور

# فهرست جلد دوئم

# دَ پېرنګيانو خلاف جهاد

دَ پېرنګيانو په خلاف دَ سنه ۱۸۴۶ نه ترسنه ۱۹۴۷ پورے په پيو دپاسل[۱] کاله زمانه کښې چه دَ پښتو نخوا په زمکه کړے وېے اولوئے غزاګانے شوی دی ۔ دَ هغے تعداد دَ زرګونو نه زيات دے ۔ لکه دوستو دَ يو ے خاکے نه په معلومه شي ۔ يوازے دَ وزيرستان په علاقه دَ سنه ۱۹۱۱ نه ترسنه ۱۹۲۳ پورے دولس کاله زمانه کښې انګريزانو دوه زره اته سوه اتيا (۲۸۸۰) حملے کړے وے ۔ دَ دے نه دا اندازه په آسانه لګيدے شي چه دَ سابق صوبه سرحد او قبايلي دَ ښکيالو او جنګيالو مسلمانانو بيا درانو پښتنو په ملک بانډے انګريزانو کوم شرق دا پرېښتے وو ۔ کوم تاتارے پرے جوړ کړے وو ۔ او دَ دے آزادو پښتنو ، او په آزادئ خپل سر او مال قربان کړنکو پښتنو باندے ئے کوم دړانه جنګونه ورو ړی وو ۔ څومره په دين او اسلام مين او په وطن قربان کيدونکی سوچه پښتانه مسلمانان ئے وژلی وو ۔ دَ هغوی کورونه او کلی ئے په بمونو او توپونو وران کړی او سپه اُور سيزلی وو ۔ او په مقابل کښې چه په هر زغه او راغه ۔ هره توئ او الګړئ کښې په هرخوړ ۔ ناله ۔ ورغر ۔ کوئ او دره کښې پښتنو غازيانو په پوره ايمانی قوت او پښتني شجاعت سره دَ پېرنګی دَ منظم فوځونو ۔ جنګی وسلو او سامانونو کومه مقابله کړے ده ۔ هغه هغه دَ شجاعت پوداسے داستان دے چه دَ دروغے دنيا په تاريخ کښې ئے مثال نه پيدا کيږی ۔

---

دَ سنه ۱۸۴۶ نه ترسنه ۱۹۴۷ پورے چه انګريزانو دَ وادی پېچ او هزاره

وادی پیښور - کوهاټ - بنون - ډیره اسماعیل خان په میدانی علاقو او د دے سره پیوستو قبائلی علاقو، حسن زی - امازی - خدوخیل چمله - بونیر - سوات - چترال - اتمان خیل - دیر - باجوړ - مهمند - شلمان خیبر - دره - سمانه - اورکزی - کرم او وزیرستان کوم جنګونه کړی دی په هغے کښے د بعض جنګونو یوه داسے نقشه دلته درج کوو چه د هغے نه دامعلومه کړے شی چه داجنګونه د انګریزانو د کومو کومو جرنیلانو په کمان کښے په کومه کومه سنه کښے د پښتونخوا په کومن کومه علاقه شوی وو - او پښتنو غازیانو ئے په کومه بهادرئ او ایمانی شجاعت سره مقابله کړے وه -

د دے خاکے نه دوستو مونږه د سابق صوبه سرحد د شپږو ایجنسو په مناسبت په بیل بیل باب کښے د هرے ایجنسئ سره ملحقه قبائلی علاقو د غزاګانو ذکر په اختصار سره کړے دے - یعنے په هره علاقه کښے چه کومے بے شمیره غزاګانے شوی دی - انګریزی فوځونو دا یرغلونه کړی دی - یا غازیانو پرے چپاوونه کړی دی په هغے کښے د یو څو مشهورو غزاګانو ذکر مو په ډیر اختصار سره کړے دے چه کتاب اوږد نه شی - او ورسره ورسره په هره قبائلی علاقه کښے چه هرڅو سره غزاګانے شوی دی - په دغه غزاګانو کښے چه د غازیانو په ډله کښے کوم نامور غازیان - قبائلی مشران او روحانی پیشوایان وو - د هغوئ حالات په اختصار سره بیان شول - د پاره د دے چه راتلونکی نسل کهول او زیږے نه د خپلو بهادرانو نیکونو تورے - غیرت اسلام دوستی د وطن سره مینے او د بهادرئ د کارنامو حالات یاد کاریاتے شی - او فخز پرے اوکړے شی -

لکه چه وړاندے ووته اشاره اوشوه - انګریزان په فوځی اعتبار

سره په ۱۸۴۶ سنه کښې د پښتنو خاورې ته را داخل شوی وو۔ او تر ۱۹۴۷ سنه پورې په دې ملک باندې عمل دخل وو۔ او د خپل استعمار د استحکام او د خپلې قبضې د برقرارۀ ساتلو د پاره ئې تر آخر ساعته پورې په قبایلی علاقو باندې د جنګونو سلسله جاري ساتلې وه۔ لیکن چه څه رنګ وړاندې موا ووئیل د اختصار په وجه په دې کتاب کښې مونږه د ۱۸۴۶ نه تر ۱۹۳۳ سنه پورې صرف د ۹۵ کلونو د غزاګانو حالات درج کړل۔ ځکه چه په بعض علاقو خصوصاً په وزیرستان باندې د ۱۹۳۳ سنه باندې انګریزانو ډېر سره ډیر جنګونه کړی دی چه که د هغې پوره پوره تفصیل څه چه که په اختصار ئې هم درج کړل او غواړو نو د هغې نه ځان له بیل کتاب جوړېدے شی۔ وحقیقت دا دے چه یواځې د وزیرستان په علاقه چه انګریزانو کوم جنګونه کړی دی۔ او د دغې قبایلی علاقې بهادرانو غازیانو چه د انګریز په شان جابر حکومت د بې پناه فوځی طاقت کومه مقابله کړې ده هغه د دنیا د جنګونو په تاریخ کښې د بهادرئ یو ځان له باب دے۔ او دا حق لري چه ځان له کتاب پرې اولیکلې شي۔ ذاتي طور ځما دا اراده ده چه که کله هم خدا ے پاک توفیق راکړه۔ نو په وزیرستان به ځان له مفصل کتاب اولیکم۔

مونږه د دې کتاب په اولنۍ حصه کښې د تاریخي پس منظر سره ځا د لاندې دې خبرې ته اشاره کړې ده چه په سیاسي اعتبار سره انګریزان په ۱۸۰۹ سنه کښې د پښتنو خاورې ته د هغې وخت نه راشریک شوی وو چه مسټر الفنسټن د دې علاقو دوره کړې وه د ۱۸۰۹ نه تر ۱۸۴۶ سنه پورې پښتانه څه د سکهانو د ظلمونو او څه د خپلې بې اتفاقۍ په وجه کمزوري شول۔ نو انګریزان پرې راغلل۔ روستو د "کمپنۍ غزا" د عنوان لاندې مونږه بعضه تاریخي پس منظر بیان کړے دے چه د ۱۸۴۶ سنه

تر ۱۸۴۹ء پورے پہ دے زمکہ دَ انگریزانو او سکھانو دواړو طاقتونو شریک عمل دخل وو۔ پہ ۱۸۴۵ء کښے چہ دَ سکھانو دَ اقتدار خاتمہ اوشولہ نو دَ پښتنو پہ مقابل کښے دَ جنګ پہ میدان کښے یواځے انګریزان پاتے شول۔ دَ سکھانو پہ مقابلہ کښے دَ انګریز طاقت او قوت زیات وو۔ فوځ ئے زیات منظم وو۔ وسلہ ئے ښہ وه۔ او دَ سیاست پہ میدان کښے پوهہ چالاکہ او ډیر ښہ لوبغاړی وو۔ او پہ دے جوړ دَ پښتنو مقابلہ دَ ډیر نوی طاقتور او چالاکہ دښمن سره راغلہ۔

لکہ چہ مخکښے ورتہ اشاره اوشولہ۔ لهٔ کلهٔ چہ پہ فوځی اعتبار سره دَ انګریزانو جارحانہ اقدامات دَ ۱۸۴۶ء نہ شروع شوی دی۔ پہ دے وجہ موږ دَ انګریزانو پہ خلاف دَ غزاګانو کومہ فهرست چہ ساز کړے دے پہ هغے کښے اولنۍ غزا دَ ۱۸۴۶ء ده۔ فهرست دا دے

# دَ غزاګانو فهرست

پہ دے فهرست کښے دَ غزا دَ مقام دَ کوم قوم پہ خلاف چہ حملہ شوی ده، دَ هغہ نوم۔ دَ انګریزانو دَ کوم جرنیل پہ کمان کښے چہ حملہ شوې ده دَ هغہ نوم، او پہ کومہ سنہ چہ جنګ شوے دے ورسره هغہ کال او تاریخ۔ دا ټول پہ اختصار سره درج شوی دی۔

(۱) پہ ۱۸۴۶ء کښے دَ خدوخیل قبیلے پہ خلاف پہ مقام دَ مُغ دره باندے حملہ دَ جرنیل لمسډن پہ کمان کښے۔

(۲) پہ ۱۸۴۶ء کښے پرو زیرو بتو خو او مروتو غازیانو پہ مقام دَ کبتی حملہ دَ کونل جالن پہ کمان کښے۔

(۳) په سنه ۱۸۴۷ء کښې د اتمانخیل او یوسفزی قبیلې په برید په بابوزی کلی (ضلع مردان) حمله د کرنل سر هنری لارنس په کمان کښې.

(۴) په سنه ۱۸۴۹ء کښې د اتمانخیل قبیلې په سنګاؤ کلی (ضلع مردان) حمله د کرنل سر هنری لارنس استنټ ریزیډنټ قسمت پښاور په کمان کښې.

(۵) په سنه ۱۸۵۰ء کښې د کوهاټ درے په ابرید د حمله د بریګیډیر سر سی کیمبل په کمان کښې.

(۶) په سنه ۱۸۵۱ء کښې د کمالزی قبیلې په موضع ګوجرګړهی حمله د جرنیل لمسډن په کمان کښې.

(۷) په سنه ۱۸۵۱ء کښې په میرانو حمله د کیپټن جی. کاک. په کمان کښې

(۸) په سنه ۱۸۵۱ء کښې پومنډ و حمله د بریګیډیر سر سی کیمبل په کمان کښې

(۹) په سنه ۱۸۵۲ء کښې بیا په مومند و حمله د " " " "

(۱۰) په سنه ۱۸۵۲ء کښې په رانی زی حمله " " " "

(۱۱) په سنه ۱۸۵۲ء کښې په اتمان خیلو حمله " " " "

(۱۲) په سنه ۱۸۵۲ء کښې په درویش خیلو وزیرو حمله د میجر جی نکلسن په کمان کښې.

(۱۳) په سنه ۱۸۵۲ء کښې د وزیرو په عمرزی قبیلې حمله د میجر جی نکلسن په کمان کښې.

(۱۴) په سنه ۱۸۵۲ء کښې په وزیرو او ختکو حمله د میجر کوکس په کمان کښې.

(۱۵) په سنه ۱۸۵۳ء کښې ابا سیند په غاړه په حسن زو حمله د کرنل میکسن په کمان کښې.

(۱۶) په سنه ۱۸۵۲ء کښې په هندی مجاهدینو حمله د کرنل میکسن په کمان کښې

(۱۷) په سنه ۱۸۵۳ء کښې په آدم خیلو اپریدو حمله د کرنل بایلیو په کمان کښې

(۱۸) په سنه ۱۸۵۴ء کښې په مومندو حمله د کرنل کاټن په کمان کښې۔

(۱۹) په سنه ۱۸۵۵ء کښې په اکاخیلو اپریدو حمله د کیپټن کوکي په کمان کښې۔

(۲۰) په سنه ۱۸۵۵ء کښې په میرانزو حمله د برګیډیر چیمبرلین په کمان کښې۔

(۲۱) په سنه ۱۸۵۵ء کښې په رابیا خیلو ورکزو حمله د برګیډیر چیمبرلین په کمان کښې۔

(۲۲) په سنه ۱۸۵۶ء کښې په توري قبیلې حمله د برګیډیر چیمبرلین په کمان کښې

(۲۳) په سنه ۱۸۵۷ء کښې په یوسفزو حمله د میجر واکن په کمان کښې۔

(۲۴) په سنه ۱۸۵۹-۶۰ء کښې په درویش خیل وزیرو حمله د برګیډیر چیمبرلین په کمان کښې۔

(۲۵) په سنه ۱۸۵۹-۶۰ء کښې په احمدزی وزیرو او مسعودو حمله د برګیډیر چیمبرلین په کمان کښې۔

(۲۶) په سنه ۱۸۶۳ء کښې د ملکا په خدوخیلو او هندی مهاجرینو حمله د جنرل ګاروک په کمان کښې۔

(۲۷) په سنه ۱۸۶۳ء کښې په سرکاری (امبیلې) باندې حمله د برګیډیر چیمبرلین په کمان کښې۔

(۲۸) په سنه ۱۸۶۳ء کښې په مومندو حمله د کرنل میکډانلډ په کمان کښې

(۲۹) په سنه ۱۸۶۸ء کښې په ورکزو حمله د میجر جونز په کمان کښې۔

(۳۰) په سنه ۱۸۶۸ء کښې د تور غار تورې ځای په خلقو حمله د جنرل وائډ په کمان کښې۔

(۳۱) په سنه ۱۸۶۹ ء کښې په ورکزو حمله د کرنل کینر په کمان کښې.

(۳۲) په سنه ۱۸۶۹ ء کښې د کرم د کابل خیل په قبیله حمله د کرنل کینر په کمان کښې.

(۳۳) په سنه ۱۸۷۲ ء کښې په دوړو حمله د کرنل کینز په کمان کښې.

(۳۴) په سنه ۱۸۷۷ ء کښې په اپریدو حمله د کرنل ماکتاپه کمان کښې.

(۳۵) په سنه ۱۸۷۷-۷۸ ء کښې بیا په اپریدو حمله د کرنل کیزو راس په کمان کښې.

(۳۶) په سنه ۱۸۷۸ ء کښې په اتمان خیلو حمله د کیپټن پټي په کمان کښې.

(۳۷) په سنه ۱۸۷۸ ء کښې په رانیزیزاي حمله د میجر کیمبل په کمان کښې.

(۳۸) په سنه ۱۸۷۸ ء کښې په اتمان خیلو حمله د کرنل جنکنس په کمان کښې.

(۳۹) په سنه ۱۸۷۹ ء کښې په زخه خیلو حمله د جنرل ماډ په کمان کښې.

(۴۰) په سنه ۱۸۷۹ ء کښې بیا په زخه خیلو اپریدو حمله د جنرل ماډ په کمان کښې.

(۴۱) په سنه ۱۸۷۹ ء کښې د اورکزو په زومشت قبیله باندې حمله د جنرل ټيټلر په کمان کښې.

(۴۲) په سنه ۱۸۷۹ ء کښې په تیانک، شرانونکی حمله د جنرل چیمبرلین په کمان کښې.

(۴۳) په سنه ۱۸۷۹ ء کښې په موهمندو حمله د کیپټن کریک او میجر الس په کمان کښې.

(۴۴) په سنه ۱۸۷۹-۸۰ ء کښې په موهمندو حمله د جنرل ډوډن په کمان کښې.

(۴۵) په سنه ۱۸۸۰ ء کښې په بیټنو حمله د کرنل ولیمز په کمان کښې.

(۴۶) په سنه ۱۸۸۰ ء کښې په درویش خیلو وزیرو حمله د جنرل ګارډن په کمان کښې.

(۴۷) په سنه ۱۸۸۰ ء کښې په وزیرو مسیدو حمله د جنرل ګارډن او کینیډي

په کمان کښې -

(۴۸) په سنه ۱۸۸۷ء کښې دَ بونير په يوسفزو حمله دَ کرنل بروم په کمان کښې

(۴۹) په سنه ۱۸۸۸ء کښې دَ تورغار نوښے ښاڅ په اوسيدونکو حمله دَ جنرل ايم - سى - په کمان کښې -

(۵۰) په سنه ۱۸۹۱ء کښې بيا دَ تورغار نوښے ښاى په خنقو حمله دَ جنرل ايلس په کمان کښې -

(۵۱) په سنه ۱۸۹۱ء کښې بيا په اورکزو حمله دَ جنرل سرلوکهارټ په کمان کښې -

(۵۲) په سنه ۱۸۹۱ء کښې بيا په اورکزو حمله دَ جنرل سرلوکهارټ په کمان کښې

(۵۳) په سنه ۱۸۹۳ء کښې دَ توچي په علاقه حمله دَ کرنل تړونک په کمان کښې

(۵۴) په سنه ۱۸۹۴ء کښې په درويش خيلو وزيرو حمله دَ برګيډيرټو سر او لوکهارټ په کمان کښې -

(۵۵) په سنه ۱۸۹۴ء کښې په دروش (چترال) حمله دَ کرنل فولر په کمان کښې

(۵۶) په سنه ۱۸۹۵ء کښې په چترال حمله دَ سرآرلو په کمان کښې -

(۵۷) په سنه ۱۸۹۵ء کښې په مالاکنډ حمله دَ کرنل کيلى په کمان کښې -

(۵۸) په سنه ۱۸۹۷ء کښې په درويش خيلو وزيرو حمله دَ ميجر کاربېرډ په کمان کښې -

(۵۹) په سنه ۱۸۹۷ء کښې په مده خيلو وزيرو حمله دَ کرنل باني په کمان کښې

(۶۰) په سنه ۱۸۹۷ء کښې دَ سوات په اکوزو حمله دَ کرنل ميکلي جان (جنرل ميلډ) په کمان کښې -

(۶۱) په سنه ۱۸۹۷ء کښې په مومندو حمله دَ جنرل اى - ايلس په کمان کښې

(۶۲) په سنه ۱۸۹۷ء کښې په اکوزو او دَ باجوړ په ترکاڼي قوم حمله دَ ميجر

بجلهو په کمان کښې -

(۶۳) په سـ۱۸۹۷ـنه کښې په اتمان خیلو حمله د کرنل ریډ په کمان کښې -

(۶۴) په سـ۱۸۹۷ـنه کښې په ورکزو حمله د جنرل یلټ میږ په کمان کښې -

(۶۵) په سـ۱۸۹۷ـنه کښې په اپریدو حمله د جنرل لوکهارټ په کمان کښې -

(۶۶) په سـ۱۸۹۷ـنه کښې په خټکو حمله د بریګیډیر کیسلی او کرنل نعل په کمان کښې -

(۶۷) په سـ۱۸۹۸ـنه کښې د بونیر په یوسفزی قام حمله د میجر بیټن په کمان کښې -

(۶۸) په سـ۱۸۹۹ـنه کښې د کرم په څک منو حمله د کیپټن روس کیمپل په کمان کښې -

(۶۹) په سـ۱۹۰۰ـنه کښې په وزیرو مسیدو حمله د جنرل ډیننګ په کمان کښې -

(۷۰) په سـ۱۹۰۱ ۱۹۰۲ـنه کښې په درویش خیلو وزیرو حمله د میجر ایجرټن په کمان کښې -

(۷۱) په سـ۱۹۰۸ـنه کښې په زخه خیلو اپریدو حمله د جنرل ویل کاک په کمان کښې -

(۷۲) په سـ۱۹۰۸ـنه کښې په مومندو حمله د جنرل ویل کاک په کمان کښې

(۷۳) په سـ۱۹۱۹ـنه کښې په وزیرو مسیدو حمله د کرنل والن په کمان کښې -

(۷۴) په سـ۱۹۲۲ـنه کښې په وزیرو مسیدو حمله د جنرل کرسوییټ په کمان کښې -

# دَ وزیرستان غزاګانې

مونږ به په دې باب کښې دَ انګریزانو په خلاف دَ وزیرستان دَ بهادرو ننګیالو او توریالو وزیرو، مسیدو، دوړو، بیټنو، شیرانو ارمړو۔ او ورسره دَ ختکو دَ غزاګانو حالات دَ سنه ۱۸۴۶ نه تر سنه ۱۹۳۳ پورې دَ اوه اتیا (۸۷) کاله زمانې په اختصار سره بیان کړی دی۔ دَ اختصار مطلب دا دې چه په دې اوه اتیا (۸۷) کاله زمانه کښې چه هر څو مره په زرګونو غزاګانې شوی دی۔ په هغې کښې مونږه دَ یو څو غټو غټو غزاګانو حالات لیکلی دی۔ دَ دې نه دا ده چه لکه څنګښې ورته اشاره شوې ده که مونږه دَ ټولو غزاګانو حالات په تفصیل سره لیکلی نو یواځې دَ وزیرستان دَ غزاګانو دَ حالاتو دپاره ځان له جه کتاب لیکل پکار وو مونږه دَ دې خپلې خبرې په تائید کښې دَ سنه ۱۹۱۱ نه تر سنه ۱۹۲۳ء پورې دَ دولس دیارلس کاله زمانې دَ غزاګانو یو فهرست درج کوو۔ چه په دې لږه شان زمانه کښې انګریزانو دَ وزیرستان په علاقه باندې په شماره [۲۸۶۰] وړې او لوئې حملې کړې وې۔ نو دَ دغې په رڼا کښې دَ سنه ۱۸۴۶ء نه تر سنه ۱۹۱۱ء پورې دَ منځنۍ [۶۵] کاله زمانې۔ او بیا دَ سنه ۱۹۲۳ء نه روستو تر سنه ۱۹۴۷ء پورې دَ منځنۍ [۳۶] کاله زمانې دَ انګریزانو دَ حملو او جنګونو اندازه دِ پخپله اولګولې شي۔ چه هر کله انګریزانو صرف په دولس کاله زمانه کښې په وزیرستان (۲۸۶۰) حملې کړې دی، نو چه په یو سل یو (۱۰۱) کاله زمانه کښې به ئې په دې خاوره څومره جنګونه کړی وی۔

په وزیرستان باندے دَ انګریزانو دَ حملو او جنګونو حال کښې انګریزانو لیکلی دے - او دا اعتراف ئے کړے دے چه دَ وزیرستان غیرتیانو او ایماندارو خلقو چه دَ فرنګی کومه مقابله کړے ده دَ هغې مثال نه پیدا کیږی -

دلته دا یاد لرل پکار دی - چه نن په دنیا کښې دَ الجزائر دَ غازیانو دَ بهادرئ او په هغوی باندے دَ فرانسیسی حکومت دَ ناترسه ظلمونو او په کلونو کلونو دَ پرله پسے خونړی جنګونو تیجے ډیرے مشهورے دی. لیکن چه چا دَ وزیرستان دَ غازیانو دَ بهادرئ او دَ هغوی په مقابله کښې دَ انګریزانو دَ وحشت او بربریت کارنامے په خپلو سترګو لیدلی دی . هغوی داګواهی ورکوی چه دَ وزیرستان افسانه دَ الجزائر دَ افسانے نه په خو چنده زیاته ده - نقشه داده:-

| کال | دَ حملو شمار | کال | دَ حملو شمار |
|---|---|---|---|
| سنه ۱۹۱۱ء | ۷۱ | سنه ۱۹۱۸ء | ۱۸۹ |
| سنه ۱۹۱۲ء | ۷۷ | سنه ۱۹۱۹ء | ۶۱۱ |
| سنه ۱۹۱۳ء | ۹۲ | سنه ۱۹۲۰ء | ۳۹۱ |
| سنه ۱۹۱۴ء | ۱۶۵ | سنه ۱۹۲۱ء | ۱۹۴ |
| سنه ۱۹۱۵ء | ۳۴۵ | سنه ۱۹۲۲ء | ۱۳۱ |
| سنه ۱۹۱۶ء | ۲۹۲ | سنه ۱۹۲۳ء | ۶۹ |
| سنه ۱۹۱۷ء | ۲۲۳ | میزان | ۱۵۸۵ |
| میزان - | ۱۲۷۵ | جمع | ۱۲۷۵ |

دَ دیارلس (۱۳) کاله زمانے دَ حملو کل میزان ——— (۲۸۶۰)

---

دلته دا خبره یاد لرل پکار دی چه دَ وزیرستان علاقه دَ بنوں او کوهاټ

په سرحد باندے پرته ده. قدرتي طور دَ وزيرستان په علاقه چه انګريزانو حملے کوولے. دَ هغے نه ورپاندے به ئے دَ کوهاټ او بنوں دَ پښتنو په علاقه هم فوځي اقدامات کوول. دَ وزيرستان دَ غزاګانو په دے باب کښے مونږ ورسره ورسره دَ کوهاټ او بنوں دَ يو څو غزاګانو واقعات هم درج کړي دي. البته دا دے افسوسناک حقيقت اظهار هم ضروري معلوميږي چه دَ بنوں دَ علاقے پښتانه فرنګيانو وهلي وو. ليکن په جنګ ئے نه وو وهلي. په حکمت عملي او سياست او په چالبازئ ئے وهلي وو. او چه دَ بنوں پښتنو دَ انګريزانو په مکر او فريب په خپله په خپل منځ کښے يو بل تباه کړل. او ميدان په غير دَ جنګ جهګړے نه فيرنګيانو ته په لاس ورغے نو جنګ دَ بنوں دَ سرحد نه دَ وزيرو. دوړو او مسيد و علاقے ته او رسيده. او روستو هغه واقعات پيښ شول چه مونږه په اختصار سره دَ هغے حالات بيان کړي دي.

دَ بنوں دَ علاقے پښتانه چه انګريزانو په کوم مکر او فريب وهلي وو. دَ هغے حال دَ بنوں دَ علاقے دَ اولني اسسټنټ ريزيډنټ کرنل هربرټ ايډورډس په خپلو الفاظو کښے دَ عبرت دَ پاره درج کوولے شي.

"دَ بنو څو په علاقه څو مونږه قبضه دَ تورے او ټوپک په زور نه وه شوے. دا قبضه مونږه داسے اوکړله چه دَ پښتنو دَ دوه ئے قبيلو تر منځه دَ تربورولئ او دښمنئ بغض او عناد مونږ را تازه کړه. تورکونډ او سپين کونډ دواړه فرلقه موسره په خپلو کښے او جنګول. بيا مونږ داسے کار اوکړ چه دَ سکهانو دَ حملے ويره موپرے را وستله. او بيا مونږ داسے حالات راپيدا کړل چه دَ بنو څو دواړه کونډونه دَ يو بل په تباهئ پسے شول. دَ هر يو خاندان مشر دَ خپل تربور تباه کولو ته لاس واچاوه. او دَ خپله لاسه ئے خپلے مضبوطے په شمار خلور زسوه قلاګانے

ورانے کړلے - ملک ډاکه شه - او محمونږ دپاره د بنوڅو په ملک د قبضے لګولو کادۓ آسان کړ۔ ځکه چه د دے قلاګانو په وجه بنوڅي ډیر طاقت منډ وو -

د بنوڅو د ویرے نه بیا ځما په وینا یوه قلا (قلعه دلیپ سنګهو) جوړه کړه - (دا قلا د موجوده بنوں ښهر سره د یو هزار قدم په فاصله شمال طرف ته واقع ده) د دے قلا په جوړیدلو د بنوں په ټوله علاقه باندے محمونږ منګل کلکه شوه - او په دے طریقه یو وحشي قوم د امن او تهذیب د سورۍ لاندے راغے - او فقط په درے میاشتو کښے هغه کار او شه کوم چه سکهانو په پنځویشت کالو کښے نه وو کړے"

[د میجر هربرټ ایډورډس کتاب " د پنجاب په سرحد یو کال " ]

مګر هغه ډنګ چه مونږه مخکښے اشاره اوکړه او دوستو به ځای په ځای بحث راشي - د بنوں پښتنو غازیانو او عالمانو، بزرګانو د انګریزانو د حملے او قبضے سخته مقابله کړے ده او میجر ایډورډس چه کوم بیان کړے دے - هغه صحیح نه ثابتیږی -

# موسٰی نیکه

د پښتون قوم د شجره نسب دکتابونو دبیان مطابق دکګی ابن کرهان[2] دقدیم ځوئ نوم سلیمان[1] وو - د سلیما[5] دځوی نوم وزیر[3] وو - د وزیر دوه ځامن وو - خدرزی[5] لالی[4] په دوئ کښے د خدرزی[5] درے[3] ځامن وو -

۱ - موسٰی[6] چه په درویش لقب باندے مشهور وو - د هغه دوه ځامن وو اتمانزئ[1] - احمدزی - د دے[2] دواړو ځامنو اولاد په اتمانزی او احمدزی وزیرانو[4] هم یادیږی - او د خپل نیکه دلقبی نوم درویش په نسبت سره اتمانزی او احمدزی دواړه قامه په درویش خیل وزیر نامه هم یادیږی -

۲ - محمود[7] - د ده یو ځوئ وو - چه مسعود نوم ئے وو - اولاد ئے په مسعود محسود

مسوت، مسید، مسیت نومونو یادیږی - او هرکله چه د مسعود پلار خدای د وزیر ځوی وو په دغه مناسبت سره د مسعود قوم خلق په مسید وزیری نامه یادیږی.

اتمانزی - احمدزی - مسید - د دریواړه قامونه د نسب په اعتبار سکه رونړه دی درویش خیل د وزیر او مسید وزیر په شمالی او جنوبی وزیرستان دواړو حصو کښې آباد دی - البته مسید خاص په جنوبی وزیرستان پراته دی -

۳. مبارک :- د ده یو ځوی وو - کریز نوم ئے وو - د کریز د نسل خلق د مسید وزیرو د څنګ کېږو سره د مهمند ایجنسی په علاقه کښې پراته دی - د کریز وزیری دوه ځامن وو - لنرودین - خزی خیل او لنے شلور بناخه دے - او دویم شپږ بناخه دے - د وزیری قوم - د کریز وزیری او د وزیر نیکه د دویم ځوی لالی اولاد په افغانستان کښې هم آباد دے - وزیری قوم یولوی قوم دے - او په راتلونکو پاڼرو کښې د دے قوم د غزا کانو حالات درج کولے شی -

په وزیری قوم کښې موسی نیکه چه د درویش خیل اتمانزی - او احمدزی دواړو قومونو مشر نیکه او پلار دے - یو ډیر لوئی بزرګ - نیکوکار او بنه سړے تیر شوے دے - زیارت ئے د برمل په زمکه کښې دے کابل خیل او احمدخیل او د نورو وزیری قبایلو خلق ډلے ډلے د دے خیل مشر او بزرګ نیکه زیارت له راځی - او د زړه د اخلاصه قدر او عزت ئے کوی -

موسی نیکه د خپل وفات په نیټه چه کوم وصیت خپل اولاد ته کړے وو - هغه داسے دے چه نه یواځے اتمانزی او احمدزی وزیر بلکه د وزیری قوم ټول قبائل او قومونه په هغے د زړه د اخلاصه عمل کوی او په سر سترګو ئے ترننه ورځے پورے منی - د موسی نیکه وصیت داود

چه ځپاد کمول . خیل او خاندان ټول واک او اختیار دے د دین اسلام
د ریښتینو عالمانو او مشرانو په لاس کښې وی او ځپا کمول او زیږه دے دَدوئ
په درناوی کښے ټیمګړتیا نه کوی. او په ورمیږ کښے دے ورته هرڅه
نه ساتی - غاړه دے تړینه نهٔ غېره وی -

دَ موسے نیکه د دے وینا له کبله تر اوسه لا دغه شان د قوم
دَ چارو واک دَ نیکو خلقو او صحیح دینی عالمانو او دینی مشرانو په لاس
کښے دے - او هم دا وجه ده چه دَ وزیرو او مسیدو په زمکه دَ
انګریزانو په خلاف هرڅومره غزاګانے چه شوی دی په هغے کښے دَ
غازیانو دَ لښکرو مشران ټول دینی عالمان او بزرګان دی - او دغه
غزاګانے هم دَ هغوئ په نامه یادیږی لکه دَ وزیرو ملا صاحب غزا
دَ بادی فقیر غزا. دَ ملا پیونده غزا شوله - مونږ ټولو ته معلومه ده چه
په دے غزاګانو کښے دَ دوړ- وزیری - مسید - بیټنی - شیرانی وغیره
ټولو پښتنو عامو او خاصو تورے وهلی دی - لیکن "دَ موسی نیکه" دوصیت
له کبله د دے قسم ټولے غزا دَ یو ملا- عالم او بزرګ او مأذون په نامه
یادے شوی دی - دا دَ پښتنو یو داسے قومی دستور دے چه مثالونه ئے
په نورو قبائلی علاقو کښے هم موجود دی - لکه دَ بابړے ملا صاحب غزا
دَ هډے صاحب غزا وغیره -

## دکبتي غزا (۱۳۲۶ سنه)

دَ وزیرستان په علاقه چه کومے غزاګانے شوی دی - په
هغے باندے دَ بحث کولو نه وړاندے دا ښکاره کول پکار دی چه انګریزان
دَ وزیرستان پولے ته څه رنګ ورشریک شول - او دَ دغے نه مخکښے
کوم واقعات پیښ شوی وو - او هغه کومه اولنئ غزا وه چه دَ وزیرو

او مسیدو په سرحد شوی وه - او دوئ په هغې کښې غزا کړې وه - چه دَ هغې په نتیجه کښې دَ بدل اخیستلو دپاره انګریزانو دَ وزیرستان په سیمه یلوشیدل شروع کړی وو -

لکه مخکښې دَ دے کتاب په اولنۍ حصه کښې دَ سکهانـو برخلاف غزاګانو بحث کښې ذکر شوید ے- چه سکهان په اول ځل په سنه ۱۲۳۵ھ مطابق سنه ۱۸۱۹ء کښې دَ مهاراجه رنجیت سنګهو په کمان کښې دَ بنوں علاقے راننوتلی وو - او دَ تاریخ مخزن پنجاب جلد ۲ صفحه ۳۵۱ دَ بیان مطابق داملک ئے په غیر دَ مقابلے او جهګړے نه قبضه کړے وو - په دے ملک دَ سنه ۱۲۳۵ھ مطابق سنه ۱۸۱۹ء نه تر سنه ۱۲۶۳ھ مطابق سنه ۱۸۴۶ء پورے ۲۷ کاله دَ سکهانو قبضه ده - په دغه دوران کښې دَ سکهانو او مسلمانانو تر منځه بیا دوستو ډیرے غزاګانے هم شوی دی - لیکن په سنه ۱۸۴۶ء کښې چه په بنوں باندے دَ سردار دلیپ سنګهه حکومت وو - او دَ سکهانو او انګریزانو دَ یوے معاهدے له مخه چه په لاهور کښې لاس لیک شوے وو - او دَ هغې له مخه دَ سکهانو دَ فوځي او انتظامي معاملاتو په لړ کښې انګریزان افسران هم مقرر شوی وو - دَ لاهور دَ انګریز ریزیډنټ په حکم جرنیل کورټ لینډ او جرنیل ایډ ورډ دَ پرګنه بنوں دَ انتظام دپاره مقرر شول - دے دواړو انګریزانو دَ دے ملک دَ انتظامي محکم والي دپاره چه کوم اقدامات شروع کړل - ظاهره ده چه دَ هغې مطلب په دے علاقه باندے دَ سکهانو او دَ انګریزانو دَ مشترکه اقتدار مضبوطوالے وو - او لازمي نتیجه ئے دَ دے علاقے دَ بهادرانو، ننګیالو او ځوانمردو پښتنو غلام کول وو - په دغې باندے دَ بنوں - وزیرستان - خټک - مروت شیتک - دوړ - وزیر - مسید - قبائل را اولړزیدل - او دَ غزا میدان ته را او وتل -

په ۲ تاریخ د جنوری ۱۸۴۸ء مطابق ۱۲۶۵ھ لفټننټ کرنل ایډورډ ناظم بنوں د لاهور د انګریز ریزیډنټ په حکم باندے د بنوں ښهر بنیاد کیښوده - او د دے ښهر نوم ئے د سکهانو د حکمران په نوم دلیپ ګړ کیښوده - او ور پسے په دسمبر ۱۸۴۸ء کښے ئے د دو دکرم نه جنوب طرف ته په لیره فاصله او د ګجکوټ نومے خوړ ته د شپږ فرلانګه په فاصله د بنوں قلعه بنیاد کیښوده - دا غبرګه قلاوه - په یوه قلا کښے نته بله قلا - د منځ قلا څلور ګوټه وه - د هر یو ګوټ دیوال ئے ۳۰۰ ګزه اوګد - د دے ګزه پلن او پاؤکم اته ګزه لوړ وو - د دوئم قلا چاردیواری د منځ قلا نه اتیا ګزه لرے (یعنی د دواړو قلاګانو منځنئ فاصله اتیا ګزه وه) او د دے دوئم قلا د دیوال پلن والے دوه ګزه او لوړ والے ئے پاؤکم څلور ګزه وو - د دے قلا نوم د دلیپ سنګهه ابن مهاراجه رنجیت سنګهه په نوم باندے "دلیپ ګړه" کیښودلے شه - د قلا نه چار چاپیره خندق کنستلے شوے وو - چه لس ګزه پلن او لس ګزه ژور وو -

د دے ښهر او قلا د آبادئ حال په دے غرض دلته بیان شه چه د سکهانو د حکومت په آخرینی دور کښے چه انګریزان د بنوں او ډیره جات علاقے ته راشریک شوی وو - د هغے تاریخی پس منظر په علم کښے راوسیدلے شی -

واقعات داسے پیښ شوی وو - چه هرکله په ۲۷ جون ۱۸۳۹ء کښے مهاراجه رنجیت سنګهه مړ شه - او د هغه ځوئ کهړک سنګهه ګدی نشین شه - نو د سکهانو سردارانو په منځ کښے داسے خطرناکه خانه جنګی شروع شوه - چه د سکهانو طاقت ئے ختم کړ - په هغے پسے د انګریزانو په خلاف څلور لوئ جنګونه ئے اوکړل - او په هغه ټولو کښے ئے شکست اوخوړ - نو انګریزانو چه په ۱۸۰۹ء کښے د سکهانو سره کومه معاهده

کړې وه د هغې د تجدید مطالبه ئې اوکړه - په دغه ورځو کښې سردار
دلیپ سنګهو ابن رنجیت سنګهو د لاهور (پنجاب) والي وو - د دلیپ سنګهو
او انګریزانو ترمنځه په ۹ د مارچ ۱۸۴۶ء یوه نوې معاهده اوشوه -
چه د هغې له مخه د جالندهر دوآب - کشمیر - هزاره او د اټک سیند نه
نه مغرب طرف ته واقع ټولې علاقې لکه پېښور - کوهاټ - بنوں ډیره جات
باندې د انګریزانو قبضه تسلیم کړې شوه - او د پنجاب باقي مانده
ملک دلیپ سنګهو ته پرېښودې شه -

د لاهور والي سردار دلیپ سنګهو درخواست اوکړه چه په لاهور کښې دې انګریز ریزیډنټ
مقرر کړې شي. څه وخت چه انګریز ریزیډنټ په لاهور کښې د سکهانو په خپ کښې ناست. نو هغه خپل
اسسټنټ ریزیډنټان مقرر کړل. چنانچه په دغه سلسله کښې سر جارج لارنس ئې پېښور اسسټنټ ریزیډنټ
مقرر کړ - او سر هربرټ ایډورډس ئې د بنوں او ډیره جات د پاره
د اسسټنټ ریزیډنټ په طور را اولېږه - او چه ایډورډس بنوں ته راتللو
نو د جرنیل کورټ لینډ په کمان کښې یو مضبوط فوځ هم ورسره وو -
په لاهور کښې چه په ۹ د مارچ ۱۸۴۶ء کومه معاهده د سردار
دلیپ سنګهو له خوا نه د انګریزانو سره لاس لیک شوې وه - هغه د هزاره جات
او پېښور - کوهاټ مقامي سکهانو افسرانو نه وه منلې - چنانچه په هزاره
کښې مقامي سکهو حکمران سردار چتر سنګهو انګریزانو له د قبضې ورکولو نه انکار
اوکړ - جنګ ئې شروع کړ - په ملتان کښې دیوان مولراج د انګریزانو مقابله
اوکړه - او کوم اسسټنټ ریزیډنټ او فوځي جرنیل چه د ملتان قبضې له تللي
وو - هغه ئې قتل کړل - د پېښور په علاقه کښې چه کوم سکهان حکمرانان
وو - یا د سکهانو د طرف نه کوم بارکزي سردار خراج ګذار وو - چه کله پېښور
ته سر جارج لارنس په طور د اسسټنټ ریزیډنټ را اورسېد نو حمله پرې
اوشوه - سر جارج لارنس په تېښته ځان کوهاټ ته اورسولو - په دې

خیال چه په کوهاټ باندے په دغه وړخو کښے د سکهانو د طرف نه د یو باجگذار او ماتحت حکمران په شکل سردار سلطان محمدخان بارکزائی حکمران وو - او د دغے نه مخکښے چه کله دغه سردار سلطان محمدخان په پیښور ښهر ناست وو - او سکهانو په څه خیره بندیوان کړے وو - لاهور ته ئے بوتللے وو - نو هلته په لاهور کښے د دے سرجارج لارنس سکه ورور سرهنری لارنس د سردار سلطان محمدخان امداد کړے وو - د بند نه ئے آزاد کړے وو - او بیا هم د هغه په سفارش د کوهاټ حکمران مقرر کړے شوے وو - لیکن سردار سلطان محمدخان دغه نیکئ ته اونه کتل او سرجارج لارنس او د هغه میمه دواړه ئے سکهانو له لاس تړلی ورکړل -

بل خوا ته د بنوں او ډیره جات په علاقه کښے د انګریزانو د فوځ او ریزیډنټ مقابله او نه کړے شوه - په هغه زمانه چه د بنوں ښهر سره نزدے کوم کلی وو - او دغه کلی نن هم موجود دی - د دے ځائ د هغه زمانے مشرانو د انګریزانو مخالفت او نه کړه - او انګریزان موفق شول چه د بنوں ښهر په مقام یو فوځی کیمپ اولګوی - د بنوں ښهر په مقام د انګریزانو د فوځی کیمپ لګولو په واقعه او د خانانو او ملکانو په بے همتئ په عوامو کښے او د هغے زمانے په عالمانو او روحانی پیشوایانو کښے اضطراب پیدا شه - چه په هغے کښے د کاکا پیر المعروف کاکا صاحب نوم د یاد ولو دے - د دے د بازار احمدخان د حضرت اخوند حافظ شیر محمد هاشمی، فاروقی ملګرے وو - عالم او مجاهد وو - د بنوں نه ئے ګډه اوکړه د دوړ علاقے ته لاړ - او هلته ئے د انګریزانو برخلاف د جهاد دپاره تیاری شروع کړه - [ نور حالات به ئے روستو راشی ]

| د انګریزانو دویم کیمپ | د انګریزانو یو کیمپ د بنوں په مقام اولګیده - او دویم کیمپ ئے د کمبتی په مقام اولګیده - د کمبتی په مقام |
|---|---|

انګریزان په فوځي کیمپ لکولو کښې دا سے کامیاب شوی وو - چې دَ بد قسمتۍ نه
دَ وزیر قوم دَ احمد زئ نوم قبیله کښې یو ښاخ دے چې سعید سپرکے او سپرکے
مبل تې، په دغه سپرکی قام کښې یوه قبیله ده. باعوان خیل نوم یے دے - په
دے باعوان خیل قام کښې عالم خان نومے یو مشر نیکه تیر شوے دے - دَ هغه
دَ یو نمسي نوم سوهان خان وو. سوهان خان ساده پښتون وو. په سنه ۱۸۴۴
کښې مشهور سیّاح او پولیټیکل افسر ولیم مورکرافټ "دَ وزیرستان په علاقه
کښې دَ خپل خفیه سیاسي مهم په دوران کښې دَ ملک سوهان خان میلمه
شوے وو. لکه چې دَ پښتنو دَستور دے. سوهان خان یے ډیر دارو مدار
کړے وو - او دَ په نتیجه کښې ولیم مور په دے کښې کامیاب شوے وو چې سوهان
خان دَ انګریزانو دوستي قبوله کړي - سوهان خان دَ انګریزانو دوست شوے
وو - او دَ دغه دوستۍ په نتیجه کښې چې کله په سنه ۱۸۴۶ کښې سرهربرټ ایډورډس
دَ بنوں، ډیره جات علاقو ته را شریک شه نو په مقام دَ ګمبتي په کیمپ لګولو
کښې ورته هیڅ تکلیف پیښ نه شه -

په دے سلسله کښې دَ افسوس خبره دا ده چې دَ ملک سوهان خان
مشر نیکه عالم خان خو هغه ننګیالے پښتون وو - چې کله دَ عالمګیر اورنګزیب
دَ بادشاهۍ په زمانه دَ شهزاده بهادر شاه فوځونه دَ بنوں علاقے ته
را ننتل نو دغه عالم خان یے مقابله کړے ده چې دَ اغیارو قبضه دَ پښتنو
په خاوره یے نه منله - لیکن دَ هغه په پنځم پشت کښې نمسي صرف دَ یو
انګریز ولیم مور دَ دوستانے په خاطر دین اسلام او پښتنو دښمن حکومت
انګریزانو ناپاک قدمونه دَ بنوں او وزیرستان زمکے ته را شریک کړل - دَ
تاریخ صولت افغاني صفحه ۵۷۹ بیان دے چې ملک سوهان خان دَ وزیري
قوم دَ غزا کانو په ناکامیا به کولو او په وزیرستان دَ انګریزانو دَ قبضه راوستلو
په سلسله کښې دَ انګریزانو ډیر خدمتونه اوکړل - او دَ دغے خدمتونو په صله

کښې په دسمبر ۱۸۴۷ء کښې دَ ټول وزيري قوم دَ "وزير بهادر" خطاب هم ورکړې شه۔

دَ ګمبتي په مقام دَ انګريزانو دَ فوځي کيمپ لګولو دا تاريخي پس منظر دے دَ پاره بيان کړے شه۔ چې دَ ګمبتي دَ غزا اهميت لور هم واضحه شي چه دَ غازيانو مقابله يوازے دَ انګريزي فوځونو سره نه وه بلکه بعض ددين۔ وطن اؤ ملت دشمن کسان هم دَ انګريزانو ملګري شوي وو۔ اؤ غازيانو ته دَ هغوئ سره هم مقابله دَرپيغاره وه۔

په دغه شان حالاتو کښې دَ بنوڅو۔ سړدو۔ خټکو۔ وزيرو اؤ مسيدو قبائيلي غازيانو دَ انګريزانو په دداړو کيمپونو بنون اؤ ګمبتي باندے حملے شروع کړے۔ قبائيلي غازيانو دَ څلور واړه طرفه نه په انګريزي فوځونو حملے کوولے۔ اؤ دا حملے روپه رودا سے سختيدلے چه قيامتونه ئے راکوز کړل۔

# جان شهيد اؤ سيلکي شهيد

په ۱۸۴۶ء کښې چې دَ انګريزانو په ګمبتي کيمپ کومه حمله کړے وه۔ اؤ کومه غزا شوے وَه په هغے کښې دَ غازيانو مشران دوه مشهور توريالي غازيان وو چې دَ يو نوم جان وو۔ اؤ دَ دويم نوميال غازي نوم سيلکي وو۔

دا دواړه په قام احمدزئ، سپرکي، وزير وو۔ بلکه دَ ټهريدلو زمرو دَ غزا ميدان ته راوتلي وو۔ اؤ دَ ټولو غازيانو دَ لښکرو مشري ئے په دے وجه کوُلو له چه دَ ملک سوهان خان سپرکي وزير دَ بے ننګئ په وجه چه دَ بهادر وزيري قام په لمن دَ بدنامئ کوم داغ لګيدلے دے۔ چې هغه پاک شي۔ خدائي پاک مهرباني اوکړله۔ دَ غازيانو امداد ئے اوکړ۔ غازيانو له ئے فتح ورکړله۔ اؤ دَ ګمبتي کيمپ په مقام چه دا ځائي دَ بنون ښهر نه لس ميله لرے دے دَ غازيانو دَ لاسه نه دَ انګريزانو دَ فوځ څلورنيم زره (۴۵۰۰)

نوځیان او یو د انګریزی فوځ لوئ افسر مستر ډالن قتل شول او دد ے په
مقابله کښې د مسلمانانو په لښکر کښې فقط څلورنیمې شلې (۹۰) غازیان شهیدان
شوی وؤ۔ او د فرنګی لښکر دد غه کالی (۱۴۵) یو سل پنځه څلویښت کورونه
نړلی وو۔ که فکر اوکړے شی۔ د دشمن انګریز فوځ چه څومره تباه شوے وؤ۔
جنګی وسله ۔ رسد او سامان یې څومره تالا شوے او په مال غنیمت ورلے
شوے وؤ۔ د هغې په مقابله کښې د غازیانو جانی او مالی تاوان په نشت حساب
دے۔ د پښتنو غازیانو د اولسی او بې سرو سامانه لښکر دد ے شاندار ے
فتح په وجه د انګریزانو لښکر ته ترڅو ورځو پورے د نور ورانی کولو موقع په
لاس ورنه غله۔

وزیرو مسیدو پښتنو غازیانو د سنه ۱۸۴۶ ء نه وړستو د انګریزانو
جنګ جګړے ته پوره پوره اهمیت ورکړ۔ او په دغه وجه د ټولو نه لوئے کار
یې دا اوکړ۔ چه د وزیرو او مسیدو ددواړو قومونو ترمنځه یا دد ے دواړو
قومونو د مختلفو قبیلو ترمنځه چه کوم اختلافات وؤ۔ هغه یې ختم کړل۔
تیګه یې کیښودله۔ خپلے اندرونی توکنئ یې د منځه نه اوکښلے او انګریزانو ته
یو شول۔ د وزیرو او مسیدو چه په سنه ۱۸۴۶ ء کښې د انګریزانو په خلاف په یو
اتفاق میدان ته راوتلی وؤ۔ دغه اتفاق یې د سنه ۱۹۴۷ ء پورے یعنی د انګریزانو
دد ے ملک نه د کډے ایستلو د ورځے پورے قائم وؤ۔ او دا خبره په خپل
ځائے ډیر لوئ تاریخی اهمیت لری۔ چه یو دا سے پښتون قوم چه هغه خپل
تربور د هر چا نه زیات دشمن ګڼړی۔ هغه دے د خپل تربور دشمنی روغه
سل کاله پرینږدی او متحده دشمن ته دے یو شی۔

د وزیرستان قومونو وزیرو او مسیدو چه بله کومه تاریخی کارنامه انجام
ته رسولے ده۔ هغه دا ده چه د سنه ۱۸۴۶ ء د زمانے د ملک سوهان خان
وزیری ننګی سے ډیر مثال په طور خپلے مخے ته اودرولے ده۔ او د سنه ۱۸۴۷ ء نه

تر ۱۹۴۷ء پورې سل کاله زمانه کښې که کله هم یو قبائیلي ملک د انګریزانو مرسته کړې ده. نو هغه له یې په قومي رنګ کښې تر خپله وسه سزا ورکړې ده. اؤ د خپل مضبوط "قومي تړون" په ذریعې یې د انګریزانو د سیاسي حکمت عملئ ټول تدبیرونه چالاکئ اؤ سازشونه ناکامیابه کړي دي. په دې سلسله کښې د وزیرستان قومي مشرانو. عالمانو اؤ بزرګانو ډیر لوئې کار کړي دې.

# د بهادر خیل ختکو غزا

د انګریزانو د ناماتې نه مخکښې د کوهاټ اؤ بنوں تر مینځه سړک د ټړي پاټوس اؤ کرک په خوئي الګډه کښې تیریدلو. چې انګریزان راغلل نو د بهادرخیلو د مالګې د رنګ باندې د قبضې کولو په خاطر یې په سنه ۱۸۵۰ء کښې هغه زوړ سړک پریښودو. په بهادرخیل اؤ سوړ ډاک یې سړک تېر کړ. اؤ په جنوري سنه ۱۸۵۰ء کښې یې د د رنګ نه په مالګه ورلودو مره زیات محصول اولګولو چې د غواړ شا د خلقو د پاره اؤ د عامو ختکو اؤ تجارت پیشه خلقو د پاره هغه د برداشت کولو نه وو. په دغې باندې خلق راپوټه شول. ورپسې سمدستي اولګې ورځې پس په فروري سنه ۱۸۵۰ء کښې انګریزانو تیراه په افریدو حمله اوکړه چې د دغې نه د ختک قوم خلق خبر شه. په هغې باندې په خلقو کښې د جهاد جذبه نوره هم زیاته شوله اؤ د بهادرخیلو ختک د فرنګي په خلاف د جهاد میدان ته راودنګل.

د بل طرف نه د انګریزانو فوځ د لفټننټ کرنل پولک په کمان کښې چې دده ورسره تولیونه وو. د فرسټ پنجاب رجمنټ یوه کمپنۍ اؤ ۵۰۳ نفره نوځ مخامخ شه. لږه شان مقابله اوشوله. د فرنګیانو جرنیل پولک خان په تیښته خلاص کړې د لتمر فوځي کیمپ ته په زغابنت اورسیده د هغې نه روستو تر اپریل سنه ۱۸۵۰ء پورې د جنګونو دا سلسله جاري وه.

اؤ غازیانو به ځائے په ځائے دَ فرنګی په کیمپونو حملے کوؤلے۔

په اکتوبر سنه ۱۸۵۵ء کښے د بهادرخیل خټک غازیانو دَ طوطکی نومے مقام سره دَ فرنګیانو په ضد لیوی فوځ حمله اوکړه کوم چه دَ کوهاټ، بنوں دَ سړک دَ څوکئ دَ پاره مقرر وؤ۔ دغه فوځ له یې شکست ورکړ۔ ورپسے ورانده لاړل۔ دَ بهادرخیلو دَ مالګے په کان (درنګ) یې قبضه اوکړله۔ دغے نه پس ستو دَ کوهاټ دَ فوځي کیمپ نه دَ کرنل کوک په کمان کښے تازه دم فوځ راغے۔ دَ کرنل کوک اؤ کرنل پونک دواړو فوځونو په شریکه دَ بهادرخیلو غازیانو مقابله اوکړله۔ غازیان په شا شول اؤ انګریزانو دَ بهادرخیلو په مقام دَ فوځي قلا جوړولو تابیا اوکړله۔

په دے موقع باندے نولس ورځے پورے جنګ شوے وؤ دَ غازیانو دَ قومي لښکر نه نهه دیرش ۳۹ غازیان شهیدان شوی وو۔ اؤ بل خوا دَ فرنګی دَ فوځ نه شپږ دَ پاسه ځلور سوه (۴۰۶) فوځیان قتل شوی وؤ۔

په اوچته پیړئ کښے په پښتنو کښے دوه مشهورے ګوندئ دی۔ دَ یوے نوم ګاړ دے اؤ دَ بلے نوم سمل دے۔ خټک اؤ وزیر دواړه دَ یوے "سمل" "ګونډئ" خلق دي۔ په دے دغه کله چه په خټکو باندے کرنل کوک اؤ کرنل پونک حمله کړے وه۔ نو دَ وزیری قوم غازیان یې هم امداد له راغلے وؤ۔ اؤ په خاص طور سره دَ انګریزانو دَ فوځ دَ چاپنجاب رجمنټ دَ پیدل فوځ سره دَ وزیری غازیانو مقابله راغلے وه۔

# دَ بهادرخیل خټکو دویمه غزا

دَ سنه ۱۸۵۷ء دَ ګرمئ په ورځو کښے دَ خټک قوم غازیانو دَ انګریزانو برخلاف دَ جهاد میدان ته دَ راوتلو اعلان اوکړ۔ په پوره زور کښے راټول شول۔ لښکر یې اوکړ۔ اؤ دَ فرنګیانو په فوځي کیمپونو ډیر پیو تل۔ دغه غزا دَ کوهاټ

دا وو۔

(الف) انګریزانو په سنه ۱۸۴۹ء کښې په مقام د نري او مقام د لتمبر فوځي څوکۍ جوړې کړې وې۔ او د دغه څوکو نه يې د خټکو په علاقه حملې شروع کړې وې۔ د مثال په طور په سنه ۱۸۵۵ء کښې کرنل پوٹک د بهادر خېلو په علاقه چې حمله کړې وه هغه يې د لتمبر د فوځي څوکۍ نه کړې ده۔

(ب) دوېمه دا چې انګريزانو د راني زي قوم په علاقه حمله کړې وه۔ په دې غزا کښې د بهادر خيل۔ کرک او لېوغز خټکو حصه اخستې وه۔ د انګريزي فوځونو او غازيانو ترمنځه مقابله او شوله او ډېر لوېه او سخت جنګ نه پس د انګريزانو فوځ شکست اوخوړ۔ غازيان بريالي شول۔ او د مانګلے په درنګ (کان) باندې يوځل بيا اولسي قبضه اوشوله چې د لتمبر فوځي څوکۍ او وهلے شوله۔ نو د لېوغز خټکو تيارې شروع کړې چې د نري " په مقام د انګريزانو په څوکۍ باندې هم حمله اوکړي۔ او قبضه يې کړي۔

په دغه وخت کښې کپتان کاکس چې د بنوں ډپټي کمشنر وو۔ او په راني زي يې حمله کړې وه۔ هغه د راني زيو حمله په ځاي پريښوده۔ په تاخت راغې د خټکو مقابلې ته يې ځان تيار کړو۔ د فسټ پنجاب رجمنټ سالم پياده فوځ۔

(۲) د نمبر ۳ پنجاب رجمنټ د پياده فوځ څلور کمپنۍ۔

(۳) او د فسټ پنجاب رسالې څلور سکواډرنه۔ دا دومره مضبوط فوځ يې سره د توپخانې او جنګي سازاو سامان نه د خټکو مقابلې له ميدان ته راوستلو او په څلورم جون سنه ۱۸۵۲ء باندې د بهادر خيل خټکو علاقې ته راورسيده۔ خونړے جنګ اوشه د بهادر خيلو زمکه هم سوربخت او سره ده د دواړو طرفه د مړو او زخميانو په سرو وينو لوره هم سره شوله۔ د فرنګي دا خيال شه چې خټک به وبېړېږي يا ستړي شوي وي۔

سوال جواب یې ورا ولیږه چې حکم او منئ. سلامي شئ. خټکو جواب ورکړ چې دارمه خطا کوه چې میدان ته راځغلې او س مه تښته چې یو ځو لاسه جنګ نور او کړو بیا چې څه کیږي هغه به کیږي. چنانچه بهادرانو او ننګیالو خټکو غازیانو په فرنګیانو حمله دروله جنګ یې او کړ. جنګ دومره اوګد شه. غازیانو قیامتونه راکوز کړل. په آخره باندې کلې یې خالي کړ. دعمره غازیانو ته مورچې شول او جنګ یې جاري اوساته. دانګریزانو فوځ چې کلې خالي اوليده. پوره ورغلل. په کلي کښې چې واړه، زاړه، کمزوري بیماران یا څاروي هر څه چې وو مونده هغه یې اووژل او دکلي ټول کورونه یې وران کړل. ښکاره خبره چې یو بهادر دښمن داسې کار هیڅ کله هم نه کوي. مګر دانګریزانو تاریخ دداسې ظلمونو نه ډک دے. اګرچې انګریزان د میدانۍ علاقې په پائماله کولو کښې کامیاب شول. لیکن ددې واقعې نه وروستو تر سنه ۱۸۵۳ء پورې د لیوغر خټکو د جنګ سلسله جاري ساتلې وه

## ( د سنه ۱۸۵۲ء جهاد)

# د سپیري غزا

دګمبټي دغزا نه وروستو دانګریزانو اوډون یړو، مسیدو او توڅیو د کرم په علاقه کښې یوه غزا شوې وه چې د هغې حال مونږ په جدا باب کښې "ذکرے غزا ګانے" درج کړے دے. په دغه غزا کښې چې دعمرزو او احمدزو وزیرو دلاسه انګریزانو شکست اوخوړلو. نو د هغې دبدل اخستلو د پاره یې د بنوں دډپټي کمشنر میجر نکلسن په کمان کښې په شلم دسمبر سنه ۱۸۵۲ء ددرې نیم زره (۳۵۰۰) فوځ او سامان و سامان سره دګمبټي په لاره باندې په عمرزي او احمدزي حمله اوکړله. او دبرغنتي په لاره دسمر په خوا کښې د بنوں بنهر نه شپاړس میله لرې دعمرزي قبیلې دده کلو دریاني

اُو سپړنې نه ګیره تاؤکړله اُو داسې جنګ او نښت چه بیان یې نشي کیدلې۔
په دې جنګ کښې دَ عمرزي قبیلې ۷۰ کسان ننګیالي ځوانان شهیدان شول۔ تقریباً (۱۷۰) کورونه اُو خېمې یې په اور باندې او سوزیدلې۔ اُو دَ فرنګي دَ فوځ نه (۳۰۵) توټیان مړۀ شول اُو بې شمیره فوځي سامان وسامان یې لوټ اُو تالا شه۔

دَ دې غزا لویه خبره داده چه انګریزانو ډیرې تیارۍ نه پس حمله کړې وه۔ بیا هم دښمنان یې زیات او شه اُو ناکامیابه سره دَ توپکو۔ توپونو واپس شه اُو دَ پیلې موقع په تلاش کښې شه۔

# دَ میدانۍ غزه غزا (سنه ۱۸۵۹ء)

په سنه ۱۸۵۹ء کښې داسې واقعه پیښه شوې ده چه دَ بنوں ښهر نه شمالشرق طرف ته یو کلې دې۔ دوه میل اُو دَ شل میله په فاصله دَ ختک قوم یو کلې دې لتمبر۔ دلتمبر اُو دوه میل ترمنځه دَ انګریزانو یوه فوځي دسته دَ میجر میکن په مشرۍ فرنګي په کمان کښې دَ غازیانو په خلاف دَ اقداماتو دپاره پروته وه۔ دَ محبت خان اُو زنګي خان لومې دوه لومیال وزیري غازیانو په مشرۍ کښې دَ وزیرو، مسیدو اُو ختکو شاه ځلمو غازیانو دَ فرنګي په دغه فوځ حمله اوکړه اُو میکن فرنګي یې قتل کړ۔ دَ میکن فرنګي دَ قتل الزام په دغه دواړو لومیالو غازیانو اولګیده۔ هغوئ دواړه دَ کرمې علاقې ته واوړیدل۔ اُو دَ کابل خیل وزیرو په قبیله کښې استوګن شول۔

بل خوا ته دا واقعه هرکله چه دَ ختک نامې په زمکه دَ لتمبر اُو دوه میل ترمنځه پیښه شوې وه۔ نو انګریزانو فیصله اوکړه چه ددې بدل دَ ختک نامې دَ خلقو نه واخلي۔

دَ لتمبر نه کوهاټ شپیته میله شمالشرق طرف ته واقع دې اُو دَ ختک نامې سره تعلق لرونکې ښار دې۔ چنانچه دَ کوهاټ ډپټي کمشنر په رهنمائي کښې

څلورنيم زره انګريزي فوځ دَ پوره جنګي سامان اؤ سامان سره دَ ميچن فرنګي دَ
بدل اخستلو دَ پاره دَ لفټيننټ کرنل چيمبرلين په کمان کښې دَ کوهاټ دَ فوځي
چاؤنړئ نه روان شه اؤ په ۲۰ دسمبر ۱۸۵۹ء دَ کرمے دَ سيند نه دَ بلند خيل
په لاره دَ ميدانئ غر خوا ته راپريوت -

دَ انګريزي فوځ دَ مقابلے دَ پاره دَ توريالو اؤ جنګيالو غازيانو لښکر چه
په قام باندے خټک اؤ بنګش وؤ - اؤ په شماره درے نيم زره (۳۵۰۰)
غازيانو دَ بلند خيل قبيلے دَ علاقے په جنوب مغربي (سوئيلي غربي لوا ته)
خوا کښې اته ميله لرے په ميدانئ غر کښې دَ جنګ دَ پاره مورچه بندي اوکړله -

دَ غازيانو دا خيال وؤ چه دَ انګريزانو فوځونه دَ ميدانئ غر دَ شمال دَ
طرف نه دَ "ګنړي اوبه" په لاره نه شي راتللے اؤ دغے اړخ نه دَ فرنګي دَ
فوځونو دَ حملے خطره نشته - بلکه که دَ انګريزانو فوځونه دَ غازيانو مقابلے
ته راوراندے کيږي - نو دَ "زنځئ" په طرف به حمله کوي - په دغه وجه غازيانو
دَ ميدانئ جنوب طرف ته خپل پخلے کړے وؤ - مورچه شوي وؤ - ليکن انګريزانو
به ډيره چالاکئ غازيانو له تير ورکړ اؤ په ناخبرئ کښې په ۲۳ دسمبر ۱۸۵۹ء
دَ ګنړو اوبو په لاره انګريزي فوځونو په غازيانو چپاؤ راوړ - دواړه لښکرے اړچے،
بوچے شولے - دَ غازيانو اؤ فرنګيانو ترمنځه يو بے مثاله سخت جنګ جوړ شا چه
دَ دواړه طرفه نه قيامتونه راکوز کړے شول -

په دے جنګ کښې دَ وليځان اتمانزي وزير دده ځامن هيبت اؤ نيازي
اؤ دده ئ نه علاوه درے نوي (۹۳) نور غازيان شهيدان شول - اؤ بل خوا ته
دده ئ په مقابله کښې دَ فرنګي دَ لښکر نه اته سوه اوه نوي (۸۹۷) کسان
قتل شول - اؤ حمله کوؤنکي انګريزي لښکرو ته شکست ورکړ شه - انګريزانو ميچن فرنګي
بدل اخستو ليکن نهه سوه فوځيان يے لوړ کښې قتلان شول -

غازي محبت خان وزير اؤ زنګي خان وزير دَ چا دَ لاسه چه ميچن فرنګے قتل

شوي وو. هغوئ د میدانی غزه په غزا کښې هم توره اووهله. او د کرے د کابل خیل قبیلے د علاقے نه د بنوں د احمدزی وزیرو علاقے ته راغلل او د فرنګی په فوځی کیمپونو به یې حملے کولے چه په دغه منځ کښې د یو قوم ملت فروشو وطن دشمنو او غدارانو د لاس نه غازی صحبت خان ژوندے په کټ کښې تړلے فرنګیانو له ورکړے شه. او انګریزانو دغه نومیال غازی د میچن فرنګی په ځایے او بدل کښې په سولئ اوځیژاوه او شهید یې کړه.

د غازی صحبت خان د شهادت د واقعے نه وروستو غازی زنګی خان سره فکر ملګرے شه د شابی خیلو وزیرو علاقے ته را اووخت او په ملک صدرالدین پورے یې واړه ول. ملک صدرالدین داسے کار اوکړو چه ملک غازی زنګی خان یې د ځان سره روان کړو. د مسید قوم مرکزی ځایے او د اولسی تولنے او جرګو مرکز کانی ګرم ته یې بوتللو. د قام جرګه راغونده شوه او زنګی خان یې غازی جنګی خان (شهید) غازی زبیر خان (شهید) ملک غازی امین خان (شهید) چه دا درے واړه د مسید قوم مشران وو. هغوئ ته اوسپارو او دا یې اوویل چه زه د مسید قوم د مرستے او ملاتړ نه په غیر غازی زنګی خان نشم ساتلے. ځکه چه فرنګیان په دے پسے ډیره سخت هسه او لټون کوی. د ډیرے اوږدے جرګے مرکے نه وروستو دا تړه او شوله چه:-

" د زنګی (وزیر) مرګ او ژوند ځمونږ د ټول مسید اولس د مرګ او ژوند سره تړلے دے. تر څو پورے چه ځمونږ په قوم کښې نارینه خولا پریږده چه یوه مړه ښځه هم ژوندئ وی د زنګی نوک به هم څوک سور نه کا او د زنګی ښځه به کونتون ته نه پاتے کیږی "

د مسید قوم د دے تړون نه چه انګریزی حکومت خبر شه. نو هم په دغه کال سنه ۱۸۵۹ء کښې یې یو ځوا ته د بنوں د طرف نه او بل ځوا ته د ډیره اسماعیل خان د طرف نه په احمدزی وزیرو قام او په مسید قام د جنرل چیمبرلین په کمان کښې حمله اوکړه چه د هغے حال د "پلسین غزا" د سرخط لاندے په اختصار سره درج شوے دے.

# د پلسین غزا

د پښتنو غازیانو او د غیرملکی وطن دشمن او اسلام دشمن فرنګی د فوځونو ترمنځ چه د وزیرستان په سیمه کومې غزاګانې شویدی. په هغې کښې یوه نویه تاریخي او خونړۍ جګړه هغه ده چه د "پلسین غزا" په نامه یادیږی۔

دا واقعه داسې پیښه شوې ده چه په ۱۸۵۹/۱۸۶۰ء کښې د جرنیل سرنیول چیمبرلین په کمان کښې د شمالی او جنوبي وزیرستان په دواړو حصو په دوړو اتمانزو احمدزو وزیرو او مسیدو باندې حمله اوکړله۔ دا چیمبرلین هغه فرنګی وو چه په ستو د ۱۸۶۳ء د سرکاوۍ جنګ هم دده په کمان کښې شوې وو. د قبائلی علاقو نورو د پروجنګونو کښې شامل شوې وو۔ جنګیالی او چالاکه وو۔ روستو دده نمسې مستر چیمبرلین په دویم عالمګیرجنګ (۱۹۳۹ء تا ۱۹۴۵ء) کښې د برطانیه وزیراعظم وو۔

لکه چه روستو به بحث راشی داحمله په دوه طرفه وه۔ په شمالی وزیرستان سرنیول چیمبرلین حمله کړې وه او په جنوبي وزیرستان د حملې کمان جرنیل لمسډن کولو۔ کوم فوځ چه د سرچیمبرلین په کمان کښې وو۔ په دغې کښې یو بل انګریز جرنیل وو۔ چه د هغه نوم میجرجنرل سرجارج ینګ هز بند وو۔ ځما رور بتاعلی محمد ګلاب ننګرهاری پخپل کتاب کښې دده په نوم غلط شوې دی او د صوبه سرحد سابق ګورنر سرجارج کننګهم یې تر بیته مراد کړې دې او ظاهره ده چه دغه خیال صحیح نه دې۔

د خپل تجویز مطابق سرنیول چیمبرلین د کجورۍ۔ میرعلی۔ خیسور۔ رزمک او مکین په طرف حمله دړ وړې ده۔ لیکن بل طرف ته چه د جنرل لمسډن په کمان کښې کوم فوځ په جنوبي وزیرستان حمله کړې وه۔ هغه د پلسین په مقام د غازیانو په ګیره کښې راغلې وو او سرنیول چیمبرلین خپلی مهم په ځایې باندې نیمګړې پرېښودو او ځان یې پلسین ته رسولو ته جوړ کړ۔ پلسین ته د سرنیول چیمبرلین د امداد رسیدلو نه وړاندې چه په دغه مقام کومه غزا شوې وه۔ مونږ هغې ته د پلسین اولنۍ غزا وایو او د ددې امدادی فوځ رارسیدلو نه روستو چه بیا کومه دویمه غزا شوې وه هغې ته دویمه غزا وایو۔ کال هم د دغه یو سب ۱۸۵۹/۱۸۶۰ء وو۔ لیکن په دغه یو مقام باندې غزاګانې دوه ځل شوې دي۔

د پلسین د اولنۍ غزا په موقع باندې د غازیانو د لښکرو مشري ملک جنګي خان غازي کوله چه په تمام منزي مسید وو. د وزیرو او مسیدو ننګیالو غازیانو د غازي جنګي خان په مشرۍ کښې د فرنګي په لښکر باندې جنګ دروو ړ. او دا جګړه دومره سخته شوله چه د فرنګي لښکر او پښتانه ځوانان خوله په خوله او سینه په سینه ورغلل. او د تورو توپکو په ځای د متوو نور او د پیش قبضو د ګذارونو جنګ شروع شه او جګړه نښته اوشوه.

## جنګي خان شهید

په دې تاریخي او خونړۍ جګړه کښې چه لاس په لاس د تورو، خنجرو او نیزو او برچو وهلو جنګ وو. او دا دا په خوانه خلق ګډه ډوشوی وو. په لږ وخت کښې پنځه سوه او ووه پنځوس غازیان او په قول د سرچارج ینګ هزبنډ دوه نیم زره غازیان شهیدان شول. او د غازیانو مشران غازي جنګي خان او د ورسره شیرېتنه لوړلوړي مشران غازیان شهیدان شول. او په مقابله کښې د فرنګي د فوځ په دوه کښې دولس سوه نهه د پره اویا کسان (۱۲۷۹) فوځیان مړه شول. او اولس کسان د فوځ افسران یې هم قتل شول. او د انګریزانو فوځ د محاصرې په حالت کښې شه د چیمبرلین د امدادي فوځ په انتظار شه.

### دویمه غزا

د پلسین په مقام ددې لویې تاریخي غزا نه څه ورځې وروستو په اپریل سنه ۱۸۶۰ء کښې پلسین ته د سرنیول چیمبر لین امدادي فوځ راورسیده په دې غرض چه د مسید وزیري قوم په زمکه باندې ددې ننګیالي او توریالي قوم طاقت ختم کړي. لیکن خدائ پاک د غازیانو ملګرې وو. د انګریزانو دغه فسادي خواهشات ناکامه پاتې شول.

د جنرل چیمبرلین تجویز داوو چه د ټانک او ډیره اسماعیل خان

فوځونه دے دَ "ښتراونګی" په لاره کاڼی ګورم " ته ځان اورسوی. اؤ دَ بنوں
لښکر دے اول دَ اتمانزی وزیرو په علاقه حمله اوکړی. دَ مروتی اؤ خیسور
په لاره دے ځان رزمک ته اورسوی. اؤ بیا دَ هغه ځایه نه دے دَ مټ په
زور اؤ طاقت دَ مسید قوم مرکزی مقام مکین ته ځان اورسوی. بیا دے
دَ مکین اؤ کاڼی ګورم فوځونه یو ځایه شی. اؤ دا دواړه فوځونه کوم چه دَ
ډیره اسماعیل خان اؤ بنوں نه حرکت کوی. دوی له چه په لاره کښے هر څومره
کلی اؤ کورونه په مخه ورځی. هغه دے په اور او سیزی اؤ وران دے کړی.

دَ جنرل سر نیول چیمبرلین دَ تجویز مطابق دَ ډیره اسماعیل خان اؤ بنوں
دواړه فوځی چاؤنړو نه انګریزی فوځ حرکت اوکړ. دَ یو لښکر کمان دَ سر نیول
چیمبرلین په لاس کښے وو. اؤ دَ بل لښکر کمان دَ جرنیل لمسډن په لاس کښے
وو. دے دواړو انګریزی فوځونو دَ وزیرو مسیدو دواړو په علاقه کښے
یرغالونه اوکړل. اؤ پښتنو غازیانو یئے قدم په قدم مقابله اوکړله. په
نتیجه کښے یئے جنرل لمسډن په پلسین کښے محصور شه او چیمبرلین یئے
امداد له ورغے.

میجر جنرل سر جارج ینګ هزبنډ چه په دے جنګ کښے دَ کیپټن په حیث
بچله موجود وو. بچپل کتاب " دَ ګائیډ پلټنی سرګذشت " کښے دَ صفحه ۹۳
نه صفحه ۹۹ پورے چه کوم احوال درج کړے دیے. په هغے کښے په صفحه ۹۴ او ۹۵
چه دَ وزیرو محسودو غازیانو دَ جنګ حاله یئے په کومو الفاظو کښے رابښکلے ده
هغه دَ لوستلو ده. سر جارج ینګ لیکی.

چه دَ سر نیول چیمبرلین په کمان کښے چه کوم فوځ وو. هغه دَ وزیری قوم
بچواد مضبوطو قلاګانو طرف ته روان شه. اؤ دَ جرنیل مارسډن په کمان
کښے چه کوم فوځ وو. هغه دَ مسید قوم په علاقه دَ حملے دَ پاره حرکت اوکړ.
دے دویم فوځ یو نیم زر فوځی ځوانان دَ سامان جنګ اؤ رسد دَ حفاظت

دَ پاره دَ پیلسین په مقام پاتې شول۔ دَ خیل ځان دَ حفاظت انتظام ئې اوکړ او دَ
نور فوځ په ډیر احتیاط قدم په قدم مخکښې روان شه۔ دَ فوځ ځوانان به دَ یو بل
سره نژدې جُخت روان وُو۔ وړاندې روستو یو خوا بل خوا به ترې نه پهره دار
اؤ څوکیدار روان وُو چې غازیان پرې را نه شي۔ دَ جنرل مسهن فوځ په دې
انتظار کښې هُم وُو چې روستو به ورپسې نور انګریزي فوځ امداد له را اورسي۔
په دې منځ کښې دَ دښمن (یعنې مسلمانانو غازیانو) دَ را تللو اؤ حملې کولو څه
هیڅ آثار اؤ علامې په نظر نه را تللے۔ اؤ نه دَ انګریزي فوځ جاسوسانو اؤ
مخبرانو اؤ انګریزي فوځ ته څه قسم اطلاع ورکړې وه چې نژدې یا لرې چرته
غازیان موجود دي۔ په چار چاپیره غرونو هم دَ غازیانو څه هیڅ قسم علامه
نه ښکاریدله۔ انګریزي فوځ په بې غمه زړه کیمپ لګولے وُو۔ چې په دغه منځ
کښې دَ میجر جنرل سر جارج ینګ هزبنډ په الفاظو کښې:۔

*مگر ایک دفعہ ہی نہ معلوم کہاں سے۔ آسمان سے یا زمین میں سے*
*ہزاروں وزیری نکل پڑے اور انگریزی لشکر پر ٹوٹ پڑے*

(ترجمه) مګر یو ناساپه معلومه نه دَه چې له کوم طرف نه چې دَ آسمان
نه که دَ زمکې نه په زرګونو وزیري (غازیان) را اووتل۔ اؤ په انګریزي
لښکر یې چپاؤ را اوړ۔

سر جارج د دې جنګ ډیره ښکلې نقشه را ښکلې دَه۔ مخکښې لیکي چې
په ۲۳ اپریل سنه ۱۸۶ء باندې دَ سحر وخت وُو۔ نمر لا نه وُو را ختلے۔ دَ
انګریزي فوځونو په کیمپ کښې لا دَ سحر ګل نه وو غږیدلے چې:۔

*تین ہزار وزیری تلواروں اور بندوقوں سے مسلح اور مذہبی جوش میں دیوانہ لشکر کے اس بازو*
*پر حملہ آور ہوئے جہاں گائیڈز تعینات تھے۔*

ترجمه:۔ درې زره وزیري غازیان چې تورې اؤ ټوپکونه ورسره وُو۔ اؤ دَ
غزا اؤ جهاد مذهبي جوش لیونی کړي وُو۔ دَ انګریزي لښکر په هغه اړخ حمله اوکړه

چرته چه د کائیه پلټن فوځیان پراته وو. سرجارج مکنیې لیکي:-

ان سفید پوش شمشیر بندوں کو کہ آندھی کی طرح چڑھے چلے آتے تھے (صفحہ ۹۵)

(ترجمه) هغه سپینې جامې اغوستونکي غازیان چه لوړ ته درسره وې او په انګریزي فوځونو داسې د پاسه آزاد راختل لکه چه طوفاني سیلۍ چه وي.

د غازیانو دا طوفاني سیلۍ په انګریزي فوځونو ورغله. لاس په لاس د بړچو او پیش قبضو جنګ شروع شه. د انګریزانو د فوځ دده تیم زړه نو دیا د ستړګو په رپ کښې په نمکه ګذار کړے شول. وزیري غازیان د انګریزي فوځ منځ ته ورننوتلي وو او څلور واړو طرف ته د تورو ګذارونه یې کول او د کفارو په لښکر کښې یې پرے او کښیکلے. سرجارج یګ هزبنډ ددے خپل کتاب په صفحه ۹۶ باندے د دغه لاس په لاس جنګ منظرکشي په دے الفاظو کړے ده:-

"اب جنگ کا ہنگامہ گرم ہوا۔ گھوڑے اور خچر منہنانے اور چیخنے لگے اور اپنی اگاڑی پچھاڑی توڑے ڈالتے تھے۔ کتے بھونکنے لگے۔ آدمی چلاّنے لگے۔ تلواروں کی کھٹاکھٹ اور بندوقوں کی گڑگڑاہٹ۔ زخمیوں کی چیخ پکار اور مرنے والوں کی ہائے ہائے سے کان پڑی آواز سنائی نہ دیتی تھی۔"

(ترجمه) چنانچه د جنګ هنګامه لتوده شوله. آسونو او قچرو هنړیدل او چغې شروع کړے. خپلې داګے او پچواړي شلول یې را دا خیستل. سپو غپا شروع کړه. بنیادمو چغې کړے. د تورو شرنګار او د ټوپکو نو د ډزو درزهار. د زخمیانو کوکار او د مړه کیدونکو هائي هائي چغودا سے قیامت جوړ کړے وو چه آواز نه شه آورید لے.

ددے خونړي جنګ انجام دا شه چه انګریزانو شکست او خوړ. فوځ یې په ماتے سر شو. په زرګونو فوځیان یې مړه شول. چه په هغې کښې زیات

تعداد د سکهانو او گورکهیانو وؤ. کثیر انگریزان افسران هم پکښې اوو ژلي
شول چه په هغې کښې د لفټیننټ بونډې او د لفټیننټ لوئیس نوم ونه د یادولو دي۔
په دې جنګ کښې د سکهانو څلورم نمبر او د گورکهیانو پنځم نمبر پلټنې شامل وې۔ او
په دې شان سره انګریزانو چه د سرنیول چیمبرلین په کمان کښې د وزیرو محسودو
په علاقه کومه لویه حمله کړې ده۔ هغه ناکامیابه شوله او په مئی ۱۸۶۰ء
کښې یې فوځونه را واپس شول۔ په دې جنګ کښې د انګریزي فوځ لوئی جانی
تاوان شوی وو۔ دوه زره او لاسو شپږ نوی (۲۷۹۶) فوځیان۔ او د دې نه علاوه
نهه کسان لوئې لوئې فوځی فرنګیان افسران یې د خاورو خوراک شول۔ او د پښتنو
غازیانو د ټولو قبیلو او خیلونو د ټولو هغه شاه ځلمو چه د شهادت درجه یې
حاصله کړې ده هغه په شماره پنځه اتیا (۸۵) وو۔ او لویه خبره داده چه
میدان پښتنو غازیانو او کا ته۔ انګریزي فوځونو شکست اوخوړ۔ او مکین ته
د رسیدلو ارمان یې په زړه کښې پاتې شه۔ دلته دا یاد لرل پکار دي چه سراج
د غازیانو د شهیدانو کل تعداد (۱۳۲) بیان کړې دے۔ لیکن صحیح تعداد هم
هغه (۸۵) دے۔

## غازي پاخري

په دې جنګ کښې د وزیري غازیانو یو دلے د انګریزي فوځ په یوه کمپنۍ
باندې د غازي پاخري وزیر په مشرۍ کښې حمله کړې وه۔ خواجه خواص تمرخان
بارودین او میر کمل نومې شاه ځلمي غازیان د انګریزي فوځ منځ ته ورورسیدلی
وو۔ او مشر انګریز فوځی افسر کیپټن منجام یې وژلے وو۔

## د دې تاریخي غزا یو منظر

د سرنیول چیمبرلین په کمان کښې چه انګریزي فوځونو د وزیرستان په

دواړو حصو شمالی او جنوبی کومه لویه حمله کړې وه او په نتیجه کښې په
دې تاریخي غزا کښې غازیانو ته کامیابي حاصله شوې وه - د دې تاریخي پس منظر
هم په علم کښې راتلل پکار دي.

واقعات داسې پیښ شوي وو چه کله انګریزانو د پیره اسماعیل خان
ږملکه ته راشریک نشول - نو په دې ږملک چه کوم لوئي لوئي خانان او
نوابان وو او د پخوا راسې د درانی حکومت او وروسته د سکهانو د حکومت
سره یې معاهدې وې - هغوی د انګریزانو سره هم معاهدې اوکړلې
او خپل اقتدار یې محفوظ کړ - په دغه سلسله کښې یو د خانی او نوابي
خاندان د نواب شاهنواز خان کټی خیل وو چه په ټانک کښې یې خانی او
نوابي وه - په ټانک باندې اګرچه دده عملداري وه - لیکن انګریزانو له یې مراعات
ورکړي وو - د انګریزانو د پنجاب رجمنټ د سکهانو او ګورکهیانو فوځ د معاهدې
له مخه په ټانک پېرت وو - او د معاهدې له مخه د نواب چه کوم خپل فوځ
وو - د ټانک حفاظت کول د نوابي فوځ او انګریزي فوځ دواړو شریکه
ذمه واري وه - یو خوا ته ټانک د جنوبي وزیرستان دروازه ده او بل خوا ته
چه هر کله د انګریزانو او وزیرو مسیدو ترمنځه جنګونه تاؤده شول او د
ټانک سکه او ګورکه فوځ په هغې کښې په خصوصیت سره ظلمونه اوکړل او د
ټانک د نواب فوځ هم په هغې کښې حصه دار معلوم شه نو وزیرو او مسیدو
غازیانو په ټانک د حملې کولو فیصله اوکړله - د ۱۸۵۹ء سنه په آخر کښې د ټانک
په فوځی کیمپ او بازار حمله اوشوله - د پنجاب رجمنټ فوځ یې زیر او زبر
کړ - او د ټانک ښهر یې لوټ او تالا کړو بیا وروستو د دغې په جواب کښې
د ۱۸۶۰ء سنه په ابتداء کښې د کرنل چیمبرلین په کمان کښې هغه لویه حمله شوې
وه چه مخکښې یې ذکر اوشه.

په ټانک باندې د وزیرو حملې او تالان او ورسته د ۱۸۶۰ء سنه په غزا کښې

ټانک ته بیا ډیر لوئے نقصان رسیدلو په وجه د نواب شاهنواز خان حکمران د ټانک سره خطره پیدا شوله اؤ په جون سن۱۸۶۱ء کښے یې د انګریزانو اؤ وزیرو مسیدو په منځ کښے د ددغے جوړے کولو کوشش شروع کړ۔ د شالم خیل علی زی اؤ بهلول زی قبیلو څه مالکان یې رضا کړی هم وو۔ لیکن د فقیر شیر علی خان (شهید) غازی پیر دل خان۔ غازی خداداد۔ اؤ غازی حسین خان د مخالفت په وجه د انګریزانو دغه کوشش هم ناکامیاب شه اؤ د غزا میدان ګرم په ګرم پاتے شه۔

# د دوړو غزا

د سن۱۸۶۱ء نه ورپسے د انګریزانو څولو د وزیرستان په سیمه د دوړو وزیرو اؤ مسودو قومونو په بیله بیله حصه پوله پسے حملے اوکړے د دے حملو په لړ کښے د دوړو په علاقه د حملے ابتداء کرنل سر هنری چیمبرلین کړے ده۔ د جغرافیائی محل وقوع په لحاظ د دوړو علاقه داسے ده چه د شمالی وزیرستان په سیمه کښے د بنون د پولے پورے په آواره اؤ میدانی حصه کښے دوړ اؤ وزیر شریک پراته دی۔ لیکن دواړه طرف ته د ټوچي دریاب نه پورته لیلے خواته چه کوم غرونه دی په هغے وزیری خلق آباد دے۔ د وزیرستان اهمو ځایونو میران شاه۔ دته خیل۔ رزمک وغیره ته لاره د دوړو په علاقه کښے تلے ده۔ د غیسور اهم ځایئے د دوړو په لاره قبضه کیدلے شی۔ چنانچه د دے فوجی اهمیت له مخه انګریزانو د سن۱۸۶۱ء نه وروسته د دوړو په علاقه کښے د فوجی اقدامانو په تکل کښے شول۔ د وزیرستان دوه مشهور غازیان بزرګان باری فقیر اؤ مولانا ګلاب دین المعروف په وزیرو ملا صاحب د انګریزانو د دے ناپاکے منصوبے نه

غالبًا چه خبر شوی وؤ۔ هم دغه وجه ده چه دے دواړو نامدارو
غازیانو د فیرنګی د تجاوز نه د مقابلے د پاره تیاریٔ کولے۔ چنانچه په
دغه شان حالاتو کښے په ۱۸۵۲ء کښے انګریزی فوځونو د کرنل کینز په
کمان کښے د شمالی وزیرستان د دوړ قوم په علاقه حمله اوکړله۔ او د کجوریٔ
په مقام د تاریخ یو عظیم الشّان جنګ اوشه چه د فیرنګی فوځونو ته
زیات جانی او مالی نقصان اورسیدلو۔ او د وزیرستان لویئے روحانی
پیشوا باری فقیر په دغه غزا کښے د شهادت اوچت مقام حاصل کړو۔ هرکله
چه د وزیرستان په "مشاهیر غازیانو کښے باری فقیر ته لوړ مقام حاصل
دے۔ په دے وجه د هغهٔ شان حالات ئے دلته درج کول مناسب معلومیږی۔

# باری فقیر شهید

باری فقیر علیه الرّحمة د وزیرستان د علاقے یو مشهور روحانی
پیشوا او لویئے غازی تیر شوے دے۔ اصلی نوم ئے پیویز خان وؤ۔ او
په قام باندے محمود خیل اتمانزے وزیر وو۔ په عوامو کښے په "باری فقیر" نامه
زیات مشهور دے۔ د جناب مولانا عبد الغفور باباجی صاحب د سوات مرید
او ماذون وؤ۔ او د هغویٔ په مشرئ کښے ئے د ۱۸۶۳ء د بونیر په جنګ کښے
د سرکاویٔ په غزا کښے حصه اخیستے وه۔ د دغه نه وړاندے په وزیرستان کښے چه
په ۱۸۵۹ء او ۱۸۶۰ء کښے د پلسین غزا په نوم کوم جنګ شوے وؤ۔
په هغے کښے ئے هم د غازیانو رهنمائی کړے وه او توره ئے وهلے وه۔

د باری فقیر د یو خوریٔ او منلی ملګری او مرید غازی الله بازخان نه روایت
دے چه کله پیرنګیانو د صوبه سرحد په علاقه په ۱۸۴۹ء کښے قبضه اوکړله
نو د هغه ورځے نه وروستو د باری فقیر صاحب دا کار وؤ چه د فقیریٔ په جامه
کښے به د وزیرستان نه سوات ته د خپل پیر سلام له تللو او د سفر په دوران

کښې چې په کومه علاقه کښې به دَ پېرنګی بر خلاف دَ غزا دَپاره لښکرې تولیدلې نو دَ بُنیر - چمله - رانی زئی وغیره علاقو غزاګانې ښوړلې - نو دې به په هره یوه غزا کښې په میدان کښې تیار او ټکره ولاړ او شامل وو - دا ټول نیک عمل او دَ خدائې په لاره کښې غزاګانې دا هر څه یې دومره بې ریا او په اخلاص کړل چې کله به دَ بونیر - سوات - مهمند و - خیبر او پیښور دَ علاقو دَ غزاګانو نه راستون شه - او واپس به خپل کلی ته راغې - نو دَ کور کلی خلقو یا خپلو خپلوانو هیڅ ته به یې هم دا حال نه ښکاره کړلو چې زه غزا له تلې وَوم -

دَ غازی الله باز خان نه روایت دے چې کله باری فقیر وفات کیده - نو دَ هغې نه لږ مخکښې یې دَ خدائ پاک دَ شکریې اداکړلو په طور دا خبره دَ خولې نه ختلې وه :-

"دَ لوئې خدای ډیره ډیره شکریه اداکوم چې زما غوندې عاجز فقیر انسان دَ لاس یې (۳۳) کسان دَ لویو لویو عهده خاوندان انګریزان افسران وژلي دی -"

روایت دے چې یو ځل دا نامور غازی دَ سوات په سفر روان وو - دَ نوښار سیند ته چې اورسیده نو دَ اوداسه دَپاره دَ سیند غاړې له چې ورغے - څه کوری چې یو فرنګے ولاړ دے دَ ماهیانو ښکار کوی - دَ فقیر صاحب په لاس کښې ټل وو - په هغې یا ندې فرنګے رسا په سینه اوواهه سیند ته یې ګذار کړ - روایت دے چې دا لاندینې شعر دَ باری فقیر وظیفه وو - چې هر وخت به یې په ډیره مینه وایه

دَ نبی سترګې سرې کل - دي دَ دیدن لائقې
راځئ انګریز په توپې - که شهید شمه

او آخر داچه د غه ارمان یې خدائ پوره کړ - او په سنه ۱۸۶۳ء کښې چه انګریزی فوځونو د کرنل کیسنز په کمان کښې د دوړ په علاقه حمله کړې وه په هغې کښې شهید شه - او د شهادت کوم ارمان چه یې وظیفه کړې وو - او دا یې د خدای نه سوال وو - چه د شهادت په وسیله د حضرت محمد مصطفے صلی الله علیه وسلم لکه د کلونو په شان سرو سترګو مبارکو دیدن اوکړی هغه ارمان یې ترسره شه - د شهید باری فقیر ددے شعر نه د حضور نبی کریم علیه التحیة والتسلیم سره د هغه مینه څرګندیږی - او دا تر ینه معلومیږی چه هغه خالص د الله تعالی د رضا د پاره غزا کانے کولے علیه الرحمة والغفران -

# د ټانک دویمه غزا

مخکښے د ټانک د هغه غزا ذکر شوے دے چه په سنه ۱۸۶۰ء کښې شوے وه - د دغے نه دریو ستو چه په ټانک باندے وزیرو، مسیدو او بیټنو او د دړ د غازیانو کوم جنګونه کړیدی د هغے د پوره بیان د پاره روغ کتاب پکار دے - په دے وجه دلته د ټانک د یوے بلے لویے غزا ذکر کوؤ چه دد غه اولنی غزا نه شل کاله وروستو په سنه ۱۸۷۹ء کښې شوے وه -

دا واقعه دا سے پیښه شوه چه د تاریخ صولت افغانی (صفحه ۳۲۵) د روایت مطابق په ورځ د شنبه (هفته) ۲۶ د محرم الحرام سنه ۱۲۹۷ھ مطابق لسم تاریخ جنوری سنه ۱۸۷۹ء د وزیرو او مسیدو د دا ړو قومونو لښکی د مولانا ګلاب دین المعروف په وزیرو ملا صاحب او د مولانا شمس الله خان صاحب وزیر په مشری کښې جمع شه او د ټانک په بازار یې حمله اوکړله - د ټانک بازار د حفاظت د پاره او د غازیانو د مقابلے د پاره د انګریزانو فوځ د کیمپ نه را او وته - جنګ اونښت - تود شه - غازیانو په بازار او د پورے

کړ۔ بنهریځ اوسیزلو۔ او دَ انګریزانو کوم فوځ چه مقابله کوله۔ دَهغې نه ځ شپږ سوه درے پنځوس (۶۵۳) فوځیان اووژل۔ او په مقابله کښې یوکم دیرش[29] غازیان شهیدان شول۔ او دَ پیرنکیانو دنګے ماتړیځ پکښې اوسوزیدلے۔

دَ دے زوره ورے مرګ اوژوبلے او په بازار دَ اور لګولو په دے اړی کړی کښې غازیانو په بازار باندے تالان هم کړے وو۔ او پنځ ونه پنځ وسه مال غنیمت یځ کورونو ته یوړلو۔

لیکن واقعات دا دی چه دَ غازیانو دَ دے حملے او د ټانک بنهړ سوزولو نه اصلی مقصد لوټ او تالان نه وو۔ بلکه اصلی وجه ځ دا وه چه لکه مخکښې هم ورته اشاره شوے ده دَ ټانک کټی خیل نواب دَ انګریزانو سره دَ یوے معاهدے په وجه یو خواته دَ انګریزی فوځونو امداد کولو۔ دَ غازیانو په مقابل کښې دَ ټانک حفاظت ب ځ پښتو نوکرانو هم کولو۔ او بل خواته په وزیرو مسید و ملکانو کښې به ځ لاس وهلو دَ انګریزانو دَ پاره بے ځ دله هم پیدا کوله او دا یوه دا سے خبره وه چه دَ غازیانو ملا پرے باندے ماتیدله۔ اتفاق ځ بیرے ختم کیده۔ او دَ دشمن انګریزلاس پرے مضبوطیدل۔ غازیانو چه ټانک باندے دا دویمه لویه حمله کړے وه دَ دے په ذریعه ځ دا ښودل غوښته چه دَ اولس دومره زور دے چه دَ انګریزانو طرفداران څه چه پخپله دَ انګریز فوځ ځ هم مقابله نه شی کولے۔

# دَجهاد سرکزونه

---

[29] دا واقعه نه دوستو په سنه ۱۸۰۰ کښې دَ قوم مشرانو او پښتنو عالمانو لکه مولانا ګلاب دین المعروف په وزیرو ملاصاحب۔ مولانا حمزالله خان

وزیر۔ مولانا کاکاصاحب اتمانزی وزیر په اولس کښے دَ جهاد تبلیغ شروع کړ۔ او دفرنګی په خلاف دَ غزا دَ پاره یې دَ ټولو غازیانو ځوانانو را ټولو له زور درکړ۔ او ورسره ورسره جنګی وسلے تیاره ول او راغونډه ول ئې شروع کړل۔ چنانچه غازیان دَ دے خپلو قومی او دینی مشرانو په آواز راپورته شول او دَ شمالی او جنوبی وزیرستان په مختلفو ځاؤ او مرکزی ځایونو کښے دَ غازیانو مرکزونه قائم کړل۔ او په لویه پیمانه په انګریزانو چپاؤ کولو ته تیاری ئې شروع کړه بل خوا ته چه څه وخت انګریزان دَ غازیانو دَ دے قسم تیاری نه خبر شول۔ نو ناراستی یې او نه کړله په حمله کښے دَ غازیانو نه وړاندے شول۔ دَ بنون او ډیره اسماعیل خان دَ فوجی کیمپونو نه ئې فوځونه را او کښل او د درے مشهورو جرنیلانو په کمان کښے ئے په سنه ۱۸۸۱ء کښے دَ وزیرستان په درے مختلفو علاقو باندے درے لوئے حملے ئے او کړلے دا درے واړه حملے هم په هغه لارو او هغه پروګرام باندے شوے وے کومے چه دَ دے نه وړاندے دَ جنرل سرنیول چیمبرلین په کمان کښے شوے وے۔ مګر ناکامیا به شوے وے۔ دا سے معلومیده چه دا ځل دَ چیمبرلین د ناکامیابی بدل اخیستل غواړی۔ دا حملے په دے طریقے شوے وے۔

(الف) دَ کرنل رائینډ په کمان کښے دَ بیټنی قوم په علاقه حمله۔

(ب) دَ جنرل ګاردن په کمان کښے دَ دوړ او وزیرو په علاقه حمله۔

(ج) دَ جنرل ګاردن او جنرل کنیډی په کمان کښے دَ مسیدو په علاقه حمله۔

دا درے واړه حملے په سنه ۱۸۸۱ء کښے شوے وے تجویز دا وو چه کرنل رائینډ دَ بیټنی قوم علاقه او وهی۔ نو دَ وزیرو او مسیدو علاقے ته به ورننوتی او دَ جنرل کنیډی سره به یو ځای شی دَ بل خوا نه جنرل ګاردن ورله

راتاوشی. او په دے جوړه دَ مکین علاقے ته ځان اورسوی. لیکن هرکله چه کرنل رائیډ دَ بیټنو او احمدزو وزیرو په علاقه کښے داسے گیر شه چه خلاصے ئے گران شه او بل خواته په جنرل کنیډی هم سخته راغله نو جنرل کارډن چه دَ دووړو په علاقه حمله کوله او جنګ یے شروع کړے وو. لاړ ئے بدله کړه. ځان ئے جنرل کنیډی ته اورسولو ځکه چه هغه ډیر بد بد گیر شوے وو. او په دے شان دَ جنرل کارډن او جنرل کنیډی په شریکه کمان کښے دَ مسید وو په علاقه ئے جنګ وړو چه کانیگرم قبضه کړی او ورپسے مکین ته ځان اورسوی.

# دَ مکین غزا

که فکر اوکړے شی. دَ سنه ۱۸۸۱ء نه مخکښے که دکرنل سرنیول چیمبرلین. جنرل سر جارج هزبنډ او جنرل لمسډن په کمان کښے په وزیرستان حملے وے او که په سنه ۱۸۸۱ء کښے دَ کرنل رائیډ. جنرل کارډن او جنرل کنیډی په کمان کښے حملے وے. دا ټولے مکین ته دَ ځان رسولو. او په مکین د قبضے نکولو دَ پاره وے په دے وجه مونږ ه په خصوصیت سره دَ سنه ۱۸۸۱ء دغه در ے واړه حملے دَ " مکین غزا " په نامه یاد ے کړ ے. بل خواته دا در ے واړه حملے دَ غازیانو دَ طاقت ختم کولو دَ پاره وے. او اصلی مقصد ئے دَ غازیانو هغه مرکز ونه تباه کول وو چه غازیانو په دغه نزدے ورځو کښے دَ جهاد دَ انتظاماتو دَ پاره په حیدرخیل. شکتوئه او مکین کښے قائم کړی وو. لیکن فرنګیان په دے خپل ناپاک مهم کښے کامیاب نه شول. او څرنګ چه دَ کرنل چیمبرلین مهم ناکامیابه شوے وو. دغه شان دَ جنرل کنیډی مهم ناکامیابه شه یوزر درے سوه او دوه (۱۳۰۲) فوځیان او فوځی افسران ئے قتل شول. ټوپکونه کارتوس او نور بے شماره فوځی

ساز او سامان ترینه پاتے شه او په ماتے بیرته واپس شول.

دَ سنه ۱۸۸۰ء د دغ کال په جنګونو واړی کړی کښے تیر شه. د فرنګی چه کوم خیال وو. هغه ترسره نه شه. مالی او جانی تاوانونه ورا ورسیدن. او دَ جنګونو دا سلسله تر سنه ۱۸۸۱ء پورے اوغزیدله.

دَ سنه ۱۸۸۰ء او سنه ۱۸۸۱ء په دے غزاګانو کښے قومی مشرانو. عالمانو او روحانی پیشوایانو چه کومه تاریخی کارنامه انجام ته رسولے وه. هغه داوه. چه یو خو ته ئے مخپله دَ جنګ په میدان کښے تورے هم وهلے. او بل خوا ته ئے دَ غزا تبلیغ هم کولو. او دا دَ هغوی دَ پرجوشه او پرخلوصه تقریرونو و تبلیغ برکت وو. چه غازیان دَ سر او مال نه تیر شوی وو. او دَ وطن او دین اسلام دَ حفاظت دَ پاره ځانونه ئے شهیدان کړی وو. او ورسره ئے دَ دشمن په سرونو هم لوبے کړے وے.

---

# دَ انګریزانو سیاسی حمله

هر کله چه دَ سنه ۱۸۸۰ء او سنه ۱۸۸۱ء په دوه کلنئ اوږده جګړه کښے انګریزانو ته په هیڅ ډول هم دَ وزیرستان دَ غازیانو برخلاف کامیابی حاصله نه شوه. او هغه دَ پښتنو خبره چه دَ تیښتے لاره هم ورکه شوه. او بل خوا دَ عالمانو او قومی مشرانو دَ تبلیغ په وجه دَ غازیانو طاقت درځ په ورځ زیاتیده. او په انګریزی فوځونو دا سے ویره راغلے وه چه دَ کیمپ نه به ئے په خوښه قدم نه شه باهر کولے. نو انګریزی فوځی افسرانو دَ فرځی حلے په ځای سیاسی حمله شروع کړه. دا دَ انګریزانو داسے ملے شوے حربه او تجربه شوے لوبه وه چه دَ دنیا په اکثرو حصو کښے ئے مسلمانان پرے وهلی دی. او دا ئے غوښتل چه دَ وزیرستان مشران هم په

دغه حربه اووهی. تجویزئ دا جوړکړ چه په ۱۸۸۱ء کښې ئې دَ پښتنو مشرانو ملکانوله دَ تنخواه ګانو ورکولو او دَ تجارتی مراعاتو ورکولو دام اوغوړولو او په دے شان سره دَ غازیانو دَ قابو کولو او دَ دغے نه علاوه قومی خلق په خپل منځ کښې په یو بل باندے دَ شک من کولو او په یو بل دَ وهلو دَ پاره ئې کوششونه شروع کړل.

واقعات دا دی چه دانګریزانو دا سیاسی حربه او حمله د قوم دَ اتفاق. اعتماد او یو والی دَ پاره ډیره زیاته خطرناکه وه. لیکن دَ خدای پاک مهربانی وه. په هغه وخت چه دَ وزیرستان کوم قومی او اولسی مشران وو. یا عالمان او روحانی پیشوایان وو. لکه مولانا ګلاب دین صاحب. مولانا حمزالله صاحب. مولانا کاکا صاحب. مولانا صاحب دَ ارګڼ دَ هغوئ په قوم کښې ډیر لوئ اثر او رسوخ. برکت او عزت وو. دا ټول ایماندار عالمان او توریالی غازیان وو. او دَ ملک او قوم دَ آزادئ په راز او دَ دشمن انګریز دَ فریبونو په خطرناکو نتیجو هوئ باندے ډیر ښه پوهیدل. هغوئ هم نا راسته او نه کړله. دَ انګریزانو دَ دے سیاسی حملے دَ پاره ئې قومی تړون او کړ. "اولسی جرګے" ئې جوړے کړے. دَ پښتو ژبه او لوظ ئې دَ قام نه واخیست. باندے کیښودے شوه. چه هیڅوک به دَ انګریزانو نه بډے. رشوت. انعام. اکرام. مراعات هیڅ شے نه اخلی او نه به ئې قبلوی. عالمانو بیرغ راپورته کړ. دَ انګریزانو په رشپت خوړو پیسے او په هغه چاپسے چه دَ انګریزانو دَ دوستئ په تور باندے تورشوی وو په هغوئ پیسے ئې راواخیستله. قومی خلق اولګیدل چه څوک دَ فرنګی تنخواه خواره شوی وو. هغه ئې دَ کورکلی نه اوویستل. مرے ئې ونه ئې ورسره پرینبودل. خبرے اترے ئې ورسره بندے کړے. او عالمانو ئې جنازه کول پرینبودل. دَ جمانو

نه ئې ایسار کړل. نتیجه ئې دا شوه چه کوم ځوک دَ خپلې بې ننګۍ په وجه دَ فرنګی تنخواه او انعام اخیستلو ته تیار شوی وو. هغوئ هم دَ اولس تړے ته تینګ نه شول او دَ پرنګی نه په شا شول. توبه ئې اوکښله. او په دے شان دَ انګریزی افسرانو دا سیاسی حمله ناکامه شوه.

# مولانا ګلاب دین شهید

دَ ۱۸۸۱ء او ۱۸۸۱ء دَ غزا اهمه واقعه دا وه چه په دے غزا کښې مولانا ګلاب دین شهید شوے وو. غازی مولانا ګلاب دین چه په عامو خلقو کښې په "وزیرو ملا صاحب" نامه زیات مشهور دے او اصلی نوم ئې ډیرو لږو خلقو ته معلوم دے په قام باندے سرکی خیل احمدزی وزیر وو. او ټول عمر ئې په غزا ګانو کښې تیر شوے دے.

هر کله چه په ۱۸۶۰ء کښې دکرنل سر نیول چیمبرلین په کمان کښې انګریزی فوځونه روان شول چه دَ بنوں نه دَ میرعلی او خیسور په لاره دَ شمالی وزیرستان علاقې ته ننوځی او دَ دوړو او وزیرو علاقه تباه کړی. نو غازی مولانا ګلاب دین المعروف وزیرو ملا صاحب چه په دغه زمانه په بنوں کښې اوسیده لوی عالم وو. دَ اولس دَ قومی او روحانی رهنمایئ کولو توفیق خدای ورکړے وو. په دین اسلام. ملک او قوم مئین وو. دَ وطن په ننګ دَ سر او مال نه تیر وو. هر کله چه په ۱۸۶۰ء کښې انګریزانو دشمالی وزیرستان دَ دوړ قوم دَ علاقې دَ نیولو دَ پاره اقدامات شروع کړل. نو دَ انګریزانو دَ دغه ناپاکه اقداماتو دَ ناکامیابه کولو دَ پاره مولانا ګلاب دین دبنوں نه کډه اوکړه. او دَ شمالی وزیرستان دَ دریائے توچی په غاړه دَ بجوری په علاقه کښې حیدرخیل نومے کلی ته راغے. او دا مقام ئې دَ جهاد دَ تیاری

د پاره مرکز او ګرځولو.

"مولانا ګلاب دین وزیر" اولنی مجاهد دے. چه دَ انګریزانو دَ منظم او وسله بند فوځونو دَ مقابلے دَ پاره دَ "وسلے جوړولو" دَ یوے کارخانے قایم کولو انتظام او تدبیر ګړے وو. چه په هغے کښے توپکونه. تماچے توړے. چړے. پیش قبضے. برچے او دارو مردکی او دړه توپونو جوړولو بنائے کړے وه. او هر کله چه بنه پوره وسله هم تیاره شوه. او دَ قومی او اُولسی غازیانو مضبوطه ډله هم جوړه شوه. او اولسی تنظیم برابر شه. نو دَ انګریزانو په خلاف دَ منظمو غزاګانو سلسله شروع شوه. او دَ دے تیاری برکت وو چه هر کله کرنل سر نیول چیمبرلین او ورپسے جنرل ګاړډن دَ دوړو په علاقه کوے حملے کړے وے هغه ناکامیابه شوے وے.

مولانا ګلاب دین دَ ۱۸۶۰ء نه تر ۱۸۸۰/۸۱ء پورے دَ دین اسلام دَ سرلوړیُ او دَ پیرنګی دَ قبضے نه دَ پښتنو مسلمانانو دَ خوږ وطن دَ بچ ساتلو دَ پاره شپه او ورځ په غزاګانو کښے تیره کړه. او په آخر کښے چه هر کله په ۱۸۸۰/۱۸۸۱ء مطابق ۱۲۹۸/۱۲۹۹ھ ق کښے دَ وزیرو مسیدو. دوړو په علاقو دَ جنرل ګاړډن او جنرل کنیډی په کمان کښے انګریزی فوځونو کومه حمله کړے وه په هغے کښے شهید شه. څما رور بنا غلی محمد ګلاب ننګرهاری چه دَ دویُ دَ شهادت کال ۱۳۰۹ھجری قمری ښودلے دے هغه صحیح نه دے. دَ اسلامی لښکر غازیانو دَ ده لاش په قبر کښے امانت کینوده او بیا چه کله جنګ ختم شه او څه لږه ډیره تلاری شوه. نو دیا رلس میاشتے پس ئے دَ شپے په تیاره کښے دَ بنوں علاقے ته وړے او هلته دفن کړے وو. او اوس ئے هدیرے ته لویُ او واړه شپه او ورځ روانیږی په هغه غزاګانو کښے چه دَ وزیرو ملا صاحب، مولانا حمزالله صاحب

وزیراو کاکاصاحب په مشرئ کښې شوے دے په دغې کښې چه دَ انګریزانو
کوم فوځ تباه شوے وو. دَ دغې اندازه لګول ګران کار دے. یواځې
دَ سنه ۱۸۸۱ء او ۱۸۸۲ء په دے غزا کښې دَ وزیرو ملا صاحب په مشرئ
کښې چه کوم جنګونه شوی وو. په دغې کښې دَ غازیانو دَطرف نه دوه
سوه اوه نوی (۲۹۷) غازیان شهیدان شوی وو. او دَ انګریزانو
دَ فوځ نه ئے یوولس سوه نهه اتیا (۱۱۸۹) فوځیان او شپږ ویشت
(۲۶) تنه انګریزان افسران وژلی وو. دَ دغې نه علاوه په دے غزاګانو
کښې دَ فرنګیانو ظالمانو دلاس نه دَ پښتنو (۹۹۳) نهه سوه دری
نوي ودان او آباد کورونه نړیدلی او وران شوی وو.

# غازی مولانا حمزالله وزیر

دَ مولانا "ګلاب دین صاحب" د شهید کیدلو نه روستو په وزیرستان
کښې چه کوم مشر روحانی پیشوا او عالم پاتے شه دَ هغه نوم مولانا
حمزالله خان وو. چه دَ وانا سره دَ شپږ میله په فاصله دَ شکی
نومے کلی او سید ونکے وو. او په تمام " احمدزی وزیر وو" عالم
سړے وو. دَ کرامت خاوند وو. او لوئ مجاهد هم وو. دَ هندوستان
سفر ئے کړے وو. په لکهنو کښې دَ مولانا عبدالحئ لکهنوی فرنګی محلی
سره پاتے شوے وو. دَ افغانستان عالمانو به ئے ډیر قدر کولو.
ډیر خوشخط هم وو او لویه خبره دا چه دَ مشهور مجاهد ملا پیونده
تربیت کونکے دے وو. ملا پیونده دَ ده نه دینی علومونه په درس
لوستلی وو. او دَ دے خپل نامور استاذ نه ملګرتیا کښې ئے دجهاد
عملی تربیت حاصل کړے وو. دَ مولانا ګلاب دین نه روستو دَ غازیانو
رهنمائی ده کوله. مولانا ارګړا و کاکاصاحب ئے ملګری وو.

# مولانا اتکړ یا مولانا ارکړ

حضرت شیخ المشائخ "مولانا اتکړ" چې په "مولانا ارکړ" نامه هم مشهور وو په قام ذومشت "سید وو- د تیراه (ارکزائی) او سید ونځې وو- د سوات د بابا جي صاحب" مشر خلیفه او ماذون وو- اصلي نوم یې معلوم نه دے- زیارت یې اوس د دوړ قبیلې په علاقه (شمالي وزیرستان) کښې د توچي په سیمه کښې په لنډ کلي کښې دے مولانا ارکړ په ۱۸۵۲ء کښې د بنوں او د تل په مینځ لاره کښې د فرنګیانو په لښکر یو عمل او کړو- او انګریزي فوځونو ته یې د بېر زیات تاوان اورسولو- او په مقابله کښې یو څو ننګیالي غازیان هم شهیدان شول-

د دغې نه روستو د مولانا ارکړ په مشرۍ کښې په کال ۱۸۸۹ء کښې د وزیرو او مسید و او دوړو درے وارو قبیلو تخمینًا دوه سوه کسان غازیان را ټول شول او د تل نه په اته میله فاصله باندے په سپرې نومے کلي کښې د انګریزانو کوم فوځي کیمپ وو- په هغې باندې یې حمله او کړه- په کیمپ ورننوتل لاس په لاس جنګ اوشه- او د انګریزي فوځ اوه شپېته (۶۷) فوځیان یې قتل کړل-

په سپرې باندے انګریزانو په ۱۸۵۲ء کښې قبضه کړے وه- او د ۱۸۸۹ء نه مخکښې په تېرو شوو ۳۷ اوه دیرش کلونو کښې دا سې ورځ نه وه تېره شوے چه غازیانو پرے حملے نه وے کړے- مولانا ارکړ د وزیرستان په هغه نومیالو غازیانو کښې یو لوئې ننګیال غازي وو- چه ټول عمر یې په غزاګانو کښې تېر شوے او په اخر کښې د شهادت درجه موندلے ده-

# ګلستان شهید

د وزیرو ملا صاحب د شهادت نه روستو په ۱۸۹۲ء کښې چه د برطانیه

دَ ملکه وکټوریه دَ بادشاهۍ شپې اوُورځې وے. دَ پیرنګی لښکرے دَ جرنیل سرلاکهارټ په کمان کښې دَ توچي په سیمه ور اوختې. او دغه خاوره ئے اونیوله. دَ وزیرو مسوود و ننګیالو پښتنو دَ خپل خوږ وطن په ننګ میدان ته او دا نګل او داسے جنګونه ئے اوکړل. چه په تاریخ کښے ئے مثال نه شي پیدا کیدلے.

په دے جنګونو او جګړو کښے داخل وزیرو او مسوود و غازیانو داسے تاؤُ اخیستے وو. چه دَ مقابلے دَ امکان او نه امکان. او دَ لږ او ډیر یا زورتیا او کمزورتیا خیال ئے هم و په فکر کښے نه راتللو. او چه ایکی یو پښتون به دَ پیرنګی په لوئے لښکر را او وخت نو دا به ئے نه کتل چه زۀ یو کس یم بلکه په دشمن به ئے لاس پورے کاوه. چه دوستو به هرڅه پیښ شول یعنے هر یو غازی داسے دَ خپلو سرونو نه داښکلی دوچه دَ فیرنګی دَ فوځ دَ لوئ نه لوئ طاقت ورته هم وخه خیزنه ښکاره کیده. او داځکه چه دَ انګریزانو دَ بے دریغه ظلمونو دلاسه دَ وزیرستان پښتانه ډیر زیات درد یدلی وو. هره ورځ جنګ هره ورځ جنګ دَ انګریزانو دَ فوځونو دَ تباه کاری هم وخه سرنه وو. او هم دغه وجه وه چه دَ هر یو پښتون مثال لکه دَ زخمی زمری په شان وو.

په دغه شان حالاتو کښے غازي او ننګیالے ګلستان خان چه په نام دوړ وو. او دَ "بروخیلو" دکلی او سید وېکے وو. دَ ساخیل کلی سره نزدے په لاره کښے ئے دَ فیرنګیانو په یوه قافله حمله اوکړله. مسټر کیشنر نومے انګریز پولیټکل ایجنټ ئے دَ تورے په یو ګذار دوه ټوټے کړ. دَ فرنګی سره چه کوم ملګری فوځیان وو هغه دَ ګلستان خان غازی نه را تاوُ شول. شهید ئے کړ. دَ غازی ګلستان خان بهادری داوه چه په یواځے سر په رڼرا ورځ دَ فوځ په مینځ کښے روان پولیټکل افسر ته ئے ځان ور رسولے وو.

او دَ توره پہ یو گذارئ وژلے وو۔

# شیرعلی خان مسید

(پہ سنہ ۱۸۹۲ کښے دَ شکتوئ غزا۔ پہ توچي دَ انګریزانو قبضہ)

هرکلہ چہ انګریزانو پہ وادئ توچي قبضہ اوکړه۔ نو وزیرو او مسیدُ دَ چاد چاپیره نہ دَ انګریزانو پہ کیمپونو باندے چپاؤنہ او غدئ شروع کړلے۔ دَ غدئ او شبخون وهلو دَ پاره چہ کوم غازیان میدان تہ راوتلی وو۔ هغوئ دَ غزا دَ دے مهم دَ پاره دَ وزیرو او مسیدو دواړو قومونو دَ علاقو پہ منځ و مانہ کښے شکتوئ نومے مقام خپل مرکز ګرزولے وو۔ او دَ هغہ ځای نہ بہ ئے دَ انګریزانو پہ خواؤ شا کیمپونو حملے کوؤلے۔

پہ سنہ ۱۸۹۳ کښے پیرنګیانو دَ دغہ ځای دَ نیولو دَ پاره دکرنل ډوننګ نومے فرنګی پہ مشرئ کښے یو مضبوط فوځ دَ حملے دَ پاره اولیږه۔ پښتنو غازیانو هم دَ دے فوځ دَ مقابلے دَ پاره چہ څومره ئے وس کیدلے شہ خپل دار و مردکی تیار کړل۔ یو خوا دَ انګریزانو منظم فوځ۔ اعلیٰ وسلہ او توپ خانہ وه۔ او بلہ خواتہ دَ غازیانو کمہ او نیمګړے وسلہ وه۔ لیکن دَ ایمان جوش وړسره وو۔ چہ څہ وخت دواړه لښکرے مخامخ شولے۔ لاس پہ لاس او سینہ پہ سینہ جنګ اونښت۔ نو دا سے ځوانمردی او ښو دلے شوے چہ دَ دواړو خوانہ پہ یو بل آفرین او ویلے شہ۔ جنګ دا سے تود وو۔ چہ دَ قیامت علامہ وه۔ غازی شیرعلی خان چہ پہ قام شابي خیل مسعود وو پہ فقیر شیرعلی خان نامہ مشهور وو۔ هغہ ډوننګ فرنګی تہ ځان ورا ورساوه۔ او دَ توره پہ یو ګذارئ دوه ټوټے کړ۔ پسے خونړے جنګ اوشہ۔

اوپه هغه کښې غازي شیرعلي خان او د درسره (۲۵۷) تنه نور ننګیالي پښتانه وزیراو مسید غازیان هم شهیدان شول. اوپه مقابله کښې بل طرف ته دَ انګریزانو دَ فوځ نه (۱۳۳۵) فوځیان او (۹) تنه انګریزان فوځي افسران چه لوئ لوئ فوځي عهدیداران وو اووژلے شول. او دَ دغے علاقے (۲۳۶) کورونه دَ فرنګي دَ فوځونه وران اوبرباد شول. دَ فرنګي دا فوځي مهم ناکامیابه شه. شکست ئے اوخوړ. اودَ شکتوئ په قبضه کولو کښې کامیاب نه شه.

# دَواناغزا

مخکښې دا ذکرشوے دے. چه دَ وزیرستان ننګیالو او توریالو پښتنو غازیانو دَ انګریز دَ مقابلے دَ پاره باقاعده مرکزونه جوړکړي وو. او دَ هغه ځایونونه به ئے په انګریزي فوځونو یرغلونه کول. دَ انګریزانو او غازیانو ترمنځ دَ دشمنئ بنیاد کېښودلے شوے. اودَ لاس دَبرئ کارووـ نه انګریزانو نادراسته کوله اونه غازیانو دَ انګریزانو طریقه دا وه چه یوه لویه حمله به ئے اوکړه. نوبیا به ئے څه ورځے صبر اوکړلو. چه ځان به ئے برابرکړ. نوبیا به ئے لښکرکشي اوکړه. او دَ غازیانو طریقه داوه چه دخت بے وخته به ئے نه کتلو همیشه به ئے دَ فرنګي کیمپونو نه زړه ول حملے به ئے پرے کوُلے. په دغه وړو وړو حملو کښې به ئے دَ انګریزانو دَجاني نقصان نه علاوه دومره دارو مردکے او وسله هم دَ انګریزي فوځونو نه واخیستله چه بیا کله به انګریزانو لویه حمله کوُله. نو غازیانو به هم هغه دَ انګریزي فوځ نه اخیستے وسله دَ انګریزي فوځ برخلاف استعمالوله.

چنانچه هرکله پرنګي دَپښتنو غازیانو دَ ډیرو حملو او یرغالونونه

تنگ شه. نو په ۱۳۱۲ھ مطابق ۱۸۹۴ء کښې ئې په ۱۱ تاریخ د ربیع الثانی چه د کل (دوشنبه) ورځ وه. د اکتوبر د میاشتې ۱۳ تاریخ وو. د جنرل ټرنر په کمان کښې د انګریزانو فوځ د ډیره اسماعیل خان نه روان شه چه په وانا حمله اوکړی. حمله ئې اوکړه او د دغه اکتوبر د میاشتې په پنځویشتم ۲۵ ئې په وانا کښې کیمپ اولګا وه. د بیټنو، دوړو، وزیرو او مسیدو غازیان د جناب مولانا حمزالله خان وزیر، جناب کاکا صاحب وزیر، جناب ملا پیونده محسود او جناب قاضی حاجی محمد په مشرئ کښې د جهاد په شوق او مینه په ډیره خوشحالئ د غزا د پاره د پیرنګی مقابلې ته تیار شول. درې ۳۰۰ زره غازیان برابر شول. او سحر وختی د سحر د نمانځه د اکولو نه سمدستی دوستو د وانا په کیمپ باندې ورپریوتل. غازیان او د پیرنګی فوځونه ګډ وډ شول. سینه په سینه ورغلل. پښتنو شاه ځلمو په دوه لاسی تورې اوچلولې. دشمن ئې په چړو او پیش قبضو اوسیخاوه. د دشمن د وینو ودو ندئ اوبهیدل او د وانا زمکه ئې پخپلو سرو وینو هم لاله زار کړه.

د مرګ او ژوبلې په لحاظ د "وانا غزا" یوه ډیره درنه او لویه غزا وه. په دې کښې څلور سوه یوا ویا (۴۷۱) مسلمانان شهیدان شوی وو. او بې شمیره زخمیان شوی هم وو. او د دشمن انګریز د فوځ نه یو زر او ه سوه دری شپیته فوځیان (۱۷۶۳) قتل شوی وو. او دریم شپیته پکښې فوځی افسران چه په تمام انګریزان وو هغه هم قتل شوی وو. او د جانی نقصان نه علاوه د انګریزانو بې شمیره فوجی سامان و سامان او روسد هم غازیانو له په لاس ورغلی وو.

# کاکا صاحب شهید رح

د وانا په دې غزا کښې چه کوم غازیان زخمی شوی وو. په دغه غازیانو کښې یو نامور غازی جناب کاکا صاحب رح اتمانزی وزیر هم وو. جناب

کاکا صاحب دَ وزیرستان دَ علاقے مشهور روحانی پیشوا وو. په تمام بانړه ولی خیل، اتمانزی، وزیر وو. ټول ژوندئے دَ انګریزانو په خلاف په غزاګانو کښے تیر شوے وو. دَ ملا ګلاب دین المعروف په وزیرو ملا صاحب، مولانا حمزا الله خان صاحب وزیر. ملګرے غازی وو.

دَ کوم ورځ نه چه دَ انګریزانو فوځونه دَ وانا په طرف راخوزیدلی وو. او غازیانو پرے باندے دَ ډیره اسماعیل خان او وانا ترمینځه کومے حملے کولے په هغے ټولو کښے جناب مولانا کاکا صاحب موجود وو. او بیاچه کله غازیانو په وانا کیمپ حمله کوله. دَ حملے ترورځے پورے اوه شپے او ورځے ئے بهر تیرے کړے وے. او دَ یرغل، غدی او غزا دَ منډه تړه او جنګ نه روستو چه په اتمه ورځ کورته راغے. نو ټول بدن ئے پرهر پرهر او سوړے سوړے وو. یو څو ورځے ژوندے پاتے شه. او بیا هم دَ غه زخمونو دَ لاسه په جمادی الاول ۱۳۱۲ھ مطابق ۱۸۹۴ء کښے شهید شه.

دَ کاکا صاحب قبر دَ بیرنګیانو په زمانے کښے پټ ساتلے شوے وو. چه هسے نه پیرنګیان خبر شی. دَ هغوئ قبر او سپړی او بے عزتی ئے اوکړی.

دَ کاکا صاحب شهید مزار مبارک دبنوں په علاقه کښے دَ توچی سیند په جنوبی (سویلی) غاړه په ورغز نومے ځای کښے دے. او دَ دغه علاقے نارینه ښزینه. واړه او لوئ ئے زیارت او سلام له راځی.

دَ دے لوئے غزانه روستو دَ مولانا حمزالله خان وزیر. مولانا قاضی حاجی محمد او ملا پیوند له په مشرئ کښے غازیانو خپل مرکز شکئ نومے کلے مقرر کړ. دلته دا یادول پکار دی. چه مولانا حمزالله خان دَ دغه شکئ کلی او سیدونکے وو. او دا کلے دَ وانا نه تقریبًا د شپږ میله په فاصله باندے دے یعنے دَ وانا کیمپ ته نزدے دے. مطلب دا چه دَ غازیانو

دا مرکز هم دَمولانا حمزاللہ خان وزیر په نګرانۍ او مشرۍ کښې هم دَ هغه
په کلي کښې جوړ شوے وو. او هم دَ هغه په مشرۍ کښې به دَ دے مرکز نه
غازیانو شپه او ورځ دَ انګریزانو په فوځي مرکزِ وانا حملے کوولے. بلکه دا
چه ملا پیونده دَ مولانا حمزاللہ خان شاګرد وو. او دَ دے چل نامور
غازی استاد په کمان کښې ئے غزا کانے کوولے.

# دَ مکین دریمه غزا

دَ پرنګیانو چه هرڅو مره عمو په دے ملک کښې تیر شوے دے ـ
هغوئ که تنګ او تروز به وو. نو هغه به دَ پښتنو دَ ګوریلا جنګ. یعنی
غیر منظم جنګ نه تنګ وو. ځکه چه دَ دے به وخت نه وو معلوم چه
غازیان به کله حمله کوی او دَ کوم طرف نه به ئے کوی. ځکښې مونږ دَ
سر جارج ینګ هزبنډ یو بیان نقل کړے دے هغه غریب هم دا
ژړا کړے ده. چه دَ غازیانو به هیڅ پته نه وه نه به ئے بنګالوو
نه به کښ وو. نه به کرپ وو. نه به په کندو کښې بنکا دیده. نه به
په غره کښې نه په آواره او نه په ژوره کښې. دَ انګریزانو مخبران او جاسوسان
به هم تر پینه خبر نه وو او ناسا په به غازیان را پیدا شول حیرانتیا
به دا وه چه چرته دَ آسمان نه را اوریدل او که دَ زمکے نه را اوتل.
او یو ناسا په به ئے دَ انګریزانو په فوځ یرغال او چپاؤ اوکړه
دا دَ یو انګریز فوځي افسر الفاظ او تأثرات دی چه په سنه ۱۸۶۰ کښې
ئے دَ وزیرستان دَ یو جنګ دَ حالات تولیکلو په ضمن کښې بیان کړی دی ـ
دَ بنیاغلی محمد ګلاب ننګرهاری خبره دَ انګریزانو دَ ماتے او ناکامۍ
اصلی سبب او علت هم دغه غیر منظم (ګوریلا) جنګونه وو.
هر کله چه دَ مولانا حمزاللہ خان په مشرۍ کښې هم د هغه کلے شکئ

دَ غازیانو مرکز شه او دَ وانا دَ مشهور میدانی جنګ او غزا نه دوستو
غازیان به دَ خپل مرکز شګئ نه راتلل او دَ پیرنګی په لښکرو شپه او ورځ
یوه کړے وه. که سحر به وو. که غرمه، که شپه به وه که ورځ وخت
بے وخته ئے نه کتل او دَ پیرنګی په لښکر به ئے خپل ایمان تازه کولو.
لوَ دے بلا نه دَ ځان خلاصولو دَ پاره تیارے ئے اوکړے چه دَ مسید
وزیری قوم علاقه ټوله قبضه کړی. او په دغه خیال په مکین باندے
په درےیم ځل حملے کولو ته تیار شول.

دا ځل دَ انګریزانو فوځ دَ جرنیل ویلیم لوکهارټ په کمان کښے په درے
مختلفو محاذونو باندے دَ حملے دَ پاره روان شه.

(الف) دَ وانا دَ کیمپ نه دَ "تیارزی" او "شراونګی" په لار باندے "کانی ګورم" ته
(ب) دَ جنډوله کیمپ نه دَ "ساره راغه" او "مراوبی" په لار باندے "مکین" ته
(ج) او دَ بنوں کیمپ نه دَ "شکتوئ" او "خیسور" په لار باندے "رزمک" ته

په ۱۲ تاریخ دَ دسمبر ۱۸۹۴ء روان شه دَ فوځ تعداد دے زیات وو
جنګی ساز و سامان ئے دَ پخوانو فوځی حملو نه ډیر وو. په یو وخت په
درے مختلفو لارو حمله وه. دَ غازیانو تعداد دومره نه وو. چه په
یو وخت ئے په درے مختلفو لارو حمله کونکی فوځونو کامیابه مقابله
کړے وے. نتیجه ئے دا شوه چه انګریزی فوځونه څه په ورانده
لاړل. په لاره کښے چه څومره کورونه او کلی ئے ته ورتلل
هغه ئے ورانول او په اور ئے سیزل. او په دے شان درے واړه
فوځونه خپل منزل ته یعنے کانی ګورم، مکین او رزمک ته اورسیدل.
په مخ لاره کښے کوم فوځ چه دَ جنډوله کیمپ نه په حمله مکین ته روان
وو. دغه فوځ دَ مراوبی په کلی کښے دَ جناب مولانا محی الدین قادری
المعروف په ملا پیوند کور سیزلے وو. دَ انګریزانو فوځونه په

رسیدلو خو دغه درے وارہ مرکزی مقامونو ته اورسیدہ - لیکن
دَغازیانو دَ غیر منظم جنگ دارو۔ غدئ او یرغالو نو ته دومرہ تنگ
شه چه آخر په ماتے بیرته راغے۔

په دے دریمه غټ او خونړی جنګ کښے دَ مسلمانانو دَ طرف نه شلور
سوه پنځه دیرش (۴۳۵) غازیان شهیدان شول۔ او دَ انګریزانو دَ طرف
نه یونزر او ۸ اتیا (۱۰۸۷) کسان فوځیان او شپاړس ۱۶ تنه فرنګیان افسران
قتل شوی وو۔ او دَ دغے نه علاوہ دَ انګریزی فوځ نه چه کوم مالِ غنیمت
وسله جنګی سامان او درسد او خوراک څیزونه غازیانو ته په لاس
ورغلی وو۔ دَ هغے دَ حد او حساب انداز ه لګول ګران دی۔

# دَ میزرغزا

انګریزانو دَ کال ۱۸۹۴ء نه روستو په کال ۱۸۹۵ء کښے په وزیرستان
چترال۔ مالاکنډ باندے جنګونه اوکړل۔ په ۱۸۹۶ء کښے په باجوړ
جنګ وروړے وو۔ او په کال ۱۸۹۷ء کښے فرنګیانو دَ قبائلی علاقو
دَ غازیانو په خلاف په لویه پیمانه فوځ کشی کړے وه۔

هم دا یو کال ۱۸۹۷ء وو۔ چه په دے کال ئے په مالاکنډ او باجوړ
باندے په مهمندو باندے۔ په بونیر باندے۔ په آفریدو باندے
په ورکزو باندے۔ په غلځی قبیله او په وزیرستان باندے په اته
مختلفو علاقو او قبایلو باندے وړاندے روستو جنګونه وروړی
او حملے کړے وے۔ دلته مونږ دَ کال ۱۸۹۷ء دَ هغه جنګ ذکر کول
غواړو چه انګریزانو دَ مده خیلو، وزیرو په علاقه ورړے وو۔
او مونږ هلته دَ "میزرغزا" په نامه یاده وو۔

دا واقعه داسے پیښه شوے وه چه هر کله په ۱۸۹۳ء کښے

انګریزانو دَ شمالي وزیرستان اکثر حصه قبضه کړه او دَ داوړ قبیلې دَ
میران شاه نومې کلي سره نزدې ئې دَ "میران شاه کیمپ" په نوم فوځي
قلعه جوړه کړه او بیا دَ میرانشاه نه وړاندې دَ وزیرستان دَ علاقې
په بریدې دَ "دته خیل" قلا هم جوړه کړه۔ نو انګریزانو خپل مخبر چه په
نام هندو وو۔ واندره نوم ئې وو۔ په نبرني نومې کلي کښې دَ ملک ساد
خان سره دیره کړ۔ چه فرنګیان دَ غازیانو دَ حال نه هم خبر ساتي۔
جاسوسي هم کوي۔ او غازیان چه په فوځي کیمپونو دحملې په وخت
کښې کوم لوټ تالان اوکړي چه دَ لوټ او تالان دمال پته هم
لګوي۔ بنکاره خبره ده چه دَ انګریزانو دَ دغه هندو جاسوس استوګنه
غازیانو برداشت کوولې نه شوه۔ یو ملا خیل وزیر چه وارث خان
نوم ئې وو۔ داپوره ته شه او دغه هندو جاسوس ئې مړ کړ۔ پرنګیانو
خوبهانه غوښتله دَ هندو مخبر مرګ ئې بهانه کړ۔ دَ وزیرو۔ مسیدو
او داوړو نه ئې دولس سوه روپۍ کلالۍ ده جرمانه او غوښتله۔
غازیانو اونه منله۔ او په نتیجه کښې ئې په ورځ دَ هفته ۱۸ ر دَ محرم
۱۳۱۵ ھ مطابق ۲۰ رجون ۱۸۹۷ء دَ لفټننټ کرنل باټي په کمان کښې
دَ میزړ په زمکه لښکر ورواچاوه۔ دَ انګریزانو فوځ دَ دته خیلو
نه پټ په پټه روان شه او د میزړ قبضه کولو تدبیرې اوکړ
بل خواته اتفاق داوو۔ چه دَ میزړ دَ علاقې مشران مشران
سری لکه پایل خان۔ سیل خان۔ خدری خان۔ بته خان۔ ابراهیم
خان۔ سادی خان۔ تول دَ کورونو نه بهر وو۔ صلاح ئې اوکړه۔
یو لو وار په وار دَ پرنګیانو لښکر ته ورګډ شول۔ دَ سوال
جواب اوخبرو اترو په بهانه ئې خانونه دَ انګریزي فوځ مشر
افسر ته ورا ورسول۔ ناسا په حمله ئې پرې او کړه په توره ئې

او واهه. او دَ اولنی کنډ ارسره بیا دَ انګریز افسر تنه یو ځای او سره بل ځای پروت وو.
بل خواته په کلی او اولس کښې دَ فرنګی دَ فوځ دَ حملې څخه خوره شوه. دَ خواوشا
نارینه او ښځینه و سلې ته لاس کړ. چا توره چا ټوپک چا چاړه. چا کوتک
چه څه په لاس ورتلل هغه ئې راواخیستل. دَ انګریزانو په فوځ لکه دَ زمرو
په شان ورخوشے شول غیږ په غیږ او لاس په لاس هغه تاریخی جنګ اوشه
چه دَ فرنګی دَ نوځ نه (۷۵۹) نوځیان او اووه کسه پرنګیان افسران او وژلے
شول دَ جنګ او رسد سامان ئې غازیانو تالا کړ. او دَ مسلمانانو له
طرفه نه پکښې (۵۳) ننګیالی نارینه او ښځینه غازیان او غازیانے
شهیدان شول.

## دَ میزر دویمه غزا

دَ میزر په جنګ کښې چه انګریزانو ډیر بد رنګه شکست بیا موندہ.
نو دَ هغې دَ بدل اخیستلو دَ پاره ئې یو ځل بیا په میزر حمله اوکړله. بیا
سخته جګړه اوشوه. د دواړو خوانه مړی اوشول. لیکن خدای پاک مسلمانانو
له بر ے ورکړ. او دَ انګریزانو فوځونه په ماتے واپس شول.

## دَ میزر دریمه غزا

هرکله چه انګریزانو دَ میزر په مقام دوه ځله شکست اوخوړ. نو خپل
لښکرے دومره مضبوط کړ. چه څومره ئې وس رسیده. او دَ مده خیلو
وزیرو په علاقه باندے ئې په لویه پیمانه حمله اوکړله. ډیر زیات وړانے
ئې اوکړ. دَ اولس ئې ډیر زیات تاوانونه اوکړل. په دے ځل جنګ کښې
په شمار (۷۸۹) کورونه ئې وران کړل او په اور ئے اوسیزل.
بل خواته دَ میزر دَ علاقے مده خیل وزیر. په ونیو دواړو جنګونو

زیلې وو۔ دا دومرد کے او وسله ورسره لمه وه۔ بله دا چه ناساپي حمله وه۔ دَ وزیرو مسید و نور قبائل ئے امداد له نه وو رارسیدلی۔ په دے وجه دَ غازیانو له طرفه مرګی هم ډیر او شول (۳۷۵) غازیان شهیدان شول. مګر سره دَ دغے دَ انګریزانو (۸۵۳) فوځیان او پنځه تنه انګریزان افسران ئے قتل کړل۔ په دے جنګ کښې غازی ملک ساد خان دَ انګریزانو په خلاف ډیره په بهادرئ جنګیدلے وو۔ په دغه جرم انګریزانو ډیره موده بند یوان ساتلے وو۔

## اولنے دور ختم شه

دَ ۱۸۹۶ سنه نه چه دَ انګریزانو په خلاف دَ غزاګانو کوم دور شروع شوے وو۔ تر ۱۹۰۰ سنه پورے دغے ته مونږ اولنے دور وایو۔ په دے منځنی ۴ ۵ کالو کښې چه کومے غزاګانے شوے دی دَ هغے بیان مونږ دَ ۱۸۹۷ سنه دَ میزر غزا په بیان باندے ختم کړ۔ په دے منځ کښې نورے هم ډیرے غزاګانے شوے دی چه دَ هغے پوره پوره بیان ځمونږ په دے ورکوټی کتاب کښې ځای کیدے نه شی۔

## دَ غزاګانو دویم دور

دَ غزاګانو دَ دویم دور ابتداء دَ ۱۹۰۰ سنه نه کیږی۔ دَ شلمے صدئ اولنئ جګړه او "اولنئ غزا" هغه وه۔ چه کله دَ انګریزانو فوځونو دَ جنرل ډینګ په کمان کښې دَ وزیرو مسید و په علاقه دَ جنوبي وزیرستان په سیمه کښې حمله کړے وه۔ دا حمله په ۱۹۰۰ سنه کښې شوے وه۔ او دَ دواړو طرفه نه بے حده جانی او مالی نقصانونه پکښے شوی وو۔

دَ دے نه روستو په ۱۹۰۱/۱۹۰۲ سنه کښې دویمه لویه غزا هغه وه چه دَ انګریزانو

فوځونو دَ میجر ایجرټن په کمان کښې دَ درویش خیلو وزیرو په علاقه حمله کړے وه.
او په دے کښې هم دَ دواړه طرفه ډیر زیات جانی او مالی نقصانونه شوی وو.
مخکښې دا ذکر شوے دے چه دَ مولانا ګلاب دین المعروف په وزیرو ملا صاحب
دَ شهادت ۱۸۸۱ء نه روستو دَ وزیرستان په سیمه دَ غزاګانو رهنمائی
دوه مشهورو روحانی پیشوایانو کوؤ له چه دَ یو نوم مولانا محمد الله خان وزیر
او دَ بل نوم مولانا محی الدین قادری المعروف " ملا پیونده "، وو۔

# ملا پیونده

دَ مولانا پیونده اصلی نوم محی الدین وو. په قام شابی خیل وزیر وو. دَ
مروبی کلی اوسیدونکے وو. په دسمبر ۱۸۹۴ء کښې چه دَ انګریزانو فوځونو دَ
جنرل ویلیم لوکهارټ په کمان کښې دَ جنډوله کیمپ نه کومه حمله شروع
کړے وه په هغه کښې دَ ملا پیونده کلے مراوبی په خاص طور سره ویران کړے
شوے او سیزلے شوے وو۔

مولانا محی الدین په قادریه طریقه کښې دَ کربوغه شریف دَ باباجی محمد انور
صاحب مرید او ماذون وو. او دَ کربوغے ملا صاحب دَ سوات دَ باباجی
صاحب مرید وو. څرنګه چه دَ سوات باباجی صاحب مولانا شیخ حافظ اخوند
عبد الغفور چمکله په ۱۸۶۳ء کښې دَ علاقه چمله او بونیر دَ سرکاوئ په غزا
کښې دَ جنرل سرنیول چیمبرلین په کمان کښې جنګیدونکو انګریزی فوځونو مقابله
کړے وه. دغه شان دَ هغه کثیر بے شماره مریدان هم دَ جهاد دَ میدان
توریالی غازیان وو. او دَ قبایلی علاقو په بیله بیله سیمه کښې دَ انګریزانو
په خلاف ئے جهاد وننه کول. لکه دَ باجوړ په علاقه کښې دَ تنبئی جان صاحب
دَ بابړے ملا صاحب دَ مهمند و په علاقه کښې سید محمد خلیل المعروف
په ملا خلیل. دَ غزنئی ملا صاحب. دَ هډے ملا صاحب. او وریبے دَ

هغه نامور مرید دَ ترنګزو حاجی صاحبؒ. دَ تیراه په علاقه کښې دَ ماموزی دَ علاقې مولانا ولی الله صاحب (چه دَ کربوغې صاحب مرید وو) او دَ وزیرستان په علاقه کښې باری فقیر. او مولانا ګلاب دین. مولانا حمزالله خان چه دا دریمې واړه دَ سوات دَ باباجی صاحب مریدان وو. او مولانا محی الدین المعروف په ملا پیوندہ چه دَ مولانا حمزالله خان شاګرد وو. او دَ کربوغې دَ باباجی صاحب مرید وو. دَ قادریه طریقې دا ټول نامور بزرګان او روحانی پیشوایان دېر لوئ نامور غازیان تېر شوی دی. او په روستنی دور کښې دَ شېلې صدئ کوم غزاګانې چه په ټولو قبائلی علاقو کښې په خصوصیت سره دَ اولنی جنګ عظیم سنه ۱۹۱۴ نه روستو شویدی. په هغې کښې دَ سوات صاحب دَ مریدانو په خاندان کښې دوه مشهور بزرګان په کلکه دَ جهاد په میدان کښې ولاړ وو.

(الف) یو دَ باجوړ. مهمند او خیبر ایجنسو او قبائلی علاقو په محاذ حضرت حاجی صاحب سیّد فضل واحد المعروف په حاجی صاحب ترنګزائی.

(ب) او دویم دَ کرم ایجنسئ او شمالی او جنوبی وزیرستان په علاقو کښې حضرت مولانا محی الدین المعروف پیوندہ ملا صاحب.

لکه چه مخکښې ورته اشاره شوې ده. دَ جهاد په میدان کښې دَ ملا پیوندہ تربیت مولانا حمزالله خان وزیر کړې وو. ترڅو پورې چه دا نامور استاذ ئې ژوندے وو. دَ هغه په ملګرتیا کښې ئې جهاد و نه کړو اوچه کله هغه شهید شه. نو بیا دَ وزیرستان په محاذ دَ انګریزانو مقابله ئې په یواځې سر کوله. او په دے دویم دور کښې دَ جنوبی وزیرستان اکثر غزاګانې هم دَ دوئ په مشرئ او رهنمائی کښې شوی دی. او انګریزانو که هر څو مره کوششونه اوکړل پیوندہ ملا صاحب له ئې شکست ورنه کړے شه. دَ پیوندہ ملا صاحب دَ جها

کارنامے دومره زیاتے او دومره شاندارے دی. چه هغه ځان له روغ باب دے.

# ملا حاجی محمد (رح)

دَ وزیرستان دَ غزاګانو په دویم دور کښے چه دَ سنه ۱۹۰۱ء نه شروع شوے وو. دَ مولانا حمزالله خان په کلی شکئ او قام احمدزی وزیر کښے یو بل نومیالے غازی ملا حاجی محمد صاحب تیر شوے دے. دَ پلار نوم ئے شاه مال خان وو. په قام باندے شوریاکی احمدزی وزیر وو. او دَ مولانا حمزالله خان دَ شهادت نه روستو دَ ملا پیونده ملک ملګرے وو. دَ غازی ملا حاجی محمد دَ ۳ رونړه سلام خان. ګل سلام خان. محمد سلام خان دَ بنوں په غزا کښے شهیدان شوی وو. او بخپله دا نومیالی غازی دَ ډیر عمر جهاد ونو کولو نه روستو په سنه ۱۳۴۵ھ مطابق سنه ۱۹۲۶ء کښے وفات شوے وو.

# دَ کال سنه ۱۹۱۸ء ۱۹۱۹ غزاګانے

دَ دنیا دَ اولنی عظیم جنګ په آخر کښے په هندوستان کښے دَ انګریزانو طاقت کمزورے شوے وو. دَ هندوستان سیاسی تحریکونو دَ آزادئ مطالبه نوره هم سخته کړے وه. او په ملک کښے ځای په ځای شورشونه وو. بل خوا ته دَ ترکیه یو فوځی وفد افغانستان ته راغلے وو. او په افغانستان کښے ئے دَ غازیانو ځلمو یوه داسے ډله پیدا کړے وه چه هغوی دَ انګریزانو په خلاف قدم پورته کولو ته تیار شوی وو. بل خوا ته دَ تحریک ریشمی رومال دَ لوئ مشر شیخ الهند محمود الحسن یو لوئ ملګرے مولانا سیف الرحمان الکوزے. او دکربوغے ملا صاحب او دَ هډے ملا صاحب یو نامور مرید مولانا محمد اسرائیل (شهید) ګیلانی کابل ته رسیدلی

وو۔ اوخلق ئے غزاته پورته کولو۔ په دغه شان حالاتو کښے چه هر کله دَ انګریزانو په خلاف په ټولو قبائیلی علاقو کښے دَ جهاد عام اعلان اوشه۔ او په یو وخت کښے دَ صوبه سرحد په شپږ سوه میله اوږده سرحد باندے قبائیلی غازیانو حملے شروع کړلے۔ نو دَ وزیرستان قبائیلو د دوړو۔ بیټنو۔ وزیرو۔ مسعودو۔ شیرانو وغیره هم په انګریزانو حملے شروع کړلے۔ په شمالی او جنوبی وزیرستان دواړو علاقو کښے چه دَ انګریزانو هر څومره کیمپونه او فوجی قلا ګانے وے په هغے وراوختل غزا ګانے ئے پرے اوکړلے۔ او انګریزی فوځونه ئے تباه او برباد کړل۔

په دے سلسله کښے چه غازیانو په کومو انګریزی کیمپونو حملے کړے وے۔ او هغه ئے په جنګ نیولے وے۔ دلته لاندے دَ هغه قلاګانو صرف نوم نه لیکو۔ او بیا وروسته په اختصار سره دَ یو څو قلاګانو او فوجی کیمپونو دَ غزاګانو حالات لیکو۔ غازیانو چه په دے کال ۱۹۱۸/۱۹۱۹ کښے دَ فرنګیانو په کومو قلاګانو حمله کړے وه۔ او په یو میاشت کښے ئے دَ انګریزانو په شمار (۸۰) قلاګانے سوے دی۔ په هغے کښے دَ یو څو مشهورو قلاګانو نوم ونه دا دی:۔

(۱) سپین وام (۲) کجوری (۳) بویه (۴) توت نرئ (۵) شپانه ایساره (۶) شوه (۷) ایشا (۸) دته خیل (۹) امات خیل (۱۰) تل (۱۱) توچی (۱۲) زیرکی کمر (۱۳) شینکی کیمپ (۱۴) وانا (۱۵) سورکاوی (۱۶) تنائی (۱۷) مجوره (۱۸) سپین کچ (۱۹) تورمانډ (۲۰) مغل کوټ (۲۱) ګلوکچ (۲۲) اپوزی (۲۳) دزکئ۔ (۲۴) میړه (۲۵) مرتضی۔ (۲۶) تویٔ خوله۔

## دَ مغل کوټ غزا

دا واقعه داسے پیښه شوے وه۔ چه غازیانو دَ وانا په فوجی چونړئ

دومره سخت حملے شروع کړے وے ـ چه په فرنګیانو ئے شپه اوورځ یوه کړے وه ـ او هم د ځګړے په تود والی کښے سورولے نه راته ـ د هر لورې او هرے یوے لارے نه پرے سخته راغله ـ د ځان د خلاصی بل څه علاج نه و رتللو شپه په شپه د وانا د قلعه نه اووتل چه په تیښته د مغل کوټ قلا ته ځان اورسوو ـ بل خوا ته غازیان هم په دے پوهه وو ـ چه دښمن به په تیښته ځان او باسی ـ هغوی ئے درپسے اوکړه ـ منزه ئے ورپسے او واهه ـ او د مغل کوټ نه ئے ګیره واچوله ـ قلا بند ئے کړ.

د پرنګیانو کوم لښکر چه په تیښته او ماتے د وانا نه مغل کوټ ته راتښتیدلے او د لته قلا بند شوے وو ـ درے ورځے شپے په مغل کوټ کښے قلا بند پاتے شه ـ په څلورمه شپه د مغل کوټ نه هم د تښتیدلو بند بنادے اوکړله ـ د قلا دروازه ورته غازیانو نیولے وه ـ انګریزی فوځ دومره بدے ورځے راغیستے وو ـ چه شاطرف ته د قلا دیوال ئے سورے کړ ـ او په هغے اووتل ـ

کوم غازیانو چه د "مغل کوټ" قلا بندی کړے وه ـ هغوی پرے پوهه شوی وو ـ چه انګریزی فوځ به خامخا تښتی ـ لارے کودنے ئے ورته نیولے وے ـ چه د کوټ نه د انګریزانو لښکر رابهر شه ـ غازیانو پرے شروع اوکړله ـ سخته جګړه او شوله ـ د پرنګی د فوځ (۸۹) فوځیان سپاهیان او دیادرلس کسان انګریزان افسران پکښے قتل شول ـ په دے جنګ کښے د انګریزی فوځ یو لوئی افسر چه د خان بهادر محمد نواز خان پولیټیکل ایجنټ پلار وو ـ محمد یار خان نوم ئے وو ـ هغه هم د غازیانو د لاسه قتل شوے وو ـ دا دومره سخته جګړه وه چه په دے کښے د انګریزی فوځ ټول فوځی افسران قتل شوی وو ـ یو هم نه وو بچ شوے.

په غیر دَ یو انګریز فوځي افسر نه چه کرنل ډالن نوم ئے وو - هغه په تیښته خپل سر قدرته بچ کړے وو - او دَ اپوزي کیمپ ته ژوندے رسید لے وو.

# دَ ټانک غزا

په مغل کوټ چه دَ پرنګي فوځ تباه کړے شه - نو غازیان په ټانک ور پریوتل او دَ ټانک په ځمکه دَ منځئ په فوځي کیمپ ئے حمله اوکړله.

په منزئ کیمپ کښے چه کوم وزیر او مسید خاصه داران وو - هغوئ دَ غازیانو مدګر تیا اوکړله - په نیمه شپه کښے ئے دَ قلا دروازه غازیانو ته خلاصه کړله - غازیان په قلا ورغلل په دروازه کښے چه کوم سکهان اوګورکها پهره داران وو - هغه ئے اووژل - او په چونړئ ورننوتل. په دے جګړه کښے دَ پیرنګي دَ فوځ (۵۸۶) فوځیان او (۷) تنه فوځي افسران اووژلے شول.

کومو وزیرو او مسیدو خاصه دارانو چه په دے غزا کښے دَ غازیانو سره مرسته او امداد کړے وو - په هغوئ کښے دَ سائید خان زلي خیل. احمدزي وزیر نوم دَ یاد ولو دے. چه دَ ده په مرانه او همت غازیان په ډیره اسانه فوځي کیمپ ته ورننوتلي وو.

# دَ اپوزي غزا

مخکښے دا ذکر اوشه - چه په مغل کوټ کښے ټول انګریزي فوځي افسران اووژلے شول - نو په هغوئ کښے یو فوځي مشر افسر کرنل ډالن په تیښته ژوندے دا اپوزي کیمپ ته په رسیدلو کښے کامیاب شوے وو - بل خوا ته هر کله چه غازیانو په مغل کوټ او وروستو په منزئ کښے دَ پرنګي فوځ او فوځي کیمپونه اووهل - نو دَ احمدزو وزیرو شاه خلمي ځوانان را ټول

شول۔ لښکرے ساز کړ۔ او په اپوزی بازار او د اپوزی په انګریزی قلاګے دَ پیرنګی په فوځ حمله اوکړله۔ خونړے جنګ او شه۔ په نتیجه کښے دَ فرنګی دفوځ نه (۴۲۵) سپاهیان او (۵) انګریزی فوځی افسران قتل شول او دَ مخکینو دوارو غزاګانو نه چه په مغل کوټ او منزئ کښے شوے وے۔ دَ اپوزی په غزا کښے ډیر زیات مال غنیمت وسله او نور سامان غازیانو له په لاس ورغے۔ او دا قلعه هم او وهلے شوله۔

په دے پورتنو درے واړه غزاګانو کښے دَ مسلمانانو دَ لښکر فقط (۱۱۳) غازیان شهیدان شوی وو۔ او دَ دوئ په مقابله کښے په دے درے واړه غزاګانو کښے دَ فرنګی دَ فوځ دمړو مجموعی تعداد (۱۷۶۲) وو۔

# دَ ټوچی غزا

دَ سنه ۱۹۱۹ء دَ غزاګانو په سلسله کښے یو اهمه واقعه چه ذکر کول ئے ضروری دی۔ هغه دا ده چه هر کله په دے کال انګریزانو په وزیرستان باندے په جنوبی وزیرستان او شمالی وزیرستان دواړه حصو باندے دا سے یو ورځ جوړه کړه چه هغه دَ چا خبره هسے خوله ئے اولګوله۔ او دلے معلومیدله چه انګریزان دا غواړی چه په هر قیمت چه کیږی په وزیرستان کښے هیڅ یو مسلمان پښتون غازی ژوندے پاتے نه شی۔ خو بز دَ دے خبرے په تائید کښے هغه نقشه دے او کتلے شی کومه چه مونږه دَ دے باب په اول سر کښے درج کړے ده۔ چه یو اځے په سنه ۱۹۱۹ء کښے انګریزانو په وزیرستان باندے (۶۱۱) حملے کړے وے۔

انګریزانو چه په وزیرستان باندے دومره تباهی را وستلے وه۔ دا په حقیقت کښے دَ ټول وزیر، مسید او دَ اوړ قوم په خلاف مهم وو۔ او قدرتی طور هر یو وزیرستانے پښتون پوهیده چه هغه هر څوک چه وو۔ او هر چرته چه وو

هغه له دَ تمام په ننګ راپورته کیدل پکار وو۔ او دَ انګریزانو په خلاف دَ جنګ میدان ته وتل پکار وو۔ چنانچه دَ دے وجوهاتو له مخه دَ شمالی او جنوبی وزیرستان په ملیشیا او سکاوټس کښے چه کوم وزیرستانی زلمیان نوکران وو۔ یا افسران او عهدیداران وو۔ هغوئ سره دَ خپلو ملګرو او ټوپکو او وسلو دَ غازیانو ډلے ته واوختل۔ او په انګریزانو ئے حملے شروع کړلے۔ دَ دے نمونے په ننګیالو زلمو کښے دَ غازی پت خان مداخیل وزیر چه په ملیشیا کښے صوبیدار وو۔ او دَ غازی ترین خان توریخیل اتمانزی وزیر چه په ملیشیا کښے جمعدار وو۔ دَ دوئ نمونه دَ یادولو دی چه په ۱۹۱۹ء کښے سره دَ خپلو ملګرو او سرکاری وسلے دَ انګریزانو دَ فوځی کیمپو نه وتلی وو۔ دَ غازیانو ملګری شوی وو۔ او دَ ۱۹۱۹ء نه روستو په نورو ټولو غزاګانو کښے دَ غازیانو ملګری وو۔

هرکله چه دَ مغل کوټ۔ تانک۔ ایوزی په دریے واره غزاګانو کښے غازیانو فتح حاصله کړه۔ نو دَ غازی ترین خان توریخیل اتمانزی وزیر په مشرئ کښے دَ توچی دَ علاقے دَ محمدخیل کلی خواته په پلسین نومے ځای کښے دَ پرنګی په فوځ او فوځی کیمپ باندے یرغل اوکړ۔ دے جګړے دومره زور واخیست چه غازیان او انګریزی فوځ سپاهیان دَ یو بل سره ګډ وډ شول۔ لاس په لاس او برچه په برچه جنګ وو۔ او حقه خبره دا ده چه دَ دواړه طرفه زلمو که هغه غازیان وو۔ که دَ پرنګی فوځیان ښه په زړه ئے جنګ اوکړ۔ په دے خونړی جنګ کښے دَ فرنګی (۲۶۳) فوځیان او (۳) تنه انګریزان فوځی افسران قتل شول۔ او بل خواته (۱۳) مسلمانان شهیدان شول۔

دا جنګ په ۱۹۲۱ء کښے شوے وو۔ او دَ وزیرستان په جنګونو کښے اهم جنګ وو۔

# غازي ترين خان

لکه چه ذکراوشه غازي ترين خان په قام توري خيل اتمانزے وزير وو. دَ خوشحالي نوے کلي او سيدونکے وو. دا کلے په جنوبي وزيرستان کښے دَ مير علي په تحصيل کښے دے. په ژمي کښے به په مير علي کښے او په اوړي کښے به په شوال کښے اوسيده. هر کله چه انګريزانو دَ وزيرستان دَ تباه کولو مهم په لويه پيمانه شروع کړ. نو ترين هم دَ خپل کيمپ ميران شاه نه سره دَ خپلو ملګرو چه توپک. ميګزين او مشينونه ورسره وو. دَ غازيانو سره شامل شه. دَ ميران شاه په خوا وُشا غرونو مورچه شول. رو په رو دَ په لږه شيبه ... زيات تيد له څه غازيان او شه دَ فوځي کيمپونو نوکران ورته راغونډيدل. لښکر ترينه جوړ شه. او دَ جنوبي او دَ شمالي وزيرستان په دته خيل. ميران شاه. سپين وام. مغل کوټ. ټانک. اپوزي توچي وغيره ئے حملے شروع کړے.

ترين خان يو تعليم يافته ځلمے وو. په مليشيا کښے جمعدار وو. دَ ملګرو نه ئے کولو. او چه کله دَ غزا ميدان ته راووتلو نو دَ يو بهترين جرنيل په شان دَ انګريزانو مقابلے ئے په ښه فوځي صلاحيت او بهادرئ سره کولو. آخر دا چه په ۱۹۲۱ء کښے دَ توچي په علاقه کښے دَ محمد خيلو نه بره دَ سپينکي سلي سره دَ خپلو نورو غازيانو په ملګرتيا کښے داتوريالي شاه حملے شهيد شه. او دَ بهادرئ نوم ئے يادګار پاتے شه.

# دَ کسئ عمره جهاد

دَ پښتنو سره دَ پرنګي چه هر څومره جنګونه په دغه زمانه شوي وو. په هغے کښے به انګريزانو دَ فوځ راسن. وسله او نور جنګي سامان وغيره

دَ جنګ مورچو او فوځي کیمپونو ته په خرو. قچرو. غوایانو او بنانو په ذریعه رسولې
ترد غه وخته پورې پاخه سړکونه هم نه وو. او فوځي لارې هم دومره نه
وې. چنانچه په دغه شان حالاتو کښې یو ځل دَ احمدزو وزیرو یوې مضبوطې
ډلې دَ کسئ غره او اپوزی ترمنځه دَ پرنګی په یوه جوپه باندې غدی او غورځوله
په دې جوپه کښې غله. جامې او وسله باروه. دَ دې جوپې دَ حفاظت دپاره
کوم فوځ چه ورسره روان وو. هغوئ ډیر کوشش اوکړو لیکن سل خوا غازیانو
دا فیصله کړې وه. چه خامخا به دا جوپه تالا کوی. جنګ اوشه. لیکن
دَ انګریزانو فوځ دَ غازیانو دَ مقابلې په ځای دَ جوپې دَ سازو سامان دَ
حفاظت په فکر کښې وو. نتیجه ئې دا شوه چه ډیر زیات فوځیان ئې قتل شول.

په دې جنګ کښې (۳۸) فوځیان او (۱۷) انګریزان فوځي افسران قتل شول.
او دَ دغې نه علاوه دوه توپونه. (۳۴۱) توپک (۲۰۷) قچرې. او بنان او اوښان
او نور بې شمیره مال غنیمت غازیانو له په لاس ورغے. او دَ مسلمانانو دَ
طرف نه (۴) غازیان پښتانه پکښې شهیدان شول.

## دَ کاورپرج غزا

په سنه ۱۹۲۰ء کښې دَ احمدزی وزیر قبیلې ځوانانو دَ کاورپرج او مانزی ټزې
فوځي کیمپ ترمنځه دَ پرنګی په یوه فوځي دسته حمله اوکړه. او په هغې کښې
درې پرنګیان او څلور نور فوځي افسران قتل کړل. او چه څه ورسره وو.
هغه ئې ترینه واخیستل.

## دَ مانجي کړي غزا

مانجي کړه دَ ټانک په علاقه کښې دیو ځای نوم دے. په دے مقام په
سنه ۱۹۲۰ء کښې غزا شوې وه. دَ احمدزی وزیرو شاه علمو غازیانو په دے

ځای کښې دَ انګریزانو په یوه فوځي رساله باندې حمله اوکړله. سخته جګړه اوشوه اوچه دَجنګ دوره خوره شوه. نو معلومه شوه چه دَ فرنګی (۳۰۹) درې سوه نهه کسان فوځیان او (۲) دوه فوځي انګریزان افسران پکښې قتل شوی وو. او بې شماره توپک اونور جنګی سامان هم غازیانو له په لاس ورغلی وو. دَ مسلمانانو دَ طرف نه فقط او (۷) غازیان شهیدان شوی وو.

# دَ ژړې قلا غزا

دَ ژړې قلا دَ ګومل درے په غاړه پرته ده. او دَ پیرنګی فوځ پکښې پروت وو. دَ وزیرو او مسید وغازیانو په ۱۳۳۹ھ مطابق سنه ۱۹۲۰ء کښې په دے قلا حمله اوکړله. خونړے جنګ اونښت. تول ورځ جنګ وشه. (۱۳۱) انګریزی فوځیان او دوه انګریزان افسران پکښې اووژلے شول. بل خوا ته غازیانو ته پکښې دوه ځلویښت توپک مال غنیمت په لاس ورغے. او (۷) غازیان پکښې شهیدان شول.

دَ دے جنګ په مقابله دا سے وخت چه لا غازیان دَ ژړې قلا دَ جګړے نه راستانه شوی نه وو. چه دَ ژړې قلا انګریزی فوځ ملا تړا او امداد را اورسیده او دوباره کلک جنګ اونښت. لاس په لاس جنګ اوشه. او ننګیالو پښتنو غازیانو پکښې په دوه لاسی دا سے تورے اوچلولے. چه په دشمن کښې ئې پرے او لا رے او ښیکلے. چه جنګ سوړ شه. او دَ مړو ژوندو حساب اوشه. نو معلومه شوه چه دَ پیرنګی (۱۳۸) فوځیان. (۱۷) کسه انګریزان افسران پکښې وژلی شوی دی. دولس سیمے نمبلے (۲۵۰) توپک ئې غازیانو له په لاس ورغلی دی. او نور جنګی ساز و سامان رسد او خوراک وغیره چه ئې لوټ او تالا شوے وو. دَ هیڅ شمار نه وو. په دے دویمه جګړه کښې (۷) غازیان شهیدان شوی وو.

# دَدرابن غزا

درابن دَکوه سلیمان (دا غرپه کوه کالا اوکسئ غر په نومونوهم یادیږی) په لمنوکښې یو مشهور مرکزی مقام دے. په دے ځای کښې دَپیرنګی دَ فوځ مورچه اوکیمپ وو. په سنه ۱۳۲۰ھ مطابق سنه ۱۹۲۱ء کښې دَ وزیرو او مسیدو غازیانو دَ درابن په فوځی کیمپ حمله اوکړله. او تووله ورځ دَ دواړه غاړونه سخته جګړه اوشوله. په دے جنګ کښې دَپیرنګی فوځ درنے وسلے توپے او مشین ګنونه استعمال کړل. لیکن برے ئے اونه موندہ. (۲۳۲) فوځیان او درے تنه انګریزان افسران ئے اووژلے شول. او دَ دغے نه علاوه (۳۵) ټوپک ترینه غازیانوته په لاس ورغلل. او دَ مسلمانانو دَ طرف نه (۵۳) غازیان هم پکښې شهیدان شول.

# دَقلعه ووه غزا

قلعه ووه دَ وزیرستان او بلوچستان په سرحد باندے دَ پرنګیانو یو فوځی کیمپ وو. دَ وزیرو. مسیدو. بیټنو او شیرانی قبیلے غازیانو په سنه ۱۳۴۱ھ مطابق سنه ۱۹۲۲ء کښې دَ ووه په فوځی کیمپ حمله اوکړله. دامودچه تر ډیره حده پخه او کلکه وه. ډیر زیات زور ئے اوغوښت تووله ورځ جنګ اوشه. او دَ دواړه طرفه نه مړی پکښې اوشول. دَ انګریزانو له طرفه (۳۷۲) فوځیان او پنځه انګریزی فوځی مشران پکښې قتل شول. او علاوه دَ نورجنګی سازوسامان نه پنځه دیرش ۳۵ ټوپک ترینه غازیانوته په لاس ورغلل.

# دَ توه کئ غزا

په سنه ۱۳۴۳ھ مطابق سنه ۱۹۲۴ء کښې چه دَ جنوبی وزیرستان دَ تمتوکئ

اوتره کئ په مقام کومه تاریخی غزا شوې ده. دَ دې جنګ په پس منظر باندې پوهیدل ضروري معلومیږي.

واقعات داسې پیښ شول چه دَ پیرنګی یو ډیر لوئ او ددروند فوځ دَ توپونو او مشینونو سره جنډوله کیمپ ته دَ جنرل کرسویټ په کمان کښې را اورسیده. دا جرنیل یو سیاسی لوبغاړې هم وو. دا خیال ئې اوکړو چه دَ جنوبي وزیرستان احمدزی وزیر او مسید وزیرو دواړه قومونه که په یو اتفاق وي نکه چه اوس دي. نو انګریزي فوځ له دَ دوئ د متحده اولسي او قومي طاقت مقابله ګرانه ده. دَ دې خیال په بناء جنرل کرسویټ دا تجویز جوړ کړو چه په سیاسي چالبازئ مسید پښتانه دَ احمدزي وزیرو دَ امداد نه قلار کړي. او چه یو ځل احمدزي وزیر او وهی نو بیا به دَ مسیدو وزیرو قوم سره خان له خپل حساب کتاب اوکړي.

چنانچه څه وخت چنډوله کیمپ ته جنرل کرسویټ را اورسیده نو دَ خوا وُشا سیمو مسیدو مشران ئې را اوغوښتل جرګه ئې کړله. او دَ خوږو د پستو خبرو. او څه طمع طماعئ او غوړ مالئ په ذریعه مکر او فریب شروع کړو. دَ مسید قوم مشرانو ته ئې اووئیل چه احمدزي وزیر چه څرنګ ستاسو دشمنان دي دغه شان ځمونږه دشمنان دي. ځمونږه جنګ دَ احمدي وزیرو برخلاف دې. ستاسو برخلاف نه دې. په دې وجه ځمونږه فوځ چه په احمدزي وزیر باندې دَ حملې دَ پاره روان دې. هغه ستاسو په علاقه کښې هیڅ دخل به نه ورکوي. په تاسو به څه غم غرض نه ساتي. صرف ستاسو په زمکه کښې به ورباندې تیرشي او په احمدزي وزیرو به حمله اوکړي. چونکه لاره ستاسو په زمکه کښې تیره شوې ده. نو تاسو به داسې اوکړئ چه ځمونږه کوم فوځ ستاسو په علاقه په سرویکی، درګئ او سره منځه

کښې تيرېږي. نو تاسو ته پکار دي چه خپل خلق پوهه کړئ چه هغوئ په دغه علاقو کښې ځمونږ ه دَ لښکر ځنې نه راشي، او ځمونږ ه په فوځ اونه بلسيږي.

## دَ مسيدو جواب

دَ جنرل کرسويټ دَ دے سوال نه روستو دَ مسيد قوم مشران جرګه شول او دَ هغې نه روستوئے پرنګي ته دا جواب ورکړ:-

"که چرے مونږه خپل وزير ورونه پرېښو نو تاسو ته په جنګ کښې ځان له پرېږدو تاسو پرنګيانو ته خپل اووايو او هغوئ ته دښمنان اووايو. نو بيا ځئ دا خطره نه ده چه تاسو وزير اووهئ. نو مونږ به درته يو وزرې اويوستوي شو. او بيا چه ستا سو څه خوښه وي هغه به را سره اوکړئ. بلکه مونږه دا کار په دے وجه هم نه شو کولے. چه دا کار دَ پښتونولئ نه خلاف دَے دَ اسلام نه خلاف دے تر دے حده چه زمونږه دَ خدائے نازولے پيغمبر به ان په مدينه منوره کښې زمونږه نه ناراضه شي. او بل خوا زمونږه ننګيالو ته به په هديره کښې مړي پيغور ونه کوي."

دا قسم په مزه او په تلاره بنه په حوصله دَ پښتو او غيرت نه ډک جواب مسيد و مشرانو دَ ننګيالي غازي ملک بهاودين مسيد په خوله ورکړ. هر کله چه دَ جنرل کرسويټ مکر او فريب کامياب نه شه. جرګه ورانه شوه. نو پيرنګي جرنيل باندے دَ قهر او ربل شه او دَ احمدزي وزيرو په ځائے ئې په مسيد وزيرو حملے تابيا اوکړه.

پيرنګي مسيد قوم له دَ سزا ورکولو په خاطر په "ساره راغه" او "کوټکي" باندے حمله اوکړله. بل خوا چه احمدزي وزير دَ دے نه خبر شول چه مسيد

قام په احمدزی قام باندے ننګ خوړلے دے. او د پیرنګی جرګه ئے نه ده منلے. نو په دے باندے احمدزی وزیر که لوئ ووکه واړه په یوه چغه او نغاره راووتل. د جنګ میدان له ئے ځان را اورسولو. د وزیرو او مسید و دواړه قومونو لښکرے په ډیرجوش یوځائ شوے په تمبزکئ او تره کئ مورچه شول او په انګریزانو باندے ئے خپل اولسی او اسلامی بیلے اوړواوه.

## د انګریزانو حمله

چنانچه د دے تاریخی پس منظر مطابق په ۱۳۳۳ه مطابق ۱۹۲۳ء کښے په تمبزکی او تره کی مورچه باندے د وزیرو او مسید و په شریک لښکو باندے حمله کړے وه. دا جنګ د نورو جنګونو نه ډیرزیات سخت وو پښتنو غازیان او د انګریز فوځیان ګوره. سکهان او ګورکهه یوبل له غیږ په غیږ وړغلی وو. لاس په لاس جنګ وو. د نورو وسلو پیش قبضو چړو او برچو جنګ وو. او یو ډیرلوئ تاریخی د یاد ساتلو جنګ وو. دوه ورځے سرپه سر په دغه زمکه جنګ او شه. وینے پرے او بهیدلے. خوربه شوه. د انګریزانو له طرفه د دے زره شلور سوه او یار(۲۴۷۰) فوځیان او درویشت لوئ لوئ انګریزان افسران پکښے مړه شول. او د مسلمانانو د طرف نه د دے د پاسه شلور سوه (۴۰۳) ننګیالی غازیان شهیدان شوی وو.

د دے غزا بل اهمیت دا دے. چه غازیانو د خپل دشمن نه اوه کم شپږ سوه (۵۹۷) ټوپک او بے حساب زیات فوځی ساز و سامان قبضه کړے وو. او بله خبره دا وه چه په دے کښے چه کوم غازیان شهیدان شوی وو هغه زیات په قام مسید وو.

تمبزکی یوانګریزی مورچه وه چه د تره کئ او جنوبی والے د مورچو په

منځکښې وه . او تره کمې دیوے غونډ ی نوم دے چه د ساړه راغه او تمغږکمې تر منځه ده .

# د انړی تنګی غزا

په ۱۳۴۴ه مطابق ۱۹۲۵ء کښې د وزیرو او مسید و یو شریک لښکر په انړي تنګی باندے د پرنګی په فوځي کیمپ حمله اوکړه . توله ورځ جنګ روان وو . او د دواړه طرفه نه جنګید ونکو خوانانو دا کوشش کولو چه خپل دشمن راکلاندے کړي . لیکن د پرنګی فوځ بد بد اووهلے شه . د فرنګی د فوځ اوه کم اته سوه فوځیان (۷۹۳) او دیارلس ۱۳ کسان انګریزان افسران قتل شوی وو . او د مسلمانانو په دے کښې دریے کم سل (۹۳) شهیدان شوی وو . او د پرنګی بے شمیره فوځی وسله . توپک . کارتوس وغیره غازیانو له په لاس ورغلے وه .

د تمتړکی . تره کمی او انړی تنګی په درے واړه غزاګانو کښې په شمار پوره پنځه سوه غازیان شهیدان شوی وو .

# د ساړه راغه غزا

په ۱۳۴۸ه مطابق ۱۹۲۹ء کښې د وزیرو او مسید و لښکرے راټولے شولے . او د "ساړه راغه" په فوځی کیمپ ئے حمله اوکړه . د دے حملے نه څه ورځے وړاندے غازی رمضان خان شمس خیل مسید یو توپ جوړ کړے وو . غازیانو په جنګ کښې هغه استعمال کړ . لیکن د اولنی ډز سره او چاودو او په هغے کښې دوه غازیان هم شهیدان شول .

د انګریزانو د پولیټکل ایجنټ (برټم نز) نوم وو . هغه څوارلس هوائی جهازونه راوغوښتل . بمباری ئے شروع کړه . او دوه دیرش غازیان

پکښې شهیدان شول . او دَ دغې نه علاوه دَ غازیانو اته سوه کوروُنه د ۸۰۰)
په بمبونو وران شول او سوزیدل. او په خصوصیت سره دَ شمن خیلو او
او بهلول زو مسید و دیرخاروی هم پکښې هلاک شول.

# دَ دته خیلو غزا

په کال ۱۳۵۰ھ مطابق ۱۹۳۱ء کښې دَ لوئ اختر په ورځ دَ وزیری
قام دیرے پرګنے دَ پیر ماما په زیارت راټول شوے وو. په دغه
موقع علمانو دَ غزا او جهاد په باب کښې دیر اثرناک تقریرونه اوکړل
په خلقو کښې جوش او جذبه پیدا شوله. په هم هغه ځائ جرګه او شوله
تره ئے اوکړله. او چت شول. او دَ دته خیلو په کیمپ ئے حمله اوکړله.
دَ دته خیلو دَ قلا نه چار چاپیره خاردار تارونه تاوُ وو. ورختل پرے
ګران وو. بیا هم پښتنو ځلمو پرے سترګے پټے کړے. او دوه سوه شاه
ځلمی غازیان پرے وراوختل. دُ قلا دروازے ته اورسیدل.
بل خوا ته دَ پرنګی فوځونو غازیانو له دهوکه ورکړه. او هغه دائے
چه یو خوا ته ئے میران شاه ته ټیلګراف ورکړے چه دَ انګریزی فوځونو
دَ امداد دَ پاره هوائ بمبار جهازونه را اولیږی. او بل خوائے پښتو
غازیانو ته خوله پسته کړه چه مونږ د دته قلا خوشے کوُو. هر څه
تاسو ته حواله کوُ. فقط چه دَ سرامان مونږ ته راکړے شی. په دے
هغه دغه او لمبے وخت وا ره ولو. پښتانه غازیان دَ اعتبار
ناسته په لیکلو ګیا شول دَ قلا دَ دروازے نه وړاندے شول چه په
دغه منځ کښې هوائ جهازونه را اورسیدل او په غازیانو ئے بمباری
شروع کړله. حالت دا شه. چه دَ یو خوا نه دَ هوائ جهازونو دَ بمونو
باران وو. او دَ بل طرف نه دَ چهاونړئ فوځیانو پرے دَ توپکو او

مشین گنونو یاتو نه چلول شروع کړل. ترما ښام پورې دغه شان خونړۍ جګړه روانه وه. چه په پښتنو غازیانو ئې زمکه او آسمان یو کړی وو. په دې جګړه کښې فقط پنځه کسان دَ انګریزۍ فوځ نه قتل شوی وو. او دَ مسلمانانو دَ طرف نه ډیرش تنه غازیان شهیدان شوی وو.

په دغه ورځ که دَ غازیانو یوې مضبوطې ډلې دَ دته خیل قلا ته مخامخ په یو اوچت سر باندې مورچه نه وې نیولې او دَ فرنګی قلا ئې سخته نړولې نه وې. نو پښتانه غازیان به دومره شهیدان شوی وې چه یو به هم ژوندی نه وو پاتې.

په دې سخته جګړه کښې غازی ملک ارسلاخان چه کومه بهادری کړې وه هغه دَ یاد ولو ده. دې ننګیالی غازی دوولس شلې ګټې کارتوس په غازیانو ویشلی وو. او دَ هغې په امداد دَ غازیانو ټولې مضبوطې شوې وې او غازیانو خپله مورچه او قلابندی ټینګه کړې وه.

بل خوا ته دَ انګریزانو څوارلس جهازونه کیا ووُ بمباری کوُوله. دَ یاره دَ دې چه قلابندی ماته کړی. لیکن کامیاب شوی نه وو. آخو چه انګریزانو شپاړس نور هوائی جهازونه را اوغوښتل. او هغو دَ غازیانو په کورونو. کلو. او میښو باندې بمباری شروع کړله. په دغه بمباری ئې یو کم اولس شلې (۳۳۹) کورونه وران کړل. په زرګونو څاروی ئې مړه کړل او اوه ډیرش بې ګناه مسلمانان ئې هم پکښې شهیدان کړل. په دې خبره پښتانه غازیان مجبوره شول چه قلابندی ماته کړی. ځکه چه دَ هر سړی سره دَ خپل بال بچ دَ خلاصون غم ملګرې شه.

# دَبویه غزا

دَ دته خیلو دَ جنګ دغه حال وو. چه بیان شه. لیکن اتفاق نه کوو چه یو سړے دَ دوړ قوم دَ محمد خیلو په علاقه کښے په منډه منډه اوګرځیده. دا آوازه ئے خوره کړه چه مده خیل وزیر فتح حاصله کړه. دَ دته خیلو قلا ئے او وهله. دَ پرګی وسله او مال مرغه ئے لوټ او تالا کړل. دَ دے آوازے په آوریدلو دَ دوړ هم په سیالئ راپورته شول دَ بویئی په چاونړئ ئے حمله اوکړه تر ینه تاؤ شول. په لږ ساعت کښے خونړے جنګ اوشه. اووه کسان شاه ذلی غازیان پکښے شهیدان شول.

# دَ شاه ولی زیارت غزا

دا واقعه دا سے پیښه شوے وه چه انګریزانو په سنه ۱۳۴۲ه مطابق سنه ۱۹۲۳ء کښے په زرمک قبضه کولو کښې کامیاب شوے وو. دَ دے قبضے دَ ټینګولو او برقراره ساتلو دَ پاره به دَ انګریزانو فوځی دستے دَ زرمک کیمپ نه باهر په ګشت وتلے او دَ خپل طاقت مظاهره به ئے کوله. چنانچه په سنه ۱۳۵۲ه مطابق سنه ۱۹۳۳ء کښے دَ خپل دستور مطابق دَ انګریزانو دَ فوځ یوه دسته دَ ګشت دَ پاره وتلے وه. او دَ زرمک کیمپ نه لس میله لرے نمرخاته طرف ته دَ شاه ولی زیارت مقام ته رسیدلے وه. په دغه ځای کښے پښتنو غازیانو پرے حمله اوکړه. دَ فرنګی فوځ یئبسته اوکړه دَ غره په لوړو ژوړو کښے ئے ځان ټینګ او ساتلو. البته په نومړو دوه ورځو باندے یو فرنګے افسر او یو څو فوځیان قتل شوی وو. او غازیان بریالی شوی وو.

---

# دَ علاقه کرم غزاګانې

دَ کرم ایجنسئ په نوم چه کومه علاقه یادیږی. په دے کښې اوه لوئ قومونه آباد دی. (۱) بنګښ چه دَ حضرت خالد ابن ولید رضی الله عنه اولاد دے. دَ دوئ دوه لوئ بناخونه دی ګار او سمیل. (۲) توری چه دَ خوګیانی قوم یو بناخ دے. دَ دوئ هم دوه لوئ بناخونه دی چاردئ او سرګلا.

بنګښ په سنه [illegible] کښې دَ کرمے علاقے ته راشریک شوی دی او توری په سنه [illegible] کښې. او دَ دواړو قومونو ترمنځه دَ کرمے دَ زمکے په قبضه باندے دَ انګریزانو تر زمانے سنه ۱۸۴۹ پورے جنګونه وو. او بیا په خاص طور سره دَ دے جنګونو سلسله هغه وخت نوره هم سخته شوے وه چه په سنه ۱۸[illegible] کښې دَ وادئ ایوب ته دَ توری قوم نورے نوے کهے راغلی وے. او دَ دے دواړو قومونو ترمنځه دَ بوړکی. پیواړ. شلوزان. زیړان. ملانا دَ قبضے په سلسله کښې جنګونه شوی وو. دَ دوئ دغه خانه جنګئ طرف ته دَ اشارے کولو غرض دا دے چه څه وخت انګریزان دَ کرمے دَ علاقے پولے ته دَ کوهاټ. بنوں او شمالی وزیرستان علاقو ته راشریک شول نو دَ بد قسمتئ نه دا دواړه قبائل په خپل منځ کښې په جنګونو کښې اخته وو.

(۳) دَ کرمے دریم قوم دَ منګل قبیلے خلق دے. دوئ په سنه ۱۲۳۹ کښې دَ کرمے وادئ ته راشریک شوی وو. او دَ دے وادئ په برسر کښې دَ کوه سفید په لمنو کښې پراته دی.

(۴) دَ کرمے څلورم قوم دَ چک منی (چکنی) قبیلے خلق دے. دا دَ پښتون قوم په قبائیلو کښې ډیرزیات پخوانے قوم دے. دَ خوست. کرم. او تیراه علاقو ته دَ دے قوم مشران دَ نن ورځے (سنه ۱۹۶۸) نه دوه زره کاله سوا

څوارلس کاله (۲۸۱۴) څخوا په ۱۸۲۶ ق م کښې راغلی وو. دَچکمنی قوم دَقبائیلو نومونه دا دی. حاجی خیل. خواجک. خانی خیل. سیانی. غربینه. کودری دَدوئ علاقې ته پاړا چکمنی وائی.

(۵) دَ پنځم قوم نوم مسوزئ دے. دَ شاخونو نومے دا نامے دی. مشوخیل. دلمرزائی. سمل. اش خیل. کار. مندوخیل. دوئ چه په کومه علاقه پرانه دی هغې ته مسوزائی ویلے شی.

(۶) دَ شپږم قوم نوم "علی شیرزائے" په جغرافیائی لحاظ دَدوئ دَعلاقې دوه حصے دی. دَیوے نوم سورے دے. او دویمے نوم "پتاؤ" دے. دَ دے قوم دَ لاندینو شاخونو او قبیلو نومونه دا دی. میرمحمدخیل مصری خیل. عمرخیل. کسیاخیل دوی چه په کومه علاقه پرانه دی هغې ته "درۀ علی شیرزائی" وائی.

(۷) دَ اوم قوم نامه "ذومشت" چه په "زخت" نامه یادیږی. دَ قبائیلو نومونه ئے دا دی. خویدا دخیل. وتی زائے. منړان. منتوال داوُدزی. په دوئ کښې دَ منړان قبیلے خلق چه په کومه زمکه پرانه دی هغې ته پاړه منړان وائی.

(۸) دارومتئی څلورواړه قومونه چه په کومه زمکه پرانه دی هغه دَ وادئ کرم شمال او مشرق خواته واقع ده. دَ دے قبیلو او دتوری او بنګښو ترمنځه دَ یو بل قوم خلق آباد دی چه نوم ئے زیړان دے. او علاقه ئے په پاړا زیړان یادیږی.

(۹) دَ وادئ کرم په جنوب مغربی او جنوبی حصه کښې شمالی وزیرستان او دَ کوهاټ او بنوں علاقې ته سیمه دَ وزیری قوم دَ کابل خیل قبیلے خلق آباد دے.

په کومو ورځو کښې چه په کابل باندے دَ مغلیه حکمران همایون

بادشاه بادشاهي وه. او په کرمه ئي هم قبضه راغلې وه. لو دغه په زمانه سنه ۹۵ء کښې دَ وادئ کرم علاقه په دوه لومونو ياديده (۱) لوه کرمه (لوئر کرم) (۲) بره کرمه (اپر کرم) چنانچه دَ تيرو شوو (۲۳۸) کالو راسې ترنن ورځې پورې وادئ کرم په هم هغه لومونو يادين کي.

# دَ کُرم اولنئ غزا

دَ وادئ کرم اولنئ غزا په ۳۰ د سمبر ۱۸۵۹ء کښې شوې وه چه دَ انګريزانو فوځ دَ کرنل سرنيول چيمبرلين په کمان کښې دَ کوهاټ دَ فوځي چاونړئ نه روان شوي وو. او دَ کرمې په سيند دَ پورې وتلو نه روستو دَ بلند خيلو په لاره په ميداني غوره باندې دَ حملې په نيت چپاؤ کړې وو. دغه دا يادلول پکار دي چه دَ کوهاټ ضلع دغه حصه چه دَ تل چاونړئ نه جنوب مشرق طرف ته واقع ده. او په څوانئ تاريخ کښې په ننګا او بندا يادشوې ده دا هم دَ انګريزانو دَ راتلو نه مخکښې په وادئ کرم کښې شامله وه. دَ کرمې په دې اولنئ غزا کښې دَ خټکو. وزيرو. دوړو. مسيدو نه علاوه دَ علي شيرزي اوله کرم نورو قبايلو حصه اخيستې وه. او دَ فرنګيانو په خلاف دَمهم آغاز ئې کړې وو.

# دَ کابل خيلو غزا

په ۱۸۵۹ء کښې دَ وزيرو. دوړو. خټک. مسيدو قبايلو په خلاف چه انګريزانو کومې حملې کړې وې. هر کله چه په هغې کښې دَ وادئ کرم قبايلو هم حصه اخيستې وه. لو دَ دغې نه روستو چه څه وخت انګريزانو په شمالي وزيرستان داتما نزي وزيرو او دوړو په علاقو باندې کوم فوځي اقدامات کوړل. په دې غرض چه دَ شا دَ طرف نه پرې باندې

دَ کرم دَ علاقې غازیانو حمله اونه کړې نو داسې ضروري اوګڼله چه دَ کوهاټ
بنون او شمالي وزیرستان سره چه دَ وادئ کرم کومه پوله جنګیږي لږ ده.
دَ هغې هم تابیا اوکړي. چنانچه دَ دې قسم وجوهاتو له مخه هر کله چه
په ۱۸۶۹ کښې انګریزي فوځونه دَ بریګیډیر سرنیول چیمبرلین په کمان
دَ بنون دَ فوځي کیمپ نه روان شول چه دَ شمالي وزیرستان دَ دوړ قوم او
دَ درویش خیلو وزیرو په علاقه باندې حمله اوکړي. نو دَ هغې نه وړاندې
یې دَ اوپر کرم (لوړ کرمه) دَ کابل خیلو وزیرو په علاقه حمله اوکړله.
دَ دې حملې جواب چه قبائلي غازیانو په کومه بهادرۍ ورکړې وو. دَ هغې
اندازه به دَ دې نه اولګولې شي. چه دَ غازیانو یوې وړې ډلې
چه شماره یې باندې فقط اته شپیته (۱۶۰) کسان وو. دَ انګریزانو په
فوځ باندې یې په شپه دَ لاکښې حمله اوکړله. او دَ فرنګي دَ فوځ نه یې
پنځه دپاسه دیارلس شپیته فوځیان قتل کړل. او دَ تعجب خبره دا وه
چه دَ غازیانو دَ ډلې نه دَ یو غازي هم نوک قدر ته سور نه شه.

دَ دې غزا نه روستو دَ وادئ کرم دَ ننګیالو قبائلو او دَ انګریزانو تر
منځه پرېوتلې دَ غزا میدان نور هم ګرم شه. فرنګیانو دا فیصله کړې وه،
چه په هر قیمت باندې چه کیږي. په وادئ کرم قبضه اوکړي. او دَ
غازیانو فیصله دا وه چه ترخپله وسه وسه دَ دین اسلام دَ دشمن برخلاف
دَ غزا سلسله جاري اوساتي. دواړه فریقه په خپله خپله فیصله ټینګ
ولاړ وو. او دَ دریاب کرم سپینې اوبه دَ دواړو فریقو په سرو وینو باندې
تکې سرې ښکته بهیدلې.

دا ته دا یاد لرل پکار دي. چه انګریزانو دَ وادئ کرم دَ قبائلو په خلاف
دَ جنګونو کوم مهم شروع کړې وو. هغه دَ دوه طرفه نه وو.
(الف) یو طرف به یې دَ کوهاټ دَ فوځي کیمپ نه ټل ته [illegible]

مغرب طرف ته او دَ علاقه دوابه نه شمال مغرب طرف ته دَ توره ورې (تورغر) په لاره په دره علي شيرزي باندے دَ دغه درے په نور ختيز او کوز سر باندے حملے کوؤلے. دره علي شيرزي دَ تيراه علاقه ده. دَ اورکزي قوم څخه حسابيږي. ليکن هر کله چه اوس په انتظامي لحاظ دَ کرم ايجنسۍ سره تړلے ده ځکه مونږ دا دغه غزا دَ وادۍ کرم دَ غزاګانو په لړکښې راوسته.

(ب) دويم طرفته به سُئے دَ تمل او مادي شمه دَا رخ نه حملے کوؤلے چُنانچه هم په دے سلسله کښے دَ وادۍ کرم منځ ته دَ نور خانه (مشرق) دَ طرف نه دَ رسيدلو په غرض يوه حمله په ۱۸۶۸ء کښے دَ موجوده ضلع کوهاټ دَ مقام نرياب دَ طرف نه دَ اورکزو په علاقه کښے دَ دره علي شيرزي په مشرقي سرحد باندے دَ ميجر جونز په کمان کښے کړے وه. دَ دے غزا او جنګ ذکر مونږ په ابتدائي فهرست کښے دَ ۱۸۶۸ء دَ جنګونو په لړکښې دَ ورکزو غزا په عنوان سره کړے دے.

## دَ ۱۸۶۸ء دويمه حمله

هم په دغه کال ۱۸۶۸ء کښې دَ ورکزو په ذيلي شاخ علي شيرزي باندے وادۍ کرم ته په لنډه لار دَ مشرق دَ طرف نه دَ رسيدلو دپاره دَ کوهاټ دَ علاقه دوابه نه دَ تورے غونډۍ (توره ورې) او دَ تورغر په لاره دَ جنرل وائيلډ په کمان کښے حمله کړے وه. په دے دواړو حملو کښې انګريزي فوځونو ډير سخت وهل خوړلي وو. ډير زيات نقصان ورته رسيدلے وو. او دَ کوبوغے دَ باباجيؒ صاحب مشهور مريد شيخ اخوند ولي الله صاحبؒ دَ ماموزي لښکر دَ خپلو مريدانو او دَ علاقه ورکزائي دَ مختلفو قبائلو غازيانو سره سخته مقابله کړے.

# دَ علي شيرزي غزا

دَ دے پورتني پس منظر په رڼا کښې په کومو ورځو يعنې ۱۸۶۹ء کښې چه

یوطرف ته انګریزی فوځونو د سرینول چیمبرلین په کمان کښے د بنوں د فوځی کیمپ نه د کابل خیلو وزیرو په علاقه حمله کړے وه. بل خوا ته ئے د دوابه (کوهاټ) نه د توره وړی په لاره د درهٔ علی شیرزی په خیبر سرحد باندے حمله کړے وه. دا حمله د دوه لوړو لوړو غرونو (شمالی او جنوبی) ترمنځه په الګړه او توئ کښے مغرب طرف ته غوځیدلے لاره باندے شوے وه. د دره علی شیرزی د الګړئ د خوړ په رسا منځ کښے ځائ په ځای د غازیانو او شهیدانو بے شماره زیارتونه اوس هم موجود دی. چه یو زیارت پکښے د حضرت سید نظام الدین بخاری علیه الرحمة دے.

## سیّد نظام الدین شهیدؒ

حضرت سید نظام الدین شهیدؒ چه په قام باندے بخاری سید وو. د درهٔ علی شیرزی اوسیدونکے وو. په سلسله عالیه قادریه کښے د حضرت باباجی صاحبؒ د سوات ماذون او خلیفه وو. او د سوات د باباجی صاحبؒ د نورو خلیفه ګانو او ماذونانو په شان د انګریزانو په خلاف په جهادونو کښے ئے عمر تیر شوے وو. د توره وړی په غزا کښے د نریاب په غزا کښے د توره وړی په دویمه غزا کښے او وروستو د اورکزی (علی شیرزو) په دے دریمه غزا کښے چه په ۱۸۶۹ء کښے د توره وړی په لاره د کرنل کینز په کمان کښے شوے وه. د علی شیرزئ په خیبر سرحد د رسا د الګړئ (خوړ) په رسا منځ کښے په ډاګه. میدانی او آواره زمکه باندے شهید شوے وو. او چه په کوم ځائ کښے شهید شوے وو. هم په هغه ځائ کښے د کلی او آبادئ نه جدا او لرے پرته مزار جوړ شوے دے. په کوم ځائ کښے چه د دوی مزار دے د هغے نه دا معلومیږی چه غازیان د انګریزی فوځونو مقابلے ته د غرونو د دوو نه ښکته میدانی حصے ته راکوز شوی وو. رسا منځ لاریبۀ ورته نیولے وه. او د انګریزی فوځونو پیش قدمی ئے

حصاره کړې وه. او په هغه کښې حضرت سید نظام الدین بخاری د شهادت
مرتبه حاصله کړې وه.

د کرنل کینز په کمان کښې دا حمله ناکامه شوې وه. د دره علی شیرزی
په دره کښې چه د وزیری قوم کوم ننګیالی غازیان آباد دی هغه او ورسره
د چکمنی. ذومشت. موسی زی ننګیالی پښتانه د علی شیرزی په دره کښې
داسې راپریوتل لکه چه د پاسه نه سیلاب راشي. انګریزی فوځونو
که هر څو مره کوشش اوکړو چه "دره مرغان"، ته ځان اورسوی لیکن کامیاب
نه شول او په دې شان سره د وادئ کرم منځ ته د نمرخاته طرف نه د
رسیدلو چه کومه منصوبه وه هغه ناکامیابه شوله. البته د تل او
مادی شمه په لار چه کوم انګریزی فوځونه ښکته تلل هغوی څو قدمه
وړاندې تللو کښې کامیابه شوی وو.

## د کرم غزا (دویمه غزا)

په کرمه باندې په ۱۸۶۳ء کښې د امیر دوست محمد خان د زوی محمد اعظم
خان حکومت وو. هر کله چه امیر دوست محمد خان په ۹ جون ۱۸۶۳ء
وفات شه او د هغه په ځای امیر شیر علی خان د کابل باشاه شه. نو په
۱۸۶۴ء کښې محمد اعظم خان د خپل رور امیر شیر علی خان نه بغاوت اوکړو
مقابله اوشوه. محمد اعظم خان شکست اوخوړه هندوستان ته په تیښته لاړو
د انګریزانو سره پناه ګزین شه انګریزانو ته ډیره فائده اورسیدله چه په کرمه
کښې د سردار محمد اعظم خان چله او یړه وه هغه انګریزانو ته راتږدے شوه.

د انګریزانو په سازش او د امیر محمد اعظم خان په لمسون په کرمه کښې یو
ځل بیا د امیر شیر علی خان په خلاف بغاوت اوشه لیکن امیر شیر علی خان نائب وزیر محمد رفیق خان
مقابلے را اولیږه هغه بریالے شه او د کرمے باغیان او وهلے شول. لیکن په سیاسی طور د انګریزانو

ولا پکښې نوره هم پیدا شوله.

بیا خو اته د انګریزانو او امیر شیرعلي خان تعلقات خراب شول. په ستمبر ۱۸۷۸ء کښې د افغانستان په خلاف د اولني جنګ اعلان اوشه. انګریزانو په دے طرف نه په کابل حمله اوکړه. د شیر کرم بولان په لارو. د کرم په لاره چه په ۱۸۷۸ء کښې کوم فوځ حمله کړے وه. د کرم ایجنسی غازیانو ئے مقابله اوکړه. لیکن انګریزانو په ډیر زور کښې حمله کړے وه. غازیانو ورته لار نشوه نیولے. په دے موقع د جینډړئ، سنګنه او جهلم په مقام چه غازیانو کومه مقابله کړے وه. هغه د یادولو ده.

په کرمه باندے په ۱۸۷۸ء کښې د انګریزانو د حملے نه دا دے اثرات او نتیجے راوتلے وے:-

(۱) یوه دا چه د دے حملے په ذریعه انګریزانو ته د وادئ کرم اهمیت نور هم معلوم شه چه په افغانستان باندے د حملے د پاره دا لار څومره اهمه ده. چنانچه د حملے سره سره ئے هم په دغه ۱۸۷۸ء کښې د دریاب کرم په غاړه غاړه د تل نه د توتکی رپار(پاړه چنار) پورے د سړک جوړولو بنا اوکړله. د سړک د جوړولو د پاره د بارک خټکو خان چه خواجه محمد نوم ئے وو. پنځلس سوه ۱۵۰۰ خټک سړی د او بنانو په بیګار راولیږلی وو. د هغے په خلاف د بارک خټکو اولس را پورته شه. جنګ ئے اوکړو چه روستو به د دغے واقعے حال بیان کړو.

(۲) انګریزانو چه په کابل حمله اوکړه امیر شیرعلي خان اووهلے شه او په ۴ تاریخ د جمادی الثانی ۱۲۹۶ھ مطابق ۲۶ مئی ۱۸۷۹ء د ګندمک په مقام د امیر محمد یعقوب خان نه په زور زیاتی په یوه معاهده دستخط واخیست او د دغه معاهدے په وجه د دغه کښې

دا فقره ئې شامله کړله چه "د کرمې علاقه به د ځاځيو د علاقې د ابتدا پورې د انګريزانو وي۔" نو قانوني طور انګريزانو د ځان د پاره دا حق حاصل کړ۔ چه په کرمه باندې د جنګونو کولو سلسله جاري اوساتي۔

(۳) د دې جنګ په نتيجه کښې د کرمې په علاقه کښې يو بهادر توريال او نوميال غازي ميدان ته راغې چه هغه د کوزې کرمې (لوئر کرم) او سيد ونکے وو۔ غلام سرور خان نوم ئې وو۔ په قام باندې منت وال۔ ذومشت وو۔ او په چکي نامه مشهور وو۔ چه روستو به د ده د بعض کارنامو تذکره په اختصار سره اوکړے شي۔

# د کرم دريمه غزا

په ۱۸۷۸ء کښې انګريزانو په کرم کښې د سړک په جوړولو لاس پورې کړے وو هر کله چه په ۱۸۷۹ء کښې د ګندمک د لوظنامې په ذريعه په کرمه باندې خپله حقداري هم ثابته کړه نو په کرمه باندې د قبضې راوستلو د پاره ئې نوي اقدامات شروع کړل۔ بل طرف ته د خواجه محمد خان بارکزي خټک چه کوم پولټيکل اسسټنټ وو، سوه خټک په بيکار باندې د کرم سړک د پاره راوستلي وو۔ هغوئ د کار کولو نه انکار اوکړ۔ او روستو د هغوئ رونړو عزيزانو د خټکو په علاقه کښې هم شورش پيدا کړ۔ او ورسره په کرمه کښې د ذومشت قبيلې د بهادر غازي غلام سرور خان المعروف چکي په مشرئ کښې د ذومشت۔ موسیٰ خيلو۔ علي شيرزو۔ او بنګښ او خټکو غازيانو د کرم په هغه خلقو باندې چه د کرمې په تيرو شوو دوه غزاګانو کښې ئې د انګريزانو امداد کړے وو حملې شروع کړې۔ او بل خوا ته ئې د انګريزانو د سړک جوړولو د کاربندولو د پاره حملې شروع کړې۔

نو دَ دے حالاتو او واقعاتو په بناء انګریزانو په وادئ کرم باندے خاص طور دَ ذومشت په قبیله باندے په سنه ۱۸۷۹ کښے دَ جنرل تهکر په کمان کښے یوه بله حمله اوکړله۔

دَ انګریزانو په تاریخی یاد داشتونو کښے دا حمله دَ علاقه ورکزائی دَ جنګ په نامه یاده شوے ده۔ او ورسره ئے دا لیکلی دی چه حمله په ذومشت قبیله شوے وه۔ هر کله چه مشهور غازی چکی په قام ذومشت وو۔ او هغه دَ کوزے کرمے په علاقه کښے اوسیده او په کوزه کرمه کښے ئے دَ انګریزانو په خلاف دَ غزا د مهم دَ کامیابئ او په کرمه کښے دا انګریزانو دَ طرفدارانو دَ مغلو په کولو دَ پاره دَ خپلے بادشاهئ اعلان هم کړے وو۔ په دے وجه موږ ه دا غزا دَ کرمه دریمه غزا په نامه یاده کړه۔

په دے غزا کښے کوم پخلس سوه خټک چه دَ سړک دَ مزدورئ دَ پاره په بیګار باندے راوستلی شوی وو۔ هغه هم دَ غازیانو سره ملګری شول۔ دَ تهل په مقام جنګ اوشه۔ او ورپسے دَ کوزے کرمے په علاقه کښے قدم په قدم جنګ اوشه۔ اودَ ډیرے تباهئ او بربادئ نه روستو دَ انګریزانو فوځ بیرته واپس لاړ۔

## غازی چکی

لکه چه مخکښے ذکر اوشه دَ غازی چکی نوم غلام سرور خان وو۔ په قام منت وال وو۔ چه دا قبیله دَ ذومشت قوم یو بناخ دے۔ دکرم یو انګریز افسر چه مرک نوم ئے دے۔ هغه په یو خپل رپوټ کښے لیکی چه چکی یو زړور دَ جرأت او شجاعت خاوند، عقلمند، دوراندیش او بهادر ځوان دے۔ تر اوسه موږه دَ وادئ کرم ملک هاشم علی خان ډیر لوئ سړے ګنړلو لیکن هغه دَ سرور (غلام سرور) المعروف چکی دَ چی ګوتے برابر هم نه دے۔ (دَ مسټر مرک ذاتی خط دَ ګورنر جنرل انډیا په نوم)

چنانچه دے بهادر غازی داکوشش شروع کړ۔ چه دَکرم علاقه دَانګریزانو دَقبضے نه بچ کړی۔ دَ دے غرض دَپاره لکه چه ذکر اوشه دَلوئ کرم په علاقه کښے ئے خپله بادشاهی قائمه کړله۔ بیائے په اپر کرم قبضه کولو دَ پاره اقدامات شروع کړل۔ دیره علاقه ئے لاندے هم کړله۔ چه په ۱۸۸۲ء کښے دَ کرم دَعلاقے یوه جرګه انګریزانو له ورغله چه تاسو کړے ته راشئ او هلته خپل حکومت جوړ کړئ۔ په دے سلسله کښے دَ یو انګریز افسر میجر کلټ بیان دے۔

"دَ کرم علاقے ته څوونږ دَ تللو وجه دا وه چه دَ دے علاقے دَ توری تورِ قوم دَ توتلو نه غټ او لوی ملک مرزا ګل راغے او مونږ ته ئے اوویل چه تا سو هر کله چه کړے ته راځئ څوونږه ستړګے به ستاسو په لاره کښے فرش وی۔"

# دَ بارک خټکو غزا

یو خوا ته دَ وادئ کرم دغه حال شه۔ او بل خوا ته دَ کرم د سرک دَپاره چه دَ بارک خټکو کوم پنځلس سوه مزدوران په بیګار بانده خواجه محمد خان کړے ته راوستلی وو۔ او په ۱۸۷۹ء کښے ئے دَ انګریزانو په خلاف دَ غازیانو ملګرتیا اوکړله۔ نو په دوئ کښے چه څوک ژوندی پاتی وو۔ دغه په مارچ ۱۸۸۰ء کښے دَ تل نه را اوتښتیدل۔ البته دَ درویش خیل قبیلے ورسره ملګری شوی نه وو، چه خپلے علاقے بارک خټک ته راغلل۔ او خپل قوم ئے دَ واقعاتو نه خبر کړ۔ نو ټول بارک خلق دَخپل خان خواجه محمد خان نه باغی شه۔ او په جون جولائی ۱۸۸۰ء کښے ئے دَ انګریزانو دَ هر قسم دیوانی او فوجداری

احکامو منلو نه انکار اوکړ۔ بیائے په تیری توی باندے حمله اوکړه او هلته
چه څوسره قیدیان وو۔ هغه ئے دَ بند یخانے نه آزاد کړل۔ دَ دے په
جواب کښے په اګست سنه ۱۸۸۰ء کښے فرنګیانو په بارک خیلو حمله اوکړه
انګریزی فوځونه دَ علاقے منځ ته ورننه وتل دَ میدانی علاقے خلق
اوو هلے شه لیکن دَ لیوغر غازیانو جنګ جاری اوساته او دوغ یو
کال نور ئے هم دَ انګریزانو سره ښه اوړتول۔

## دَ وادیٔ کُرم څلورمه غزا

په سنه ۱۸۸۲ء کښے انګریزان کُرمے ته لاړل۔ قبضه ئے اوکړله۔ لیکن
دا قبضه دَ وادیٔ کُرمے په هغه حصه وه چه دَ دریاب په غاړه غاړه وه
یاتے شوه هغه علاقه چه نن ورځ په کُرم ایجنسیٔ کښے شمارلے شی
لکه دَ علی شیرزی۔ موسیٰ خیل۔ ذومشت او خملنی قبیلو علاقے شولے۔ نو دَ دغه
علاقو خلقو شکست هم نه وو منلے او دَ انګریزانو قبضه پرے هم نه وه راغلے
بل طرف ته دَ دے څلورواړه قبیلو علاقے دَ وادیٔ کُرم سره دومره زیاتے
ګنړلے پرتے وے چه دَ دغه قبائیلو دَ مخالفت په شکل دکرم سړک محفوظ
نه شی پاتے کیدلے۔ په دے وجه انګریزانو دَ دے پورتنو څلورو واړه علاقو
دَ خلقو طاقت او زور ختم کوُل ضروری اوګڼړل۔ مخکښے دَ سنه ۱۸۶۸ء او سنه ۱۸۶۹ء
دَ کرم ایجنسیٔ دَ غزا کانو په سلسله کښے دا بحث شوے دے۔ چه دَ دغه
دواړو کلونو په جنګونو کښے انګریزانو په کرمه باندے دَ دوه طرفه نه حملے کړے
وے۔ یوه حمله دَ درهٔ علی شیرزی په مشرقی سرحد دَ "توره وړی" او دو آبے دَ
طرف نه او دَ نریاب او "توره وړی دَ طرف نه۔ او دویمه دَ تل دَ طرف نه
چنانچه په سنه ۱۸۹۷ء کښے انګریزانو یوه حمله دا اوکړه چه په علاقه باندے دَ کوهاټ
دَ طرف نه دَ سمانه کنړ و په لار باندے دَ جرنیل ایلیټ مین بکز په کمان کښے

اوکړله۔ دَ پاره دَ دے چه دَ اورکزو دَ علاقے دَ غازیانو خصوصًا دَ درہ ماموزی او علی شیرزی دَ غاز یانو څخه طرف ته اوکړزوی۔ اوبل خوا ته ئے هم په دے کال سنه ۱۸۹۷ ء کښے په کرم باندے دَ پښتوانی په شان بیا دَ دوه طرفه نه حمله اوکړله۔

(الف) دَ دوآبه دَ طرف نه توره وړی ته دَ بریګیډیر ګیسلی په کمان کښے

(۱) (ب) او دَ نریاب دَ طرف نه توره وړی ته دَ کرنل هل په کمان کښے۔

دا دواړه فوځونه دَ توره وړی نه وړاندے شول او دَ دره علی شیرزی په مشرقی سرحد یوځای شول او مخ په وړاندے په دره مرغان۔ پاره منډان وغیره ئے اقدامات شروع کړل۔ او مقصد ئے پاړاچمکنی ته ځان رسول وو۔

(۲) دویمه حمله دَ تل دَ طرف نه وه چه دَ جینډری او سده منځ ته ځان اورسوی په ذومشت قبیله حمله اوکړی او بیا په وړاندے ځان پاړاچمکنی ته اوباسی۔ دا دویمه حمله دَ کیپټن روس کیپل په کمان کښے شوے وه۔

دَ میجر روس کیپل په کمان کښے چه دَ انګریزانو کوم فوځ په پاړاچمکنی دَ حملے دَ پاره روان وو۔ دے فوځ په لوئیر کرم رلوه کرمه (کښے دَ موضع سده سره نزدے دَ بادامی پوسټ دَ مقام نه حمله اوکړه۔ او دَ پاړا منډان علاقے ته دَ ورننوتلو او دَ ذومشت قوم دَ دغه ذیلی بنیاخ منډان په زمکه دَ قبضے کولو په تکل کښے شول۔ او دَ نمرخاته طرف نه دَ بریګیډیر ګیسلے او کرنل هل فوځونه دَ درۂ علی شیرزائے په الګړه رابرېوتل چه دَ موسی زو او علی شیرزو درے اونیسی۔

دلته دا یادول پکار دی لکه چه مخکښے هم ورته اشاره شوے ده۔ دا پورتنی علاقے چه انګریزانو پرے دَ دوه طرفه نه حمله کوله دَ وادئ کرم شمال شمال شرقی او مشرق ته واقع دی۔ دَ بریګیډیر ګیسلے او کرنل هل فوځونه دَ مشرق

له طرفه مغرب او شمال مغرب ته په یرغال راتلل او دَ میجر روس کیپل فوځونه دَ شمال او شمال مشرق په طرف چپاؤ کولو۔ دا ټول علاقي دَ تیراه دَ نصف جنوبي او جنوب مغربي حصے نه شمار لے شي۔ په مقامي ویش کښے له تیراه نه سا بیرې او په قومي اعتبار سره۔ موسیٰ زی۔ علي شیرزی۔ منډان درے واړه قبیلے دَ ذومشت قوم شاخونه دي۔ او ذومشت په اوچته پیړی کښے منګل دي۔ دَ دے پس منظر په رنړا کښے هرکله چه انګریزانو دَ کرم او تیراه په برید په اورکزو، څمکنو او ذومشت قبیلو حمله اوکړله۔ نو دا ورکزي دَ علاقے ټول قامونه۔ دَ کرم دَ برسر دَ علاقے منګل، او دَ چمکني قوم غازیان ئے مقابلے ته را اوچلیدل۔ چقره تخته برسیره شوله۔ او قدم په قدم دَ هر یو کانړي بوټي نه په انګریزانو ګولئ وریدل شروع شول۔ دَ ماموں زو دَ علاقے پیر خانه حضرت مولانا ولی الله قادري رح چه دَ کربوغے دَ مولانا انور شاه رح مرید وو او دَ ذومشت قبیلے نامور غازي غلام سرور خان چکے او نور قومي مشران لکه غازي محمد شاه ولد غازي ګلاب شاه قوم کار مستو خیل موسیٰ زی غازي حمید خان وټي زائ۔ ذومشت۔ غازي بادشاه خان، قوم خاني خیل څمکني را وړاندے شول دَ غازیانو دَ لښکر سنبالے ئے اوکړ او دَ خپلے زمکے دَ یو یو انچ او یو یو سپق دَ حفاظت دَ پاره ئے سر بازئ اوکړلے۔

دَ غازیانو سره چه کومه وسله وه هغه دَ نشت برابر وه۔ په مقابله کښے چه دَ انګریزانو سره کومه آتشینَ وسله وه۔ توپکو نه مشین ګنونه۔ توپونه دَ هغے مقابله په تشو لاسو نو کړا نه وه۔ غازیان په قدم قدم په شا بانده تلل۔ او دَ انګریزانو په فوځ کښے چه کوم ګوره۔ ګورکها او سکهان فوځیان وو۔ هغوئ په یو یو قدم مخکښے تلل نو ورسره ئے دَ خپل وحشت او بربریت مظاهره هم کوله۔ آبادکلي۔ کورونه۔ فصلونه۔ باغونه۔ ځنګلونه چه څه په مخه ورتلل هغه ئے وړانول۔ او په اور ئے سیزل۔

جنګ روان وو ۔ هم دَ شپې او هم دَ ورځې ۔ او په دې شان سره دَ فرنګی فوځونو دَ موسی زی علی شیرزی ۔ نکاړی ۔ سمل ۔ مامون زی او پاړا مستیان علاقې دَ غازیانو نه او نیولې ۔ او دَ دېرې لوئې علاقه په قبضه کولو کښې بریالی شول ۔

# دَ چالی کوټ غزا

دَ انګریزانو دَ حمله کوونکی فوځ هغه حصه چه دَ سدّه سره نزدې دبادامی پوسټ دَ مقام نه ئې حمله شروع کړې وه ۔ یرغال ئې کاوه ۔ او دَ ذومشت قوم علاقه ئې تباه کوو له چه دَ موضع سدّه نه تقریبًا لس میله وړاندې دَ چالی کوټ مقام ته اورسیدل نو دغلته یوه ناله (خوړ ۔ الکهئ ۔ توئ) ورله مخې له راغله چه دَ هغې نامه (پیئیله ۔ توئ) ده ۔ په دغه مقام غازیانو دَ فرنګی دَ فوځونو سره یو جنګی چال اوکړ ۔ یو عجیبه تیرئې ورکړ ۔ چه دَ تاریخ په پاڼو به یادګار پاتې وی ۔

دا واقعه داسې وه ۔ چه دَ (پیئیله) نومې توئ (خوړ) دواړه طرف ته ګڼړ او ګور ځنګل دې ۔ دَ غازیانو په ډیره تندئ او چالاکئ سره دَ پیئیله نه پورې وتلو او په ځنګل کښې ئې منډه واخیستله دَ فرنګی دَ فوځ دَ سکهانو ۔ ګورو ۔ او ګورکها دَ پلټنو سپاهیان هم ورپسې په منډه او غا ښت په ځنګل ورننوتل ۔ هر کله چه دَ انګریزانو دَ فوځ دَ سکها نو یوه پوره رجمنټ سپاهیان په ځنګل ورد ننه شول ۔ نو غازیانو دَ ناټې په دواړه غاړه عظیم الشان ځنګل ته اور ورته کړ ۔ او دَ سکهانو دَ فوځ روغه رجمنټ ئې په اور سوځې کړله ۔ بل خوا ته غازیان دَ انګریزانو په فوځ را او ګرزیدل ۔ دَ ګورکها او ګوره فوځ په سپاهیانو ئې دَ الله اکبر په چغه او بشکلې تورې را خلاصې کړې ۔ لاس په لاس جنګ اوشه ۔ دَ فرنګی دَ فوځ دَ مړو نه پیئیله ډکه شوه ۔ په دې جنګ کښې غازیانو له په مال غنیمت کښې بې شماره وسله

توپکونه۔ کارتوس او نورجنګی سامان په لاس ورغے۔ روغ او سالم توپکونه چه په لاس ورغلی وو هغه پریږده۔ دَ فرنګی کوم فوځیان چه په ځنګل کښے په اورسوی وو۔ دَ هغوئ په لاسو نو کښے بے شمیره داسے توپکونه وو چه نیم سوی وو نیم روغ وو۔ غازیانو دغه توپکونه راټول کړل۔ دَ ځان سره ئے دَ یادګار په طور او ساتل دَ خکمنو په علاقه کښے اوس هم دَ ډیرو خلقو سره دغه نیم سوی روغ توپکونه دَ یادګار په طور موجود دی۔ او ډیر په قدر ئے په حفاظت باندے سنبال ساتی۔ په هغه زمانه چه دَ انګریزانو دَ سپاهیانو سره کوم توپکونه وو۔ دَ هغے دوه نامے وے کورانیز۔ کونیز۔ دا دواړه قسم ټوپانی توپکونه چه غازیانو په مال غنیمت کښے اخیستی دی۔ نن ورځے هم په دغه تبایلی علاقه کښے دَ خلقو سره موجود دی۔

## دَ چاتو غزا

دَ چانی کوټ په مقام چه دَ انګریزانو دَ فوځ کومه عظیم الشانه تباهی او شوه دَ هغے نه چه څه لږ ډیر فوځ ئے بچ او ژوندے پاتے شو۔ هغه یو ځائ ته راټول شه۔ جنګ او حمله هر څه ترینه پاتے شول۔ فقط خپله خوکئ ئے کوله او په دے انتظار کښے شول چه دَ علی شیرزو دَ درے دَ طرف نه کوم فوځ په هیڅه راروان چه دَ هغوئ امداد را اورسیږی نو بیا به کوری چه څه کول پکار دی۔ څه وخت چه دغه امدادی فوځ ورته راورسیده۔ نو بیا ئے جنګ او حملے شروع کړے مخ په وړاندے روان شول۔ او په داسے حال کښے چه دَ پورته ذکر شوو علاقو تقریباً ۳/۴ په څلورو کښے درے حصے علاقه په ئے قبضه کړے وه۔ دَ قبیله چکمنی په علاقه کښے دَ چکمنی تمام دَ پوے قبیلے خانی خیل علاقے ته په رسیدلو کښے کامیاب شول۔ او دَ خانی خیل قبیلے په علاقه کښے دَ چاتو په مقام

دادواړه فوځونه چه راپوځای شول. توخیل فوځي کیمپ ئې قایم کړ. دغه ئې خپل هیډ کوارټر اوګرځولو. او دَ فوځ دَ پاره دَ ټول ضروري رسد اوسامان جمع کول ئې شروع کړل.

دَ فرنګیانو فوځ چه په چاتو کښې خپل هیډ کوارټر ساز کړ. نو دغه داسې وخت وو چه بیا دوئ دَ خانې خیل ځګمنو تقریباً نیمه علاقه هم قبضه کړې وه. او پنځیل فکر کښې دَ غازیانو طاقت ئې تقریباً ختم کړې وو. منډاړ. علي شیرزي. موسی زی. ذومشت. اتمان خیل او دَ ځګمنو تقریباً نیمه علاقه ئې وهلې وه. او په یو حساب دَ تیراه منځ ته رارسیدلی وو. دَ قبیله چکمنی علاقه چه په کوم جغرافیائی محل وقوع کښې پرته ده. هغې ته دَ انګریزانو دَ فوځونو رسیدل ډیره لویه خبره وه. ځوګه په دې خبره باندې دَ پوهیدلو دَ پاره به دَ پاړاچکمنی دَ علاقې په محل وقوع نظرواچوو.

(۱) دَ چکمنی دَ علاقې شمال او شمال مغرب طرف ته ننګرهار دې.
(۲) شمال مشرق طرف ته ئې دَ تیراه دَ آفریدو علاقه ده.
(۳) مشرق طرف ته ئې دَ آتوزیو او دَ موسی زی قبیلې علاقه ده.
(۴) جنوب طرف ته ئې دَ موسی زی ذومشت قبیلې علاقه ده.
(۵) مغرب او جنوب مغرب طرف ته ئې کرم ایجنسی یعنې دَ وادئ کرم اوزیړانو علاقه ده.

دَ میجر روس کیپل په نظر کښې دَ ځګمنو دَ علاقې فتح کولو ډیره لوئ اهمیت لرلو. ځکه چه هم په دې ۱۸۹۷ء کښې هم په دغه ورځو کښې بریګیډیر ګیسلې، کرنل هل او میجر روس کیپل دَ ځګمنو په علاقه دَ درې طرفه نه حمله کړې وه. نو په دې کال او په عین دغه ورځو کښې انګریزي فوځونو دَ جنرل لاکهارټ په کمان کښې په اپریدو هم حمله کړې وه. لکه چه ذکر اوشه دَ پاړاچکمنی پوله دَ شمال مشرق او مشرق په بریډ باندې دَ قمبرخیلو

آفریدو وسره جنګیدلے دہ ۔ تجویز دا وو ۔ چه د کوهٹ د طرف نه حمله آور فوځ او د سمانه د طرف نه د جنرل ایلیټ مین ټکر په کمان کښې حمله آور فوځ او د جنرل لوکهارټ په کمان کښې حمله آور فوځ دا ټول به د تیراه د میدان په باغ یو ځای شی ۔ او په دے جوړ به د کرم د قبضے نه پس د تیراه د اورکزی قوم جنوبی حصه او د آفریدی قوم شمالی تیراه ټول قبضه کړے شی ۔ لو یه منصوبه وه ۔ لیکن د څکمنی قبیلے غازیانو دغه ټوله قیصه ګڼډ وډه کړله ۔

واقعات داسے پیښ شول چه د څکمنی قبیلے غازیانو لښکر برابر کړ او یو ناساپه ئے د چارتو په مقام د انګریزی فوځ په کیمپ یوه طوفانی حمله او کړله ۔ او بریګیډیر ګیسلے او کرنل هل چه د دے جنګ کمان ئے کولو هغه ئے قتل کړل ۔ د دیلو جرنیلانو په قتل کیدلو د انګریزانو فوځ وار خطا شه ۔ میجر روس کیپل هم په تیښته کښې خپله کامیابی او لیدله ۔ د چارتو په فوځی کیمپ کښې چه هر څومره سامان ۔ رسد ۔ وسله هر څه چه وو ۔ هغه ئے په ځای پریښودل ۔ او داسے په ډار خطایئی باندے په تیښته سر شول ۔ چه تازی سپو هم نه شول رالاندے کولے ۔

دا د انګریزی فوځ د ګورکهااو سکهانو فوځیانو حال وو ۔ البته د څینے ګوره فوځیانو او ډوندو پاتے شو او انګریزانو افسرانو حوصله د یادونے ده ۔ هغوی چه د علاقه څکمنی نه واپس په ماتے راتلل نو د چکمنی په علاقه کښې په ګوراتپ نوم مقام کښې ئے یوه کتبه په انګریزی حرفونو کښې لیکلے پریښے ده ۔ په دغه ډبر لیک کښے لیکلی دی :-

" د علاقے چکمنی نه د انګریزانو د شاندار دے پسپائیے وجه دا ده چه د چکمنی قوم خلق ډیر بهادر خلق دے ۔ چونکه دا خلق د هیڅ یو حکومت په ماتحتئ قبلولو نه رضا کیږی ۔ په دے وجه د حکومت برطانیه

فوځونه دَ دے سرزمين نه واپس کوُولے شي"

داکتبه (په کانړي، د بره ليکلے خط) نن ورځ هم په پاړاچکمنی کښے په گوراتوي نومے مقام کښے موجود دے۔ او دَ انګريزي فوځونو دَ هغه عبرتناک شکست ياد تازه کوي چه دَ چک مني غازيانو د لاسه فرنګيانو له ورکړے شوے وو۔

هر کله چه دَ انګريزانو فوځونه دَ قبيله چکمنی دَ علاقے نه واپس شول نو دَ هغې يوه بنه دا نتيجه شوه چه دَ علي شيرزي، موسی زئي، ذومشت منړان دَ علاقونه هم دَ انګريزانو قبضه پوره شوله۔ او په دے علاقو کښے دَ انګريزانو هيڅ يادګار پاتے نه شه۔ او په دے جوړ دَ قبيله چکمنی دَ بهادرئ په وجه دَ پورتنو څلورو وارو قبيلو علاقه هم آزاده پاتے شوه۔

# سياسي حمله

هر کله چه انګريزانو دَ وادئ کرم په ګاونډ کښے دَ قبائيلي غازيانو دَ لاس نه دَ جنګ په ميدان کښے شکست اوخوړلو۔ نو دَ سياسي داؤ پيچ ميدان ته را اُوتل او دائے اراده اوکړه چه دا خلق چه په ټوټک او نه وهلے شه۔ بايد دَ جرګے په دام کښے ګير شي بخپل اتبادي سړي ئے دَ چکمني قبيلے مشرانو پسے اوليږل۔ چه ستاسو دَ مشرانو يوه جرګه دِ راشي۔ دَ اپر کرم (پاسنئ کرمه) دَ ميرجمال نومے کلي په مقام به سره جرګه شو۔ خبرے اترے به اوکړو او دَ يو بل په زړه کښے چه څه شک اوشبه وي هغه به اوباسو۔ دَ چکمني قبيلے خلقو په ميدان جنګ کښے کته کړے وه۔ دَ فرنګي نه ئے ستر که نه سوزيدے له دا دعوت ئے قبول کړ۔ په مقرر شوي وخت ميرجمال نومے کلي له راغلل۔ دا جرګه دَ فرنګيانو په نظر کښے دومره اهمه وه چه دَ دے جرګے په موقع دَ چکمني مشرانو سره دَ خبرو

اترو دَ پاره دَ هغه زمانې د حکومت هند چه کوم لوئ افسر وو. هغه پخپله راغے.

دَ ملاقات په وخت انګریزی افسرانو دَ پارا چکمنی دَ قبائلی سردارانو نه تپوس اوکړو چه تاسو دَ حکومت برطانیه رعیت کیدل دے نه منظوره وی. دَ دے په جواب کښے دَ قوم دَطرف نه دَ چکمنی قوم دَ خانی خیل قبیلے یو مشر چه بادشاه خان نوم ئے وو. راپورته شه. جواب ئے ورکړو چه مونږه دانګریزانو رعیت کیدل څکه نه قبلوو چه مونږه دا کلمه وایو لآ إِلٰهَ اِلَّا اللّٰه محمد رسول اللّٰه. مونږه یو اللّٰه منو. دَ محمد رسول اللّٰه امتیان او مسلمانان یو. او تاسو غیر مسلم او کافران یئ. په دے وجه ستاسو حکومت قبلول ځمونږ دَ دین اسلام خلاف خبره ده. او تاسو له لاس ورکول او ستاسو سره دوستی کول دَ شریعت اسلام له مخه ناروا دی.

چه هرکله بادشاه خان څکمنی داجواب ورکړو. نو په دغه موقع چه هرڅومره نور قبائلی مشران موجود وو. هغوئ ټولو په یو آواز دَ هغه دَخبرے تائید اوکړو. او په دے جوړ سره دَ انګریزی افسرانو سیاسی حکمت عملی او سیاسی حمله چه دَ فریب په دام کښے ئے دَ څکمنی قوم خلق ګیره ول غوښتل. هغه منصوبه ناکامیابه شوله. او دے نتیجه ته اورسیدل چه دَ څکمنی قوم خلق څرنګ چه دَ جنګ په میدان کښے بهادران دی. دغه شان په سیاسی طور هم پوهه. هوښیار او چالاک دی. دوئ له په سیاسی میدان کښے هم شکست ورکول یا دَ فریب په دام کښے ګیره ول ګران کار دے.

دَ دغه نه روستو دَ سیاسی حکمت عملئ په طور دَ قبیله موسئ زئ علی شیرزائ چکمنی. د وهشت. منځ ان مختلفو قومی او قبائلی مشرانو

له لښکئ او مواجبونه ورانديے کړل دَ پاره دَ دے چه قلارئے کړی بیکن په مجموعی حیثیت سره دَ ۱۸۹۷ء نه تر ۱۹۴۷ء پورے یعنے دَ پاکستان دَ جوړیدلو دَ ورځے پورے په تیرو شوو پنځوسو کالو کښے چه کله هم موقع را غلے ده دَ کرم ایجنسئ دے بهادرانو قبائلو غازیانو په فرنګی باندے ناراسته نه وه کړے او خپل ایمان ئے ورته ښکاره کړے وو۔

---

# د پېرنګيانو په خلاف جهاد

د پېرنګيانو په خلاف د سنه ۱۸۲۶ء نه تر سنه ۱۹۲۳ء پورې په تېروشوو اوه اويا (۷۷) کلونو کښې د سابق صوبه سرحد او قبائلي علاقو کښې چه کومې درې اولوېه غزاګانې شوې دي اتفاق دا دې چه هغه هم په شمېره اوه اويا (۷۷) دي. دلته د دې غزاګانو يوه مختصره ګوشواره درج کولې شي. او په دې کښې د څينو زياتو اهمو غزاګانو تفصيل به هم روستو بيان کړې شي.

| نمبر شمار | د غزا نوم | کال |
|---|---|---|
| (۱) | مخ دره غزا | د جرنيل لمسډن په کمان کښې سنه ۱۸۲۶ء |
| (۲) | د کوجر ګړهۍ غزا | سنه ۱۸۲۷ء |
| (۳) | د ناوې ډنډ غزا | ″ |
| (۴) | د ګدون غزا | سنه ۱۸۲۸ء |
| (۵) | د بنير غزا | سنه ۱۸۲۹ء |
| (۶) | د کوهاټ د آفريدو غزا | سنه ۱۸۵۰ء |
| (۷) | د ختکو د کرک غزا | ″ |
| (۸) | د ختکو دويمه غزا | سنه ۱۸۵۲ء |
| (۹) | د ختکو دريمه غزا | سنه ۱۸۵۳ء |
| (۱۰) | د ميرانزي غزا | سنه ۱۸۵۱ء |
| (۱۱) | د مهمندو غزا | ″ |
| (۱۲) | د مهمندو غزا | سنه ۱۸۵۱ء |

| کال | دَ غزا نوم | نمبر شمار |
|---|---|---|
| ۱۸۵۲ سنه | دَ اتمان خیلو غزا | (۱۳) |
| 〃 | دَ وزیرستان غزا | (۱۴) |
| ۱۸۵۳ سنه | دَ حسن زو غزا | (۱۵) |
| 〃 | دَ مجاهدین چوکنه غزا | (۱۶) |
| 〃 | دَ شیرانی غزا | (۱۷) |
| 〃 | دَ آفریدو دَ کوهاټ غزا | (۱۸) |
| ۱۸۵۴ سنه | دَ مهمندو غزا | (۱۹) |
| ۱۸۵۵ سنه | دَ خیبر غزا | (۲۰) |
| 〃 | دَ میران زی غزا | (۲۱) |
| 〃 | دَ ورکزو غزا | (۲۲) |
| ۱۸۵۶ سنه | دَ توری قام غزا | (۲۳) |
| ۱۸۵۷ سنه | دَ یوسفزو غزا | (۲۴) |
| ۱۸۵۸ سنه | دَ مجاهدینو غزا | (۲۵) |
| ۱۸۶۰ سنه | دَ وزیرستان غزا | (۲۶) |
| ۱۸۶۱ سنه | دَ بابوزو غزا | (۲۷) |
| ۱۸۶۲ سنه | دَ مسعودو غزا | (۲۸) |
| ۱۸۶۲ سنه | دَ یوسفزو غزا | (۲۹) |
| 〃 | دَ کډون غزا | (۳۰) |
| ۱۸۶۳ سنه | دَ سوړاوړی غزا | (۳۱) |
| ۱۸۶۴ سنه | دَ مهمندو غزا | (۳۲) |
| 〃 | دَ سمرانی زی غزا | (۳۳) |
| ۱۸۶۸ سنه | دَ ورکزو غزا | (۳۴) |
| 〃 | دَ تورغر (هزاره) غزا | (۳۵) |

| نمبرشمار | دَغزا نوم | کال |
|---|---|---|
| (۳٦) | دَ اورکزو غزا | ۱۸٦۸ء سنه |
| (۳۷) | دَ دوړو غزا | ۱۸۷۲ء سنه |
| (۳۸) | دَ کوهاټ دَ آفریدو غزا | ۱۸۷۷ء سنه |
| (۳۹) | دَ خیبر غزا | ۱۸۷۸ء سنه |
| (۴۰) | دَ اتمان خیلو غزا | 〃 |
| (۴۱) | دَ رانی زو غزا | 〃 |
| (۴۲) | دَ خیبر غزا | ۱۸۷۹ء سنه |
| (۴۳) | دَ سلیمان خیلو غزا | 〃 |
| (۴۴) | دَ خیبر غزا | 〃 |
| (۴۵) | دَ مهمندو غزا | 〃 |
| (۴٦) | دَ مهمندو غزا | ۱۸۸۰ء سنه |
| (۴۷) | دَ بټنې غزا | 〃 |
| (۴۸) | دَ وزیرستان غزا | ۱۸۸۱ء سنه |
| (۴۹) | دَ وزیرستان غزا | 〃 |
| (۵۰) | دَ حسن زو غزا | ۱۸۸۸ء سنه |
| (۵۱) | دَ شیرانی غزا | ۱۸۹۰ء سنه |
| (۵۲) | دَ حسن زو غزا | ۱۸۹۱ء سنه |
| (۵۳) | دَ ورکزو غزا | 〃 |
| (۵۴) | دَ عیسیٰ زی غزا | ۱۸۹۲ء سنه |
| (۵۵) | دَ هډې ملا صاحبؒ غزا | ۱۸۹۴ء سنه |
| (۵٦) | دَ وزیرستان غزا | ۱۸۹۵ء سنه |
| (۵۷) | دَ چترال غزا | 〃 |
| (۵۸) | دَ ملاکنډ غزا | 〃 |

| نمبر شمار | دَ غزا نوم | کال |
|---|---|---|
| (۵۹) | دَ باجوړ غزا | سنه ۱۸۹۶ء |
| (۶۰) | دَ ملاکنډ غزا | سنه ۱۸۹۷ء |
| (۶۱) | دَ باجوړ غزا | // |
| (۶۲) | دَ مهمندو غزا | // |
| (۶۳) | دَ وزیرستان غزا | // |
| (۶۴) | دَ بنیر غزا | // |
| (۶۵) | دَ آفریدو غزا | |
| (۶۶) | دَ ورکزو غزا | // |
| (۶۷) | دَ وزیرستان غزا | سنه ۱۹۰۰ء |
| (۶۸) | دَ بټ خاک دَ حضرت صاحبؒ غزا | سنه ۱۹۰۸ء |
| (۶۹) | دَ چکنور ملا صاحبؒ غزا | سنه ۱۹۱۳ء |
| (۷۰) | دَ ملا صاحبؒ بابړه غزا | سنه ۱۹۱۴ء |
| (۷۱) | دَ سلام پور باچا صاحبؒ غزا | // |
| (۷۲) | دَ ترنګزو دَ حاجی صاحبؒ غزا | سنه ۱۹۱۶ء |
| (۷۳) | دَ پیونده ملا صاحبؒ غزا | سنه ۱۹۲۱ء |
| (۷۴) | دَ پیونده ملا صاحبؒ غزا | سنه ۱۹۲۳ء |
| (۷۵) | دَ پیونده ملا صاحبؒ غزا | // |
| (۷۶) | دَ پیونده ملا صاحبؒ غزا | سنه ۱۹۲۸ء |
| (۷۷) | دَ علینګار فقیر غزا | سنه ۱۹۳۳ء |
| (۷۸) | دَ حاجی صاحب ترنګزي غزا | سنه ۱۹۳۴ء |

# درېم باب (۳)

## دَ

# کوهاټ او خیبر

## دَ

## آفریدي قوم غرآکاڼي

# دَ کوهاټ او خیبر غزاګانې

دَ آفریدو قوم دَ کوهاټ او خیبر په علاقو کښې پروت دے. په نورو لفظونو کښې دَ دریائے کابل ترمنځه دَ تیراه په زمکه پروت دے. تیراه یو لوئ ملک دے. دَ دے ملک په نیمه حصه کښې جنوب طرف ته اورکزی او په نیمه شمالی حصه کښې آفریدی پراته دی. دَ آفریدو څه حصه خلق دَ دره کوهاټ نه شمالی طرف ته ترلرے حده پورے دَ کوهاټ او پېښور ضلعو ترمنځه غرباندے دَ خټک قوم په علاقه کښې دَ چراټ تر علاقے پورے پراته دی. انګریزانو چه دَ تیراه په نیمه حصه (علاقه اورکزائی) کومے حملے کړے وے. دَ هغے ذکر مونږ ه دَ کرم ایجنسئ دَ غزاګانو په سلسله کښې اوکړلو. دلته دَ هغه غزاګانو او جنګونو تذکره کوؤ چه هغه دَ آفریدو په علاقو باندے دَ خیبر او کوهاټ. بازار او جاناکور ترمنځه علاقو کښې دَ سنه ۱۸۳۹ء نه تر سنه ۱۹۳۳ء پورے په تیر وشوو (۹۴) کاله زمانه کښې شوے دے.

دراندے چه دَ انګریزانو په خلاف دَ آفریدو دَ غزاګانو یاد آفریدو، اورکزو په خلاف دَ فوجی حملو کوم فهرست درج کړیدے. په هغے کښې فقط (۱۳) پوره پیشت انګریزی فوجی حملو مونه لیکلی شوی دی. مونږ دوستو دَ بعض داسے حملو بیان به هم په اختصار سره اوکړو چه څومونږه په دغه فهرست کښې دَ هغے نوم نه دے راغلے.

هرکله چه دَ آفریدی قوم علاقه دَ نورو قبائلو پښتنو قبائلو په مقابله کښې مرکزی مقام پېښور ښهرته زیات نژدے آباد دی. او بله دا چه دَ انګریزانو مقابله دَ قبیلونه اول په سنه ۱۸۳۹ء کښې چه لا سکهان په دے ملک کښې موجود وو) دَ دے قوم سره راغلے ده. په دے

ځکه د آفریدی قوم او د دوی د علاقې تعارف او پیژندګلو کول مناسب معلومیږی۔

د آفریدی قوم اته ښاخونه دی چه نومونه یې دا دی۔ کوکی خیل، ملک دین خیل، قمبر خیل، زخاخیل، قمرے، سپاه، اکاخیل، آدم خیل۔ په دوی کښې آدم خیل په دره کوهاټ او د هغې نه په نور ختیزه حصه کښې اوسیږی۔ او په سیاسی طور سره د ضلع پیښور د ډپټی کمشنر سره تعلق لری۔ باقی پاتې نور ټے قبیلې په خیبر ایجنسۍ کښې آباد دی۔ او سیاسی تعلق یې د خیبر ایجنسۍ د پولیټیکل ایجنټ سره دے۔ په خیبر ایجنسۍ کښې د ورسره درې نور قومونه هم آباد دی چه نومونه یې دا دی۔ ملاګوری۔ شلمانی۔ شنواری۔ د دې قوم مشهورے علاقې دا دی۔ هر کله چه روستو د غزاګانو په بحث کښې د دے علاقو نومونه راځی۔ په دے وجه پیژندل یې ضروری دی۔

(۱) خیبر۔ دا د غرونو یوه سلسله ده چه د جمرود نه د تورخم پورے غزیدلې ده۔

(۲) وادی میدان۔ چه د تیراه دوه توئ نومے خوړ نه د څلمنی د علاقې پورے او پر ده میدانی علاقه ده۔ شمال طرف ته یې د راجګل علاقه ده۔ مغرب طرف ته یې څلمنی پراته دی۔ جنوب طرف ته یې تورغر دے۔ مشرق طرف ته یې د وادی باړه علاقه ده۔ زیاتے غزاګانې په تورغر شوی دی۔

(۳) وادی بازار۔ د دے وادئ نه د چار چاپیره علاقو نومونه دا دی:۔

(۱) سورغر (۲) منګل باغ کنډو (۳) ساسوبی کنډو (۴) الیچغر

(۴) وادی باړا۔ دا یوه لویه وادی ده چه د دریاب باړه په دواړه

غارو باندے دَ ماماٰنئ او دوه طوئ پورے غزیدلے دَه۔

**وادئ راجګل** دا یوه لویه او خوبصورته وادی ده چه دَ دوه طوئ نالے په دواړه طرفه دَ متوغر پورے غزیدلے دَه. دَ متوغر اوچت سر [۱۱۴۲۱] فټه لوړ دے. او دَ کوه سفید دَ تولونه زیات اوچت سر دے

**دریائے کابل** دَ کابل سیند شی الاسته هغه علاقه چه دَ دے سیند نه دَ خیبر دَ کنډ دَ طورسپر او سپینه سوکه پورے رسیدلے دَه. هغه موټره په وادئ دریائے کابل نامه یادیږی شو۔ چه دلته دَ ملا کوری. شمالی او شنواری قبیلو خلق پراته دی.

په دے ټولو علاقو کښے وادی میدان زیاته اهمه علاقه ده ـ نیم څو لیشت میله اوږده. اته میله پلنه او دَ سطح سمندر نه د ۷۰۰۰ شپږ زره فټه اوچته ده. دَ وادی میدان په باغ نومے ځائے کښے مشهور جامع مسجد دے چه دَ ټول قام دَ جرګے ځای دے. او د اکثرو غزاګانو دَ پاره قومی جرګے دلته شوے دی.

دَ آفریدو دغه اته واړه قبیلے چه په کومه کومه علاقه پرتے دی. دلته دَ هغے بیان په اختصار سره مناسب معلومیږی. دَ پاره دَ دے چه انګریزانو په کومو کومو علاقو او قبیلو باندے حملے کړے دی. چه دَ هغے په پوهه کښے آسانتیا حاصله شی. او دا هم معلومه شی چه انګریزانو په کومو کومو لارو په آفریدو حملے کړے وے.

**کوکی خیل** دَ ۱۹۵۱ء دَ مردم شمارئ دَ اندازے له مخه دَ دے قوم تعداد ۳۲۰۴۲ ښودلے شوے دے. دا بیان دَ تاریخ آزاد پټهان صفحه ۱۳۹ دے. لیکن په کومه زمانه چه دَ انګریزانو او دَ دے قوم ترمنځه جنګونه کیدل په هغه زمانه دَ تاریخ صولت افغانی

صفحه ۲۰۴ طبع سنه ۱۸۷۳ دَ بیان مطابق دَ کوکی خیل قبیلے تعداد دفقط شپږ زره وو. دَ دے تمام خلق دَ وادئ راجگل او وادئ بازار په یوه حصه کښے او په کوکی خیل دره کښے دلاله چینه او جمرود نه ترعلی مسجد پورے آباد دی دَ دے قبیلے خلق دَ افغانستان په سرحد باندے دَ کوه سفید او سلسله کوه مورغه باندے دَ افغانستان په سرحد باندے پراته دی. او انګریزانو چه په افغانستان باندے کومے مشهورے دَرے حملے کړے وے. دَ هغے اثر په دے تمام هم پریوتلے وو. او دوی هم پکښے حصه اخستے وه.

**ملک دین خیل** | دَ دے قوم خلق په وادی میدان، وادی چوره. وادئ کجوری کښے پراته دی. زیاته آبادی ئے په میدان کښے ده. دَ تاریخ آزاد پټهان صفحه ۱۳۶ دَ بیان مطابق په سنه ۱۹۵۱ کښے دَ دوی دَ مردم شماری اندازه ۳۷۰۲۱ وه. په خصوصیت سره دَ کجوری او چوره غزاګانے دَ دوی په علاقه کښے شوے دے.

**کمبر خیل** | دَ وادئ میدان په کاهو دره او ناله شنوبر سره سره آباد دی. دَ ژمی په موسم کښے وادئ کجوری او پېښور ته راکوزیږی. پنځه لوئ شاخونه ئے دی. متی خیل. بیبی خیل شیخ ملی خیل. دربی خیل. مت خاخیل په سنه ۱۸۶۱ کښے په مقام دَ کجوری دَ انګریزانو او دَ دوی ترمنځه جنګ شوے وو. دَ تاریخ آزاد پټهان دَ بیان مطابق په سنه ۱۹۵۱ کښے دَ دوی تعداد ۵۲،۸۸۰ وو.

**زخه خیل** | دا قبیله دَ خیل جغرافیائی او سیاسی حیثیت له مخه خاص اهمیت لری دَ پېښور نه کابل ته چه کومه لار تلے ده هغه دَ دے قبیلے دَ اقتدار لاندے ده. دا قوم په دا سے زمکه پروت دے چه کابل او پېښور ته یوشان په آسانه رسیدلے شی. په آفریدو

قبایلو کښې زیاته جنګجو قبیله دا ګڼل کېږي او د انګریزانو په خلاف زیاتې
غزاګانې هم د دوی په ذمه شوي دي. د ژمي په ورځو کښې ښکته
آوارې ته راکوزېږي د ننګل باغ نه چه کوم آفریدي قبایل ښکته
راکوزېږي د هغوی لار په دوی ده. د ۱۹۵۱ء د مردم شمارۍ له
مخه د دوی د تعداد اندازه ۲۳،۸۸۸ وه

**قمرخیل یا قمري**

دا یوه وړکوټې شان قبیله ده. د وادۍ باړه مغرب
طرف ته پرته ده. د دې قوم ډېر لږ خلق په ژمي
کښې د کجورۍ میدان ته راکوزېږي. د ۱۹۵۱ء د مردم شمارۍ له مخه
د دوی تعداد (۸،۸۶۳) ته نږدې اته سوه درې اویا تخمینه شوې وه.

**سپاه**

دا هم یوه وړه شان قبیله ده. په وادۍ بازار کښې آباده
ده. په ژمي کښې د کجورۍ میدان ته راکوزېږي. په علم ګودر
پراته وي. په علم ګودر کښې د وسلې جوړولو کارخانه هم لري. او د
سلیمي تنګي او وادۍ بازار په برید د افغانستان سره ښې پوله
لګېږي. د ۱۹۵۱ء د مردم شمارۍ له مخه د دوی تعداد د ۱۰،۰۹۰ اندازه
شوې ده.

**اکاخیل**

د آفریدو ولې قبیلې چه د انګریزانو سره لاسې زیاتې مقابلې
راغلې وې د هغې نوم اکاخیل دے. دا خلق د دریاب
باړه جنوب مشرقي حصه کښې آباد دي. د تاریخ آزاد پښتانه ښیا
مطابق په ۱۹۵۱ء کښې د دې قوم د تعداد اندازه ۱۱۵۴۳ نفره
وه. او د تاریخ صولت افغاني مؤلف په ۱۸۶۴ء کښې د دوی تعداد
شپږ زره ښودلے دے. او د دوی د ملا تړ (جنګجو افرادو تعداد ئې) پنځلس
سوه ښودلے دے (صفحه ۲۰۲ صولت افغاني) چه د دې قوم خلق په ژمي
کښې د دریاب باړه او درهٔ کوهاټ ترمنځه میداني علاقو ته راکوزېږي.

په سنه ۱۸۵۶ء کښې چه دَ دوی او انګریزانو ترمنځه کومه غزا شوې وه، دَ هغې بحث به روستو راشي. په مجموعي حیثیت سره دَ اکاخیلو برخلاف انګریزانو ډیر فوجي او سیاسي اقدامات کړي دي.

**آدم خیل** دَ دې قبیلې زیات تعداد په دره کوهاټ کښې آباد دې. صرف دَ دې قوم دوه قبیلې کالاخیل او جواکي دَ درهٔ خیبر سره سیاسي تعلق لري. دَ انګریزانو او دَ کالاخیل او جواکي ترمنځه چه کوم جنګونه شوي دي. دَ هغې ذکر به روستو راشي. په سنه ۱۹۵۱ء کښې صرف دَ تیراه دَ آدم خیلو دَ تعداد اندازه ۶۳۹۵ وه. او په سنه ۱۸۶۳ء کښې صرف دَ یوې قبیلې جواکي ۴۳ وو. په دې وجه دَ دې قبیلې دَ مردم شمارۍ صحیح تعداد نه دې معلوم.

**شنواري** شنواري یو لوی قوم دې په څلورو لویو قبیلو مشتمل دې چه په هغې کښې درې قبیلې په افغانستان کښې په سمت مشرقي کښې آباد دي. او یوه قبیله علي شیر خیل په خیبر کښې ده. په جغرافیائي لحاظ سره دَ پښتونو او کابل په برید باندې په لنډي کوتل پراته دي. دَ جنګونو لړې یې دَ دوی سره تعلق لري. په سنه ۱۹۵۱ء کښې دَ دوی دَ مردم شمارۍ اندازه ۱۲۰۶۶ لګولې شوې وه.

**شلماني** دَ دې قبیلې خلق دَ دریائې کابل په ښۍ غاړه په وادئ شلمان پراته دي. په سنه ۱۸۸۱ء کښې دَ دوی په علاقه کښې چه کومه غزا شوې وه هغه لویه تاریخي غزا وه په سنه ۱۹۵۱ء کښې دَ دوی مردم شمارۍ ۳۵۵۵ اندازه شوې وه.

**ملاګوري** دَ دې قبیلې خلق دَ شلماني قوم سره یوځاې پراته دي. تعداد یې ۲۴۸۰ اندازه شوې دې. په سنه ۱۸۵۴ء کښې چه دَ انګریزانو سره یې کومه غزا کړې ده دَ هغې بحث به روستو راشي.

دَ آفریدی قوم غازیانو چه دَ انګریزانو برخلاف کومے غزاګانے کړي دي. دا دَ هغه حملو په سلسله کښے وے چه انګریزانو په دے لاندے کلونو کښے دَ آفریدو په ملک کړے وے دَ انګریزي حملو دَ کالونو او تاریخونو فهرست دا دے.

سنه ۱۸۳۹ء. سنه ۱۸۵۰ء. سنه ۱۸۵۲ء /۵۳. سنه ۱۸۵۳ء. سنه ۱۸۵۴ء. سنه ۱۸۵۵ء. بیا سنه ۱۸۵۵ء. بیا سنه ۱۸۵۵ء. سنه ۱۸۵۴ء. سنه ۱۸۵۷ء. سنه ۱۸۶۵ء. بیا سنه ۱۸۶۸ء سنه ۱۸۶۹ء. سنه ۱۸۷۷ء. سنه ۱۸۷۹ء. بیا سنه ۱۸۷۹ء. سنه ۱۸۸۸ء سنه ۱۸۹۱ء. بیا سنه ۱۸۹۱ء بیا سنه ۱۸۹۱ء سنه ۱۸۹۷ء بیا سنه ۱۸۹۷ء بیا سنه ۱۸۹۷ء بیا سنه ۱۸۹۷ء سنه ۱۹۰۸ء. سنه ۱۹۰۹ء. سنه ۱۹۱۹ء. سنه ۱۹۲۳ء. سنه ۱۹۳۰ء /۳۱. سنه ۱۹۳۳ء پورے ۳۱ یو دیرش حملے او فوجي اقدامات شول چه انګریزانو کړي وو. او یو دیرش ۳۱ لوے غزاګانے شوے چه آفریدو او ورکزو کړے وے. په دے کښے دَ بعض غزاګانو حالات او واقعات مونږ دَ کرم ایجنسۍ دَ تذکره په ضمن کښے کړے دے. او دَ بعض نورو بیان به دلته او کړو او دَ بعض غزاګانو بیان به دَ اختصار په وجه پریږدو. ځکه چه ټول واقعات که په تفصیل سره بیا نول شروع کړو نو دَ هغے دَ پاره ځان له جدا کتاب پکار دے.

---

# دَلاله چینه غزا

په ۲۲ جولائی سنه ۱۸۳۹ کښې دَ شاه شجاع ځوئ تیمور او یو انګریز افسر کرنل ویډ (WADE) دَ دولس زره فوځ سره دَ خیبر په لاره کابل ته روان شه۔ او په خیبر ورننه وتلو۔ تر دغه وخت پورے آفریدو دَ جنګ کولو یا نه کولو څه فیصله نه وه کړے په دے وجه په غیر دَ سل دوه سوو کسانو نه عام آفریدو ئے څه مخالفت او نه کړ۔ بیا هم په ډیر مشکل سره دا فوځ په دوه ورځے کښے دَ جمرود نه کاګرئ ته اورسید ه۔ بیائے دلته روغه اونیغه لاره پریښوده۔ دَ لاله چینه په طرف روان شول۔ او دکوکی خیل آفریدو په علاقه کښے دَ علی مسجد په مقام چه دَ پښتنو کومه فوجی ځوکئ وه په هغے ئے حمله اوکړ له۔ کوکی خیل آفریدی ئے مقابلے ته را اووتل۔ نور آفریدی قبائل میدان ته نه وو را وتلی۔ بیا هم دوه ورځے جنګ اوشه۔ او چه دا رو مرد کے ورسره خلاص شول۔ نو غازیانو دَ علی مسجد ځوکئ خالی کړله۔ په دغے باندے دَ انګریزانو دَ لښکر نشه اوچته شوله مخ په وړاندے روان شول چه په دغه منځکښے کوکی خیلو آفریدو دَ لاله چینه په انګریزی کیمپ حمله اوکړله۔ او دفرنګی دَ فوځ نه ئے پوره څلور سوه فوځیان قتل کړل۔ دَ دغے نه روستو دَ فرنګی فوځ په ډیر بد حال په ډیره خواری دَ خیبر درے نه اووتلو۔ او کابل ته ئے مخه اوکړه چه شاه شجاع له کابل واخلی۔

په تاریخی اعتبار سره دا اولنئ غزا وه چه دَ خیبر په زمکه دَ انګریزانو خلاف شوے وه۔ او دَ جهاد و نو دَ دے سلسلے ابتدا ، دَ آفریدی قوم دَ کوکی خیلو بهادرانو شاه ځلمو کړے وه۔

# دَعلی مسجد غزا

دَ انګریزانو فوځ افغانستان ته دَ دے دَ پاره تلے وو۔ چه په کابل باندے دَ امیر دوست محمد خان په ځائی شاه شجاع بادشاه کړی۔ چه دغه مقصد ئے حاصل کړ۔ نو بیا دَ انګریزانو سفیر میکناټن او دغه پولیټکل افسر مسټر برنس خپله بادشاهی شروع کړله۔ او شاه شجاع ئے دَ نوم بادشاه وو۔ بیا انګریزی فوځونو په کابل کښے ظلمونه شروع کړل نتیجه ئے دا شوه چه دوه کاله پس ورته قام راپورته شه۔ انګریزی سفیر میکناټن ئے مړ کړ۔ مسټر برنس ئے اوژلو۔ شاه شجاع هم او وژلے شه۔

په ۲۲ نومبر سنه ۱۸۴۱ء دَ انګریزانو څلور زره سواره او دولس زره پیاده فوځ وسله کیښوده۔ سلامی شه۔ او هندوستان ته دَ واپس کیدلو دَ پاره رارَوان شه۔ دغه شپارس زره انګریزی فوځ کښے پنځلس زره فوځ په لاره باندے دَ کابل او جلال آباد ترمنځه دَ غازیانو دلاسه قتل شه۔ فقط یو زر فوځیان به ژوندی جلال آباد ته رارسیدلی وو۔ دَ مغوئ نه هم غازیان راچاپیره شول۔ راګیر ئے کړل۔ قلابند شول۔ دَ دغه قلابند فوځ دَ خلاصولو دَ پاره دَ پیښور دَ فوځی کیمپ نه نور فوځ په سنه ۱۸۴۲ء کښے دَ لیږلو فیصله او شوه۔ دا فوځ په جنوری سنه ۱۸۴۲ء کښے دَ دوه جرنیلانو ماتحت لیږلے شوے وو۔ چه دَ یو نوم وو جنرل موسلے (MOSELEY) او دَ دویم نوم وو کرنل ویلډ۔

دَ کرنل ویلډ په کمان کښے چه کوم فوځ وو۔ په هغے کښے سکهان هم وو۔ دَ کرنل ویلډ فوځ چه جمرود ته او رسیده نو دَ دغه ځائی نه نور مخ په وړاندے تللو نه ئے انکار او کړو خپل توپونه ئے کرنل ویلډ ته حواله کړل او واپس شول۔ دا سوال چه دَ سکهانو فوج دَ جمرود نه

ولے پیرته راواپس شه. دَدے وجه دَ سکهانو هغه کورنر چه په پېښور
مېښهر باندے حکمران وو. ابوطبيله [ اوے تے بائل ] نوم ئے وو. هغه
داسے بيان کړے دے. چه:

"سکهان په اصل کښے دَ آفریدیانو نه ډیر ویریدل.
دَ درهٔ خیبر نوم چه به ئے واوریده لرزان به پرے
راتللو. او داسے ویرے به واخیستل چه هسے به ئے
خیبر طرف ته مخ شه نو هم دَ باد کولے (درد قولنج) به پرے راتللو."

یوخواته دَ کرنل ویډ دَ فوځ دا حال وو. اوبل خواته په ۱۵ رجنوری
سنه ۱۸۴۲ء باندے کرنل موسلے نوم فرنگی داسے دَ اقتدار په نشه مست
وو. چه دَ کرنل ویډ دَ فوځ انتظار ئے هم اونه کړ. په درهٔ خیبر ورننوتلو
اوعلی مسجد ته اورسیده. چه څه وخت دَ دغے نه آفریدی خبر شول.
نومقابلے ته راووتل. او جنګ شروع شه.

دَ بل خوانه ورپسے دَ کرنل ویډ په کمان کښے انګریزی فوځونو دَ جمرود
نه اقدام شروع کړ. آفریدی غازیان هغه ته هم راوړاندے شول مخه
ئے ورله اونیوله. یوخوا ئے دَ کرنل موسلے دَ فوځ سره جنګ کولو. اوبل
خوائے کرنل ویډ مخکښے تللو ته نه پریښوده په دے شان سره دَ انګریزانو
دواړه فوځونه دَ یوبل سره نه شول یوځائے کیدلے چه دَ یوبل امداد اوکړی
او په یو قسم له دَ کرنل موسلے سره چه کوم انګریزی فوځ وو. هغه په
محاصره کښے راغے. نتیجه ئے دا شوه چه دَ کرنل ویډ په کمان کښے چه
کوم انګریزی فوځ وو. هغه ته ډیر لوئ نقصان اورسیده. مات کوروالس
جمرود ته راغے. او بل خوا دَ کرنل موسلے په کمان کښے چه کوم انګریزی فوځ
وو. هغه په علی مسجد کښے تلابند شه. دَ دغے نه پس دَ دواړه طرفه نه
په یوبل دَ حملو سلسله جاری وه. آفریدی وغازیانو پرے خپل ایمان تازه

کړ۔ آخر دا چه دَ کرنل موسلے وارخطا شه۔ دَ مخکینیے تللو طاقت ئے نه لرلو۔ دَځان دَ خلاصولو په فکر شه۔ په ۲۴ رجنوری ۱۹۴۲ سنه دَ علی مسجد نه ئے فوځ را او ښکلو۔ دیته ئے نه کتل چه فوځ مری که پاتے کیږی۔ په زغا ښت رار وان شه جمرود ته ئے مخه او نیوله فوځ ئے چه څه په لاره دَ غازیانو دَ کولو۔ تور و او پیش قبضو خوراک شه۔ هغه تباه شه۔ او چه څه ژوندی پاتے وو۔ هغه ژوبل۔ په بد حال۔ بد او رځ جمرود ته را اورسیدل۔

دَ انګریزانو کوم فوځ چه په جلال آباد کښے ګیر شوی او قلا بند شوی فوځ دَ خلاصی دَ پاره روان وو۔ هر کله چه په خیبر کښے دا غمناکه حادثه درپیښه شوله نو حالات ورته نور هم خراب معلوم شول۔ او فکر ئے او کړ چه که په دے غلی پاتے شی۔ قیصه نوره هم خرابیږی۔ چنانچه تیار ے ئے شروع کړ۔ دوه میاشتے ئے دَ نوی سرنه په فوځی تیاری کښے تیرے کړلے ځکه چه انګریزانو ته لویه کشاله دا پیښه شوے وه چه څه وخت دَ سکهانو فوځ انکاری شوے وو۔ او دَ جمرود نه راوالپس شوے وو۔ څه په هغے او څه دَ علی مسجد په مقام دَ کرنل موسلے دَ شکست خوړلو په وجه سپاهیانو دَ خیبر په لاره دَ کابل تللو ته غاړه نه کینبوده۔ دَ خیبر او آفریدو دَ نوم نه ئے ویره کیدله۔ آخر دا چه پوره دوه میاشتے په ډیر کوشش سره یو لوئی مضبوط فوځ ئے برابر کړ۔ او په ۲ راپریل ۱۸۴۲ سنه باندے دا نوے فوځ یو ځل بیا دَ خیبر په لور روان شه۔

په تاریخی اعتبار سره دا په هم دغه یو کال ۱۸۴۲ سنه کښے په خیبر باندے دَ انګریزانو دوېمه حمله وه۔ اولنئ په جنوری ۱۸۴۲ سنه کښے او دوېمه په اپریل ۱۸۴۲ سنه کښے۔

په ۲ راپریل ۱۸۴۲ سنه باندے یو ډیر لوئی فوځ دَ ډیر لوئی او درونډ جنګی ساز او سامان سره دَ جنرل پولک په کمان کښے دَ مخکښے تګ کابل

ته دَ رسیدلو او دَ آفریدو نه دَ ځنګینې جګړې دَ بدل اخیستلو دَ پاره دَ پېښور دَ فوځي کیمپ نه روان شه. بل خوا ته آفریدي هم دَ دې نوې حملې دَ مقابلې دَ پاره تیار وو. اګرچه جنګي ساز و سامان ئې نه لرلو. دَ هغوئ وسله فقط چقماقي ټوپکونه او پېش قبضې وې. لیکن دَ جهاد جذبه او دَ وطن دَ حفاظت ولوله داسې خبره وه چه هغوئ پرې دَ سر او مال قربانولو نه دریغ نه کولو. په یو یو قدم او یوه یوه انچه زمکه ئې دَ فرنګي لښکرې پرې کړې او خپلې وینې ئې پرې توئ کړې. دَ انګریزانو لښکر په زور کېږې وو. مخ په وړاندې تللو او دغه دېرش میله دَ خیبر دره ئې په لسو ورځو کښې لنډه کړه. په ۱۵ اپریل په ډېره خوارو دَ لنډي کوتل نه واوړیدل. او په جلال آباد کښې دَ قلابند انګریزي فوج امداد له ئې ځان رسولو تکل اوکړ.

# دَ خیبر درېیمه غزا

په اپریل سنه ۱۸۴۳ء کښې چه دَ انګریزانو کوم فوج کابل ته تلې وو. هلته داسې حالات پیدا شول او انګریزي فوځونو ته داسې مشکلات پېښ شول چه هغه یو جدا بحث غواړي. لنډه دا چه دَ سنه ۱۸۴۳ء په آخر کښې انګریزان یو ځل بیا مجبور شول چه دَ افغانستان نه خپل فوځونه اوباسي. دغه فوځونه چه په واپسئ کښې بیا په دره خیبر رانوتل نو آفریدو غازیانو پرې باندې بیا لاس پورې کړ. انګریزانو دا لښکر په درې حصو کښې تقسیم کړ. یوه یوه حصه به ئې په دره خیبر راچوله. غرض ئې دا وو چه دَ فوځ کومه حصه وړاندې روانه وي چه دَ شا طرف نه بله حصه ئې امداد کوي. او چه آفریدي غازیان ئې په ګېره کښې اخلي چه هغه ګېره ماتوي. په دې جوړ چه دَ انګریزانو دَ

فوځ یوه حصه په ۳۰ نومبر ۱۸۹۳ء باندے دَ لنډی خانه ځنې را روان شوے وو۔ هغه په ډیرو تکلیفونو او مصیبتونو ځان علی مسجد ته را رسولے وو۔ آفریدو غازیانو ورسره قدم په قدم مقابله اوکړله۔ او خپله خوا ئے پرے سره کړله۔ چنانچه په دے جوړ تباهئ او تالا کیدلو مړکیدلو ژوبل کیدلو سره چه دَ انګریزانو دا فوځ دَ خیبر نه را اوتلو نو هیله ئے دَ اطمینان ساه واخیستله۔ یو انګریز افسر چه پخپله په دے لښکر کښے موجود وو۔ او دَ خپلے خوش قسمتئ نه دَ مرګ نه بچ شوے وو۔ هغه خپل دَ سترګو لیدلے حال داسے بیان کړے دے۔ لیکلی ئے دی۔

"درهٔ خیبر ته چه انګریزی فوځ داخل شه یو قبائلو پرے ګولئ وروله دَ فونګی دَ فوځ په سامان به ئے په زړګورتیا سے حملے کولے۔ او په ډیره تیزئ سره به ئے دَ فوځ مال۔ اسباب۔ اوښان تښتول ........ دَ غازیانو (آفریدو) ډلے به دَ غرونو په زوړ و سو کښے ډیر په بهادرئ را کوزیدلے۔ او دَ انګریزی فوځ په شاطوف ته په فوځیانو به ئے حملے کولے۔ په هر یو غابنی او کنډ وکښے دَ سختونه سخته مقابلے وے۔ په انګریزی فوځ دَ دے زړور فوځ دَ کامیابو حملو دَ دے نه پته لګیدله۔ چه پخپله ځمونږه په فوځئ دستواد کوے فوځئ دستے چه زمونږ نه په قدم کښے وړاندے وے۔ دَ هغوئ نه فوځی ساز و سامان بیا دوئ اخیستے وو۔ ځائ په ځائ به دَ ټوپکو او کالتوسونو بکسونه خالی پراته وو۔ او سامان به توریه افرید و وړے وو۔ ځائ په ځائ اوښان به پراته وو۔ څه مړه

اوځه موګ ته نژدے اوځونږه د ملکرو د
انګریزی فوځ د فوځیانو د لاشونو نه د خیبر
توله لاره ډکه پرته ده۔"

هم دا فوځی افسر علی مسجد ته د رارسیدلو نه روستو لیکی:۔

"علی مسجد ته چه را اورسیدلو۔ نو دلته
د جرنیل "مک کاس کل" د شکست نه خبر
شولو چه ځونږ د رارسیدلونه یو ه ورځ
مخکښے ئے وهل خوړلی دو۔ د هغه نه دوه
توپے اخیستے شوے وے۔ دوه فرنګی افسران
او نور ګنړ فوځیان ئے وژلی شوی وو۔ او
د میدان جنګ نه په تیښته بانده ئے پښے
اوکښلے وے۔"

(دی کالکشن آف فورا ئیرز سروس ان الیسٹ ازکیپٹن نیل (۱۸۲۵ء))
(بحواله تاریخ آزادپټهان ص۱۹۵ تا ۱۹۶)

---

## یادګیرنه

د خیبر او آفریدو په علاقه کښے چه د انګریزانو د فوځونو په خلاف د غزاګانو کوم واقعات مخکښے بیان شول۔ په تاریخی اعتبار سره دغه د انګریزانو په خلاف د غزاګانو اولنے دور کنړل پکاردی. ځکه چه په دغه زمانه (د ۱۸۳۹ء نه تر ۱۸۴۳ء) پورے موده کښے لا د خیبر نه نمرخاته طرف وادی پېښور وغیره علاقو بانده لا د سکهانو بادشاهی وه او د انګریزانو اقتدار په دے ملک بانده لا نه وو راغلے لکه چه مخکښے د سکهانو په خلاف د غزاګانو په باب

کښې درته اشاره شوې ده. په دې علاقه باندې د انګریزانو قبضه اود ۱۸۴۹ سنه نه روستو راغلې وه. په دا سې ورځو کښې چه لا په دې ملک د سکهانو بادشاهي وه. په خیبر باندې چه انګریزي فوځونو حمله کوله یا انګریزي فوځونه کابل ته تلل د هغې چه کوم تاریخي پس منظر دې. د هغې بعض اهم تاریخي معلومات دلته درج کول پکار دي. د دغې نه به دا معلومه شي. چه

(الف) په وادئ پېښور د انګریزانو د قبضې تاریخي پس منظر څه وو.

(ب) په خیبر د انګریزانو د حملو اولینې دور نه روستو دویم دور کله شروع شو.

واقعات دادي چه د احمد شاه ابدالي د ځوئ امیر کابل تیمورشاه د وفات نه روستو د هغه ځوئ زمان شاه بادشاه شوې وو. ورپسې شاه محمود بادشاه شوې وو. په سنه ۱۸۰۳ء کښې د تیمورشاه دریم ځوئ شجاع الملک چه په شاه شجاع نامه مشهور دې حمله اوکړه. کابل ئې د شاه محمود نه اونیولو. په سنه ۱۸۰۸ء کښې آنریبل مونټ سیوورټ الفنسټن کابل ته لاړ. او د ایران او فرانس په خلاف ئې د شاه شجاع سره یوه معاهده لاس لیک کړه. د دغه معاهدې په وجه د انګریزانو او شاه شجاع ترمنځه تعلق پیدا شه چه دغه ناپاکه تعلق بیا روستو په پېښور او کابل دواړو تباهي راوستله. په سنه ۱۸۱۶ء کښې د سردار فتح خان بارکزي په امداد شاه محمود بیا دوباره د کابل بادشاه شه. او شاه شجاع پنجاب ته راغې په لدهیانه کښې د انګریزانو په سوري کښې کیناست. په سنه ۱۸۱۸ء کښې د شاه محمود د لاس نه وزیر فتح خان بارکزای قتل شه. د وزیر فتح خان نولس ۱۹ رونړه نور وو. ټول راپورته شول امیر دوست محمد خان پکښې توریالې ځوان وو. هغه را وړاندې شه ټول افغانستان ئې د شاه محمود نه اونیولو. په

کابل بادشاه شه. شاه محمود لاړ په هرات کښې پناه گزین شه. په ۱۸۳۲ء کښې شاه شجاع د مهاراجه رنجیت سنګه سره معاهده اوکړله. دا معاهده په تاریخ کښې انتهائي ذلیله معاهده بللې شی. د دے معاهدے مطابق شاه شجاع د خپل ځان او خپلو وارثانو د طرف نه د رنجیت سنګه په حق کښې د کشمیر د قطب قبیلے او سویل د سرحد ونو سره په شمول د قلعه اټک چچ. هزاره. کیا. کبل. امب او د دے سره هغه ټولے متعلقه علاقے چه د اباسیند په ښئ غاړه او چپ غاړه واقع دی سره د یوسفزو. خټک. هشتنغر. پېښور. میچنئ. کوهاټ. هنګو او هغه ټولے علاقے چه د پېښور ماتحت ګڼړلے شی. ان تر درهٔ خیبر. بنوں. وزیرستان دوړ. ټانک. کرک. کالا باغ. خوشحال ګړه. کوټ مټن. عمرکوټ او د هغے لاندے علاقے سنګوړ. هرنړ. دیبل پور. حاجی پور او د کچه درے واړه علاقے سره د سنګړا و ملحقه علاقو د ملتان صوبه د دریاے سنده په کسه غاړه دا ټولے علاقے په د رنجیت سنګه ملکیت او ماتحت ګڼړلے شی:

دا هغه شرمناکه معاهده وه چه د دے په وجه رنجیت سنګه د دیره جات. هزاره او پېښور په علاقو پړله پسے خپله قبضه مضبوطه کړله. شاه شجاع دا ذلیله معاهده په دے خیال کړے وه چه د انګریزانو او سکهانو په امداد به دوباره د کابل بادشاهی حاصله کړی. د دے معاهدے نه پس د سنده په لاره باندے قندهار ته لاړ. قبضه ئے کړ. لیکن امیر دوست محمد خان پرے راغے د کابل نه ئے را او زغلولو. د کشمیر. پنجاب. سنده. پېښور د علاقو واک هم ترینه لاړ. کابل هم په لاس ورنه رغے. بیا په لدهیانه کښې انګریزانو ته کیناست. پخپله هم تباه شه. پښتانه او د پښتنو

ملک ئے هم تباه کړ.

که فکر اوکړے شي. سکهانو هسے هم د ۱۸۱۸ء نه روستو په پیښور او هزاره او ورپسے نورو خواؤ شاعلاقو باندے تیامت جوړ کړے وو. لیکن په رسمی طور سره چه د شاه شجاع د دے معاهدے نه روستو سکهانو په دے ملک کوم ظلمونه کړی دی د هغے ټوله ذمه واری د شاه شجاع په خودغرضئ او بے حمیتئ باندے عائد کیږی. او په تاریخی اعتبار سره د شاه شجاع دا معاهده د انګریزانو او ګلاب سنګه د کشمیر د معاهدے نه هم زیاته شرمناکه ده. زیاته ذلیله ده.

په سنه ۱۸۳۸ء کښے روسیانو د ایران په شمال کښے چه آذربائیجان قبضه اوکړله د ایران په سیاست باندے ئے قابو راغلله. او عهدنامه ترکمان شاهی لاس لیک شوله. او ورسره ئے د ایران حکومت ته مشوره ورکړله. چه په هرات قبضه اوکړی.

په سنه ۱۸۳۸ء کښے چه د ایران فوځ راوخوزیده هرات ته نزدے راورسیده. نو د انګریزانو سره سودا پیدا شوله. د لارډ آکلینډ او کپتان برنس په مشرئ کښے ئے یو وفد کابل ته اولیږه چه امیر دوست محمد خان رضا کړی او د امیر موصوف او مهاراجه رنجیت سنګه ترمنځه صلح اوکړی. امیر دوست محمد خان د سکهانو سره د صلح د پاره دا شرط پیش کړ چه پیښور دے ماته پریږدی. انګریزانو دا نه شوه کولے چه د امیر کابل د پاره سکهان ناراضه کړی — چنانچه د لارډ آکلینډ مشن ناکام شه. او امیر دوست محمد خان د روسیانو سره خبرے اترے شروع کړلے. د انګریزانو سره ویره پیدا شوله چه په ایران کښے د روسیانو د اثر او اقتدار پیدا

کیدلونه دوستو که په افغانستان کښې ئې هم اثر او اقتدار پیدا شي نو دَ هندوستان حفاظت به گران شي. دَ دې خطرې په پیدا کیدلو په سنه ۱۸۳۸ء کښې دَ انگریزانو، سکهانو او شاه شجاع ترمنځه درې طاقتي معاهده اوشوله. انگریزانو فیصله اوکړه چه په کابل کښې دَ امیر دوست محمد خان بادشاهي ختم کړی. شاه شجاع بادشاه کړي چه دَ انگریزانو او سکهانو دواړو اعتبار او دَ لاس لاندې سړې دې. چنانچه دَ دغې درې طاقتي معاهدې نه پس چه په جون سنه ۱۸۳۸ء کښې شوې وه. په ۲۸ مئ سنه ۱۸۳۸ء کښې شاه شجاع په قندهار کښې په تخت کینولې شه. دَ انگریزانو فوځ کابل ته اورسیده. جنگونه اوشول. امیر دوست محمد خان گرفتار کړې شه. هندوستان ته اولیږلې شه. دَ هغې نه روستو دَ امیر دوست محمد خان ځوی سردار محمد اکبر خان راپورته شه. دَ انگریزانو فوځ ئې په سنه ۱۸۴۱ء کښې تباه کړ. څه لږ ډیر چه ژوندې پاتې وو. هغه په جلال آباد کښې قلا بند وو. او دَ دغه قلا بند فوځ دَ راخلاصولو دَ پاره دجنرل پولک په کمان کښې دَ انگریزانو فوځ په خیبر حمله کړې وه. چه مخکښې ئې بیان اوشولو.

په کوم وړځو کښې چه دَ جرنل پولوک په کمان کښې دَ فرنگیانو فوځونو دَ خیبر په لاره حمله کړې وه کابل ته تلی وو. نو هم په دغه وړځو کښې دَ جنرل لوټ په کمان کښې یو بل انگریزی فوځ دَ قندهار په لاره کابل ته تلونکې وو. او دغه دواړه فوځونه چه په سنه ۱۸۴۳ء کښې دَ خیبر په لاره راواپس کیدل نو هغه تباهي پرې دَ آفریدو دلاسه راغلې وه چه مخکښې بیان

شوله. امیر دوست محمد خان په فروري سنه ۱۸۴۳ء کښې د انګریزانو
د قید نه خلاص شه.

د سنه ۱۸۴۳ء نه تر سنه ۱۸۴۹ء پورې شپږ کاله زمانه انګریزان
او سکهان پخپل منځ کښې په جنګونو اخته وو. قبائلي علاقو ته
ئې وار نه وو برابر شوې. البته په سنه ۱۸۴۵ء کښې د خدوخیلو
په منځ دره ئې یوه حمله کړې وه. د ۹ مارچ سنه ۱۸۴۹ء نه
روستو چه د انګریزانو د لاسه د سکهانو اقتدار ختم شه.
او د سکهانو د ټول مقبوضه ملک د مهاراجه دلیپ سنګه
د معزولیدلو نه پس واک اختیار د انګریزانو لاس له راغې
نو په مقبوضه علاقو کښې ئې د ټول رعیت نه وسله ټوله کړله
چه بیا څوک شورش او نه کړي. (د په حواله د تاریخ مخزن پنجاب
جلد ۲ صفحه ۲۹۶) او د پېښور. بنوں. کوهاټ وغیره علاقو
په پوله چه کومې علاقې دي د دې قبائلو برخلاف ئې د حملو
یوه لویه سلسله شروع کړله. او په دغې کښې د ټولونه اولنۍ
حمله ئې په کوهاټ باندې کړې وه.

لکه چه مخکښې ورته اشاره اوشوه. د سنه ۱۸۴۹ء نه چه روستو
انګریزانو په قبائلي علاقو کومې حملې کړې دي او غازیانو ئې
مقابله کړې ده. دغه غزاګانې په تاریخي اعتبار سره د دویم
دور غزاګانې دي. او په دې کښې اولنۍ غزا د کوهاټ د آفریدو غزا ده.

## د کوهاټ د آفریدو غزا

په کوهاټ باندې د آفریدو په علاقه چه په سنه ۱۸۵۰ء کښې
انګریزانو کومه حمله کړې وه د دغې هم یوه خاص وجه وه. دا

واقعه دا سے پیښه شوے وه. چه هرکله په ۱۸۴۶ء کښے دَ سکهانو او انګریزانو ترمنځه دَ پنځه لویو جنګونو نه روستو سکهانو شکست اوخوړ او په دسمبر ۱۸۴۶ء کښے په مقام دَ لاهور پنجاب دا فیصله اوشوله چه مهاراجه به دلیپ سنګه وی. لیکن اختیارات به دَ انګریز ریزیډنټ په لاس وی. او په ټولو علاقو کښے به دَ لاهور دَ ریزیډنټ ما تحت اسسټنټ ریزیډنټان دَ سکهانو دَ فوځی او سول حکومت دَ نګرانئ دَ پاره مقررکیږی. او دَ دے فیصلے په خلاف په لاهور کښے پخپله دَ مهاراجه دلیپ سنګه مور رانی چندا پوره ته شوله. جنګ ئے اوکړنو دغه شان دَ سکهانو دَ حکومت په مختلفو علاقو کښے چه هرځومره سکهان افسران وو. هغوئ هم دَ دے فیصلے دَ منلو نه انکار اوکړ. او چه څه وخت انګریزان افسران په حیثیت دَ اسسټنټ ریزیډنټانو خپلو خپلو مقرره علاقو ته دَ چارج اخیستلو دَ پاره راغلل نو مقامی سکهانو افسرانو ورله قبضه نه ورکوله او دَ انګریزانو او سکهانو ترمنځه ځائ په ځائ جنګونه شروع شول. چنانچه په دغه زمانه په پرګنه هزاره سردار چتر سنګه اټاری والا سکه ګورنر وو. هغه دَ انګریز اسسټنټ ریزیډنټ په خلاف پورته شه او انګریز اسسټنټ ریزیډنټ ئے اوزغللو.

په پېښور بانډے په دغه ورځو کښے دَ سکهانو دَ طرف نه سردار ګلاب سنګه ګورنر وو. او دَ سردار چتر سنګه اټاری والا ځوئ چه سردار شیر سنګه اټاری والا نوم ئے وو. هغه فوځی جرنیل وو. هرکله چه سردار چتر سنګه حاکم هزاره په هزاره کښے دَ انګریزانو په خلاف او جنګیده. انګریز ریزیډنټ ئے اوزغلاوه. نو ورپسے

راروان شه پیښور ته راغے دلته دَ ده خوئ شیر سنګه فوجی جرنیل وو۔ هغه ئے راپورته کړ۔ دَ پیښور ګورنر سردار ګلاب سنګه او نور بے شمیره سکهان ئے دَ ځان سره ملګری کړل۔ او پیښور ته چه جارج لارنس نومے اسسټنټ ریزیډنټ راغلے وو۔ په هغه ئے حمله اوکړله او هغه ئے په مقام دَ پیښور ښهر ګرفتار کړ۔

دلته یوے تاریخی غلط بیانئ ته اشاره کول مناسب معلومیږی او هغه دا چه مسټر کیرو ځپل کتاب "دی پټهانز" کښے یوه لویه قصه دَ ځان نه جوړه کړے ده۔ لیکلی ئے دی چه په دغه ورځو کښے په کوهاټ باندے دَ سکهانو دَ طرف نه سردار سلطان محمد خان بارکزائ حکمران وو۔ څه وخت چه په جارج لارنس باندے په پیښور کښے سکهانو حمله اوکړله۔ نو مسټر جارج لارنس سره دَ ځپلے بنځے کوهاټ ته لاړ په دے خیال چه دَ سردار سلطان محمد خان سره به پناه حاصله کړی۔ ځکه چه څه موده وړاندے دَ جارج لارنس رور هنری لارنس په یوه موقع دَ سلطان محمد خان سره ښه کړی وو۔ او د سکهانو دَ قید نه ئے آزاد کړے وو۔ لیکن دغه نیکئ ته سردار سلطان محمد او نه کتل او چه څه وخت جارج لارنس کوهاټ ته اورسیده نو هغه ئے سره دَ بال بچ نه سکهانو ته حواله کړ۔ خبره دا ده چه مونږه دَ سردار سلطان محمد خان طرفداری نه کوؤ۔ لیکن واقعات دا دی چه دا الزام غلط دے۔ په دے سلسله کښے دَ مفتی غلام سرور لاهوری دَ کتاب "تاریخ مخزن پنجاب" بیان زیات مستند دے۔ دغه کتاب په ۱۸۷۳ء کښے چاپ شوے دے۔ او مصنف ئے ځپله چشم دید ګواه دے۔ دَ تاریخ مخزن پنجاب الفاظ دا دی:-

"سردار چتر سنگھ اٹاری والا نے باتفاق اپنے بیٹے سردار شیر سنگھ اور بہت سے دوسرے

سکھ سرداروں کے بے شمار سکھوں کو اپنے پاس جمع کیا۔ اور جارج لارنس صاحب وغیرہ انگریزوں کو جو پشاور میں تھے قید کر لیا۔" (تاریخ مخزن پنجاب جلد ۲ صفحہ ۴۹۵)

هر کله چه دَ دے بیان له مخه جارج لارنس په جنګ باندے دپینبور په مقام پخپله دَ سردار چتر سنګه په لاس ګرفتار شوے وو. نو بیا دَ سردار سلطان محمد خان دَ بدنامه ولو نه مطلب څه دے؟ او دا دومره تاریخی غلط بیانی ئے ولے کړے ده؟

دا خو په منځ کښے هسے خبره را غله. اصلی خبره دا وه چه په سنه ۱۸۵۰ء کښے انګریزانو دَ کوهاټ په آفریدو حمله ولے کړے وه. په دغے ځان پوهه کول وو. چنانچه زهٔ هم دغه خبره له را ځم.

تاریخ مخزن پنجاب جلد ۲ صفحه ۴۹۵ کښے مخکښے لیکی:-

"هر کله چه سکهانو دَ انګریزانو غداری اولیده. نو په امیر دوست محمد خان پسے ئے خبر اوکړ. هغه سره دَ خپل فوځ راغے. سکهان. (امیر دوست محمد خان او سردار سلطان محمد خان) ټول دَ انګریزانو په خلاف یو شول. دَ سنه ۱۸۴۸ء نه دَ جنګونو سلسله شروع شوه. بر له پسے څلور کاله لوئ جنګونه اوشول. چنانچه په دغه څلورو لویو جنګونو کښے یو جنګ دَ سنه ۱۸۵۰ء وو. چه دَ کوهاټ دَ آفریدو برخلاف شوے وو. ځکه چه دَ امیر دوست محمد خان په دے موجوده حملو کښے او دَ سردار سلطان محمد

خان په راپورته کیدلو کښې دَ کوهاټ آفریدو
خصوصًا دَ آدم خیل قبیلې دواړه بنا خونو
جوړکه او کار ډیره متصله اخیستې وه چنانچه
په سنه ۱۸۵۰ء کښې دَ پیښور دَ فوځی کیمپ نه
چه کوم فوځونه دَ کوهاټ په طرف دَ
درهٔ آدم خیل په لوری دَ حملې کولو دَ پاره
لیږلی وو۔ هغه یوه نه وه بلکه دوه حملې وې"۔

اولنۍ حمله

دَ انګریزی فوځونو اولنۍ حمله دَ کرنل سرسی کیمپبل المعروف
په لارډ کلایډ ی په کمان کښې وه دا حمله دَ آدم خیل آفریدو
په ذیلی بناخ کالاخیل (کلا) باندې شوې وه۔ بهادرو غازیانو
ئې ښه په زړه مقابله کړې وه۔ دَ دواړه طرفه جانی او مالی
نقصانونه پیښ شوی وو۔ او په اول ځل په کوهاټ باندې
دَ انګریزانو قبضه راغلې وه۔ او په کوهاټ باندې دَ سردار سلطان محمد
خان بارکزی ځوی خواجه محمد خان له ئې شکست ورکړې وو۔
او په دې جوړ په کوهاټ دَ سکهانو او بارکزو مشترکه حکمرانۍ
دَ دوران خاتمه ئې کړې وه۔

# دَ کوهاټ دَ آفریدو دویمه غزا

دَ کوهاټ دَ دې اولنۍ جنګ نه روستو هم په دغه سنه ۱۸۵۰ء
کښې دَ کوهاټ په آفرید و باندې دویمه حمله اوکړله۔ دَ دې حملې
حال چه زړدا دخان ناغر بخیل کتاب تاریخ صولت افغانی صفحه
۶۰۲ کښې څرنګ درج کړې دې دلته ئې درج کوؤ۔ لیکی :۔
"دَ کوهاټ په دره آدم خیل کښې دَ آفرید و آدم خیلو دَ ذیلی

بناخ (ګلا) یعنې کالاخیل خلق او سیږی. دا قوم دولس سوه ۱۲۰۰ جنګی ځوانان میدان ته را اوبسکلی شی (یعنې تقریبًا په شمار پنځه شپږ زره خلق دی) دَ ایمل خان مهمند دَ چبوترے نه دَ درهٔ آدم خیل سرحد شروع کیږی. دَ کوهاټ دَ غابنې پورے تقریبًا دولس میله فاصله ده. دَ غابنې پورے په دره کښې دَ ګلا آدم خیل قبیلے خلق اوسیږی. غابنې (کهاټ، کنډو) ته نزدے بنګښ اوسیږی دَ غابنې نه دَ کوهاټ ښهر پورے تقریبًا اوه میله لاړ ده. مګر توله کرچنه ده. هر کله چه په کوهاټ باندے انګریزا نو اولنی حمله اوکړه او کوهاټ ئې اونیولو. نو دَ درے او کوهاټ ترمنځه غابنې ئې اونیولو بند ئې کړ. دَ آفریدو تګ راتګ ئې بند کړ. او دَ دغے نه علاوه دَ کوهاټ او پیښور دوارو غارونه ئې په دره کوهاټ کښې دَ سړک په جوړولو لاس پورے کړ. په دے باندے آفریدی راپورته شول. او دَ جهاد میدان ته ئې را اوونګل.

په تاریخ ۲ رفروری سنه ۱۸۵۰ء دَ کوهاټ آفریدو حمله اوکړه. دَ کوهاټ نه درے میله لرے دَ کوهاټ او پیښور په سړک سپر مینا پلټن لګیا وه کار ئې کاوه آفریدی ئې پرے باندے وریږیوتل او دَ زرداد خان ناغری په الفاظو کښې، "کل سپاہیوں کو مقتول یا مجروح کیا" یعنې دَ سپر مینا دَ پلټنې ټول سپاهیان ئې مړه او ژوبل کړل.

په دغه ورځو کښې دَ پیښور دَ انګریزی فوځونو بریګیډیر او کمانډر انچیف سر چارلس نیپری نومے انګریز وو. هغه فوځ ته حکم اوکړه "کہ درهٔ کوہاٹ میں گھس جانا چاہئے" یعنې چه په دره کوهاټ دے فورًا حمله اوشی. زرداد خان ناغری لیکی. دَ دے نه دَ انګریزانو دوه غرضونه وو. یو دا چه په کوهاټ

کښې فوج واچولے شي ۔ او دویم دا چه آفریدو له سزا ورکړلے شي ۔
چنانچه په تاریخ ۱۰ رفرورۍ سنه ۱۸۵۰ء انګریزي فوځونو په دره کوهاټ
په آدم خیلو آفریدو حمله اوکړله ۔ دَ ۱۳ رفرورۍ پورے خونړۍ جنګونه
اوشول ۔ غازیانو قدم په قدم مقابله اوکړه ۔ دَ دښمن او خپلے
وینے ئے توۍ کړلے ۔ انګریزي فوځونه کوهاټ ته اورسیدل ۔ دکوهاټ
ښهر په لار وکوڅو کښې هم دَ انګریزي فوځونو مقابله اوشوه ۔ ښکښي
غازیان او آفریدي غازیان په مخ میدان کښې ښه په بهادرۍ
اوجنګیدل ۔ فرنګي په کوهاټ ښهر چه حمله ورورله دَ ښهر کورونه
او بازارونه ئے وران کړل ۔ په اور ئے اوسیزل انګریزانو په ښهر
قبضه اوکړه ۔ دا دَ ۱۳ رفرورۍ سنه ۱۸۵۰ء تاریخ وو ۔ دَ چارشنبې ورځ
وه او دَ ربیع الاول ۳۰ ر تاریخ وه او سنه ۱۲۶۶ھ کال وو ۔ انګریزانو په کوهاټ
کښې دوه رجمنټه فوځ واچولو یو دَ سورو او بل دَ پیاده وو ۔
په اپریل سنه ۱۸۵۰ء کښې آفریدو یوځل بیا دَ کوهاټ په انګریزي
فوځ حمله اوکړله ۔ او دَ پیاده فوځ یوه کمپنۍ ئے قتل کړله ۔ انګریزانو
جوابي اقدام اوکړ ۔ په غانښۍ ئے قبضه اوکړله او په کوهاټ
باندے ئے دَ آفریدو تګ راتګ بند کړ ۔ بل خوا ته دَ دره آدم خیل
دَ آفریدو او انګریزانو ترمنځه چه کومه معاهده شوے وه ۔ هغه
دَ کالاخیل آدم خیلو مشرانو په اپریل سنه ۱۸۴۹ء کښې کړے وه ۔ انګریزان
اوګڼیدل په دے خیال چه روزه دَ دوئی رو سره اوجنګوي دکلا آدم
خیلو سره ئے دَ هغه معاهدے ماتولو اعلان اوکړ ۔ او په اپریل
سنه ۱۸۵۰ء کښې ئے دَ آدم خیلو آفریدو دَ دویم شاخ جواکه مشران
راوغوښتل او دَ هغوئ سره ئے معاهده اوکړله ۔ چه جواکه قوم
انګریزانو ته د دره آدم خیل په لار باندے دَ پیښور او کوهاټ

ترنځه دَ ټک را ټاټ اجازت ورکوی. لیکن دا دَ فرنګی هسې کچه خیال
وو. چواګه آدم خیل دَ کلا آدم خیلو دَ رضا په خلاف دَ انګریزانو دَ
فریب په دام کښې ګیر نه شول. او دَ فرنګی برخلاف دَ ورو لویوحملو
سلسله بدستور جاری پاتې شوله.

# دَ کوهاټ دَ غاښی غزا

هرکله چه انګریزان دَ آفریدی تمام دَ آدم خیل قبیلې دَ دوه ښاخونو
کلا. چواګه پخپل منځ کښې جنګونو کښې کامیاب نه شول. نو بیائې یوه
بله فتنه رابرسیره کړه چه بنګښ او آفریدی پخپل کور کښې اوجنګوی.
دَ دې دَ پاره ئې دا یو قدم پورته کړ چه دَ دره او کوهاټ ترمنځه
چه کوم کنډو دې دَ کنډو نه دَ کوهاټ طرف ته اوګا میله وزغرئې
بنګښوته دَ ورکولو اعلان اوکړ او دَ کنډو دَ سرپورې دَ دره طرف
ته ئې دَ آفرید وحقداری او منله. مطلب ئې دا وو. چه کوهاټ ته
که آفریدی راځی نو لار به ئې په بنګښو وی. او پخپل منځ کښې به اخته
شی. په دې باندې کالاخیل آدم خیل آفریدی راپورته شول په
غاښی چه دَ فرنګی کومه څوکۍ وه هغه ئې او وهله. انګریزانو چه په
چل ول دَ بنګښ قوم کومې کېږې دَ غره اړخی ته راخیژولې وې. هغه
ئې اوزغلول. چه انګریزانو دَ بنګښو نه تپوس اوکړ. چه تاسو ولې تېښته
اوکړه. نو هغوئ جواب ورکړ. چه دَ آفریدو مقابله کول ګران کار
دې. بل دا چه دَ آدم خیلو آفریدو طاقت حمونږ نه زیات دې.
مونږ ئې مقابله نه شو کولې. بله دا چه دغه کنډو حمونږ ه موروثی
ملکیت هم نه دې. چه دَ انګریزانو زور دا سره نه وی مونږ ئې
چرته تېینګولې شو.

دا واقعات چه پیښیدل دا بیا دَ ۱۸۵۳ سنه ء زمانه وه۔ په دغه وړخو کښې په پېښور باندې سرجان لارنس چیف کمشنر وو۔ او کپتان کوک دَ کوهاټ ډپټي کمشنر وو۔ دغه دواړه چالاکه انګریزانو دَ دره آدم خیل دَ آفریدو دَ پاره مشکلات پیدا کړي وو۔

(الف) یو دا چه په نومبر ۱۸۵۳ ء کښې دَ آفریدي قوم دَ آدم خیل قبیلې په ذیلي ښاخ جواکه باندې حمله کړې وه۔ او دَ هغوئ مضبوط فوځي مقام بورۍ ئې سېزلې وو۔ او دَ جواکه قوم دوه مضبوطې قبیلې حسن خیل او آشو خیل ئې په جنګ وهلي وو۔

(ب) دویم دا چه دَ ښځو زمانې نه دَ آفریدو دَ یوې قبیلې سپاه خلق دَ ښتو په کونډۍ کښې دَ بنګښو ملګري وو۔ ځکه چه سپاه خلق ښځیله لږ خلق دي۔ دَ بنګښو کونډ سره شریک شوي وو ــ چه دَ سپاه او بنګښو دواړو ساعت پرې تېر شي۔ معرکله چه انګریزان دَ ۱۸۵۰ سنه نه تر دسمبر ۱۸۵۳ سنه پورې دَ آفریدو آدم خیلو دَ کلا قوم خلقو په وهلو کښې کامیاب نه شول۔ او بنګښ ئې منځ ته راوچول او هغه هم ناکام شول نو بیا دَ سپاه قوم آفریدي ئې دَ بنګښو امداد له راپورته کړل۔ او دُ کلا آدم خیلو مقابلې ته ئې سپاه آفریدي او بنګښ دواړه اودرول۔

(ج) بل خوا ته دَ انګریزانو هغه مضبوط فوځ چه په نومبر ۱۸۵۳ ئې کښې ئې دَ جواکه قوم خلق وهلي وو۔ او هغه دَ کوهاټ دَ درې په خوا وښا کښې پروت وو۔ دغه فوځ صلاح اوکړه چه دَ دواړه غاړو یعنې دَ پېښور او کوهاټ دَ طرفونو نه په دره باندې حمله پکار ده۔ حمله ئې اوکړه۔ خونړې جنګ اوشه۔ او دَ انګریزي فوځ تباهي پکښې اوشوله۔

په دا سې حالاتو کښې په نومبر ۱۸۵۳ء کښې انګریزانو دَ کوهاټ
په غاښې حمله اوکړه ـ او دَ کلا آدم خیلو امداد له خپل دو نړه جوګه
په پوره طاقت دا او نه رسیدل ځکه چه هغوئ وړاندې وهلې
شوې وو۔ او په دغه وړخو کښې لا هغه شان دَ هغوئ په زمکه
هم جنګ وو۔ او بل خوا بنګښ او سپاه دَ فرنګی دَ طرف نه
جنګیدل۔ او بل خوا دَ بنګښو په امداد کښې دَ اورکزو دَ علاقې
نه دفیروزخیل او بیزوټي قوم خلق هم را غلې وو۔ بد قسمتي دا
وه چه دغه جنګ چه خالص دَ انګریزانو او آفرید و جنګ وو.
بنګښو۔ سپاه۔ بیزوټي او فیروزخیلو ورله دَ بنګښ او آفریدي
ترمنځه دَ پولې او جایئې او دَ جنګ شکل ورکړ۔ او فائده ئې
فرنګی ته اوګټله۔

هرکله چه آفریدي په دې پوهه شول چه انګریز په ځائې
پاتې شه او جنګ دَ خپلو بنګښو او سپاه۔ فیروزخیل۔ بیزوټي
قامي خلقو سره شروع شه نو هوښیار تیاسې اوکړه او دکوهاټ
دَ کنډ و نه جنوب غاړې ته او ګه میله عزر دَ ملکیت دَ دعوې نه
دست بردار شه په هغې دَ بنګښو دعوئ او منله۔ بنګښو دَ
ځان سره سپاه آفریدي شامل کړل۔ دَ دې کلا آدم خیلو دَ
کوهاټ غاښې په مقام په دسمبر ۱۸۵۳ء کښې یوه معاهده اوکړله۔
ورپسې شپږ ورځې پس دَ آفریدي قوم دَ سپاه قبیلې ملکانو دَ
مسټر کوک ډپټي کمشنر کوهاټ سره معاهده اوکړله۔ او په دې
شان سره دَ بنګښو۔ فیروزخیلو۔ بیزوټو په امداد دَ غاښې نه تر
کوهاټه پورې دَ سړک جوړولو کار شروع شه ـــ دَ غاښې نه دَ پېښور
په طرف دَ دې په منځ کښې دَ سړک جوړولو کار دَ هغې کشاله

موجود وه. ځکه چه که کلا آدم خیل صلاح شول. اکاخیل آفریدي پرے نه وو صلاح شوی. او دا کشاله نوره هم اوږدیده نو جنګونه هم پرے اوشول.

# دَبورې غزا

مختکښے دا ذکر شوید ے چه انګریزانو دَکوهاټ په غابښي دَ قبضے کولو او د کلا آدم خیلو دَ کمزوری کولو دَ پاره دَ آدم خیلو په جواکه نومے شاخ باندے هم په ۱۸۵۳ء کښے حمله کړے وه.

دَ دے واقعے وضاحت دا سے دے. چه دَ کوهاټ علاقے ته دَ پیښور نه دَ تللو دَ پاره دوه ۲ درے دی. یوه ۱ کوهاټ دره ده. او دویمه دَ جواکه دره ده. په جواکه دره کښے دَ آفریدو دَ آدم خیلو قبیلے دَ جواکه نومے شاخ خلق آباد دی. دَ جواکه دره په لاره کښے دَ پیښور دَطرف نه چه کوم کنړو داځی دَ هغے نوم جانا کوړ [جانا ګهوره] دے. دَ غره په لمن کښے دَحسن خیل قبیلے خلق پراته دی. او پورته دَ غره په نورو دړو کښے دَ آشوخیل وغیره آدم خیل قام دَ مختلفو خیلونو خلق آباد دے. دَ جانا کوړ یا جواکه دره په علاقه کښے بورې نومے یو مقام دے چه دَسکهانو په زمانه کښے دَ غازیانو لوئ مرکز وو. او دَ دغه ځائ نه به دَ اټک او پیښور ترمنځه دَ سکهانو په فوځونو دَ غزا کانو کولو دپاره فوځ مهمو نه لیږلے شول. چونکه دا مقام دَ درے په خُله کښے واقع دے او په فوځی او جنګی نقطه نظر سره زیات محفوظ مقام دے. په دغه وجه هرکله چه انګریزانو دَ سکهانو نه پیښور او نیولو او بیا ئے دَ کوهاټ علاقه هم

والاندے کوُله نو څرنګ چه دَ درهٔ کوهاټ لاره اوګنډو قبضه کوُل ضروری وو. دغه شان دَ درهٔ جواکه قبضه ئے هم ضروری ګنړله. په جواکه درہ باندے قبضه په دوه وجهے ضروری وه یوه داچه دَ درهٔ کوهاټ دَ قبضے دَ پاره چه کوم جنګ کوُلے شی. په هغے کښے به په انګریزی فوځونو دباؤ کم شی. بله داچه درهٔ جواکه قبضه شی نو دَ کوهاټ منځ علاقے ته او دَ ختکو منځ علاقے ته رسیدل به آسان شی.

چنانچه دَ دے قسم وجوهاتو له مخه په نومبر ۱۸۵۳ء کښے دَ سرجان لارنس چیف کمشنر پیښور په کمان کښے دَ انګریزانو یو مضبوط فوځ دَ ډیر لوئ فوجي ساز او سامان سره په درهٔ جواکه باندے دَ حملے دَ پاره روان شه. دَ درهٔ جواکه او درهٔ کوهاټ ترمنځه دَ شیرکیره او کوهدامن په علاقه کښے ئے کیمپ اولګولو. دَ حسن خیل قبیلے نهه ۹۰۰ سوه حملوا او دَ آشوخیل قبیلے اته ۸۰۰ سوه حملوغازیانو ورسره دَ ګنډو په مقام جنګ اوکړ. تورے ئے اوهلے. لیکن چرته دَ یونیم زرغازیانو یو موټے تش لاسے لښکر او چرته دَ انګریزانو بے حسابه وسله بند لښکر. نتیجه ئے دا شوه چه ۱۵ نومبر ۱۸۵۳ء حسن خیل او آشوخیل اوهلے شول. او دانګریزانو فوځونه په پوری باندے دَ حملے دَ پاره په درهٔ جواکه ورداوختل. اوخونړے جنګ شروع شه.

زرداد خان ناغرچه دَ دے جنګ بیان په کوموالفاظو کړے دے هغه دادی:-

یہاں کی لڑائی بہت مشکل تھی۔ اور بباعث خاصہ زمین کے انگریزی فوجوں کا بہت نقصان ہوا۔ مگر گھاٹوں اور اس کے تمام برجوں کو مسمار کر دیا گیا۔ اور طویل مقابلے کے بعد

جہاں جہاں جواکی مقیم تھے ان کو نکال دیا گیا۔ اور مرکزی مقام بوڑتی کو مسمار کرنے سے جو مراد تھی وہ حاصل ہوئی۔ یہ لڑائی دو مہینے جاری رہی۔"

یعنې دَ درهٔ جواکه جنګ ډیر سخت وو. دَ دے درے محل وقوع او جنګی پوزیشن داسے دے چه په قدم قدم انګریزی فوځونه په تباهی کښے ګیر یدل. دَ فرنګی ډیر فوځونه تباه شول. مګر دَ جواکه قوم آباد کلی. قلا ګانے او برجونه وران کړے شول. دَ ډیرے او بډدے مقابلے نه روستو چه چرته چرته جواکی آباد وو. دَ هغه کلونه او بنیکلے شول. او دَ جواکه علاقے دَ مرکزی مقام بوړتی دَ ورانولو نه چه کوم غرض وو. هغه پوره شه. دا جنګ چه په ۱۵ ار نومبر ۱۸۵۳ء شروع شوے وو. دوه میاشتے تر ۱۴ ار جنوری ۱۸۵۴ء پورے جاری وو.

مخکښے موږه دا ذکر کړے دے. چه په درهٔ جواکه باندے حمله دَ دے غرض دَ پاره شوے وه چه دَ آدم خیلو آفریدو دَ جواکه قوم بچیل ځان شی نو دَ آدم خیلو آفریدو دَ کالا خیلو وهل او دَ کالا خیلو په علاقه دره کوهاټ کښے سړک جوړول په آسان شی چنانچه انګریزان په دغه مقصد کښے کامیاب شول. په ۱۵ ار نومبر ۱۸۵۳ء ئے په دره جواکه حمله اوکړه. تر ۱۴ ار جنوری ۱۸۵۴ء پورے په دره جواکه جنګ وو. او چه په دسمبر ۱۸۵۳ء کښے ئے په دره کوهاټ په کالا خیلو آفریدو حمله اوکړه. او په مکر او فریب ئے بنګښ. سپاه. بیزوټی. فیروزخیل هم دَ کلا آدم خیلو آفریدو مقابلے ته راوستل نو کلا آفریدی مجبور شول چه دَ انګریزانو شرطونه او منی او چه په دسمبر کښے کلا آدم خیل اوډیلے شول نو په ۱۴ ار جنوری

سنه ۱۸۵۷ء جواکه آفریدی هم پریوتل. دَ پېښور او کوهاټ ترمنځه دوه اهمے درے دره ٔ کوهاټ، دره جواکه په سنه ۱۸۵۳ء کښے انګریزانو رالاندے کړے. او دا حق ئے حاصل کړ. چه په دے لاره انګریزی فوځونه به تګ راتګ کولے شی.

# دَ اکاخیلو غزا

مخکښے دا ذکر شوے دے. چه انګریزانو په دسمبر سنه ۱۸۵۳ء کښے آدم خیل آفریدی مجبوره کړل چه په دره کوهاټ کښے انګریزانو له دَ سړک جوړولو اجازت ورکړی. لیکن دَ آفریدی قوم نورو قبیلو خصوصاً اکاخیلو دا معاهده نه وه منلے او دغے باندے ناراضه وو. چنانچه هم دَ دے په وجه اکوچه په سنه ۱۸۵۳ء کښے دَ آدم خیلو سره معاهده شوے وه. بیا هم دَ سنه ۱۸۵۳ء پورے دَ غاښی او دَ درے دَ کوز سر ترمنځه سړک لا نه وو جوړ شوے. په نومبر سنه ۱۸۵۳ء کښے لفټننټ هملټن انجنیر د سپر میناپلټنی دَ سپاهیانو سره دَ برهٔ بګرسره ډیره وو. دَ دغه ځائ نه به ئے دَ کوهاټ او پېښور ترمنځه دَ جوړیدونکی سړک نګرانی کوله. دَ اکاخیل آفریدو د دے سوه غازیان پر دے ډیره پریوتل حملے ئے پرے اوکړه. دَ شپے وخت وو. رنړا ئے اوکړه. دَ سپرمینا پلټنی چه هر څومره سپاهیان وو. هغه ئے ټول اوژل. لفټننټ کرنل هملټن سخت ژوبل شه لیکن دَ مرګ نه بچ شه. دَ انګریزی فوځ کیمپ ئے تالاکړ. بیا ئے اوسیزه.

دَ دے واقعے نه روستو دَ انګریزانو یو فوځ دَ کرنیل کرنګی په کمان کښے دَ اکاخیلو په علاقه حمله اوکړله. چه دَ کرنل هملټن بدل

واخلی۔ دَ انګریزانو دَ فوځ حملے ته اکاخیل را اوتل۔ جنګ شروع شه۔ دَ دواړه طرفه نه جانی او مالی نقصانونه اوشول او دَ ۱۸۵۵ء پورے دَ جنګونو داسلسله وه۔ آخر دا چه په ۱۱ رجنوری ۱۸۵۶ء دَ اکاخیلو سره صلح اوشوه۔ او انګریزانو دَ درهٔ کوهاټ کاروته لاس واچولو۔

## دَ کوکی خیلو واقعه

په جنوری ۱۸۵۵ء کښے امیر دوست محمدخان دَ وائسرائے هند سرجان لارنس دَ ملاقات نه په واپسئ کښے دَ جمرود په مقام دیره وو۔ چه دَ انګریزانو دکیمپ یوځو افسران دَ خیبل کیمپ نه باهر راووتل او په قبائلی علاقه دَ لرے ځای پورے لاړل۔ دا خبره پښتنو ته زغملے شوه۔ حملهٔ پرے اوکړه۔ اولفټننټ هنټر نومے یو انګریزافسرئے ترینه قتل کړ۔ نور انګریزی افسران په تیښته واپس خیبل کیمپ ته راغلل۔ په دغه خبره انګریزانو له قهر ورغے۔ دَکوکی خیلو ناکه بندی ئے اوکړه۔ په پیښور ښهر کښے چه څوک کوکی خیل آفریدی وو۔ هغه ئے اونیول۔ او بیائے مطالبه اوکړه چه قاتل راکړئ۔ دغه خبره آفریدو اونه منله۔ په دغه منځ کښے هم په دغه ۱۸۵۷ء کښے په هندوستان کښے دَ انګریزانو برخلاف دَ آزادئ جنګ شروع شه۔ او دَ مجبورتیا نه په ۱۴ راګست ۱۸۵۷ء دَ کوکی خیلو آفریدو سره یوه معاهده ئے اوکړله۔ په دغه منځ کښے دَ زخه خیلو آفریدو سره هم کشمکش راغلے وو۔ او هغه هم په ۲۴ راګست ۱۸۵۷ء بانډے ختم کړے شوے وو۔

## دَ رانی خیل غزا

دَضلع کوهاټ دَغزونو په سلسله کښے دَ هنګو نه شمال طرف ته

رانی خیل نومے یو قوم آباد دے۔ تقریباً شپږ سوه ملا تړ به ئے وی۔ په اوچته پړی ئ کښے دا قبیله په حرم زی قبیله ورګډ یږی۔ څه وخت چه انګریزان کوهاټ ته ورننوتل او فخ په وړاندے ئے اقدامات ئے شروع کړل۔ دَ میرن زئ کنډ وَ ئے قبضه کړ۔ او دَ حرم زی (عارف زی) قبیلے سرحد ته ئے اقدامات شروع کړل۔ نو دَ عارف زی قبیلے خلق ورته راپورته شول۔ څو څو ځله ئے پرے یرغالونه اوکړل۔ دَ فرنګی بے شمیره فوځیان ئے مړه او ژوبل کړل۔ چنانچه دَ عارف زی قوم دَ دغه حملو په سلسله کښے دَ عارف زی قوم دَ یو ورکوټی بناخ رانی خیل غازیانو په ۱۸۵۵ء کښے دَ فرنګیانو په مقبوضه علاقه کښے دَ ساموخیل په فوځی کیمپ حمله اوکړله۔ کیمپ ئے لوټ او تالا کړ۔ دَ فرنګی ډیر فوځیان ئے مړه او ژوبل کړل۔

دَ رانی خیل قبیلے دَ دے حملے په جواب کښے دَ کوهاټ دَ فوځی کیمپ دَ کرنل نیول چمبرلین په کمان کښے یو مضبوط فوج په عارف زی او رانی خیل قبیلو دَ حملے دَ پاره اولیږلے شه۔ انګریزی فوځ حمله اوکړله۔ لوئے تباه کن جنګ اوشه۔ غازیان په شا شول او په یکم ستمبر ۱۸۵۵ء باندے انګریزی فوځونو دَ سمانه غره باندے قبضه اوکړله۔ په دے جنګ کښے غازیانو ته ډیر نقصانات اورسید۔ لیکن دَ انګریزانو دَ فوځ ئے هم ښه تباهي اوکړله۔ دا جنګ ۱۹ ورځے جاری وو۔ غازیانو په دے ۱۹ ورځے غزا کښے ترخپله وسه ښه مړانه او بهادری کړی وه۔ په ۲۰ ستمبر ۱۸۵۵ء انګریزانو دَ یوے معاهدے په ذریعه دَ خپلو نوروناپاکو مقاصدو دَ حاصلولو تابعیا اوکړه لیکن راتلونکی واقعات له دے قسم نه پیښی شوی وو۔ چه دَ انګریزانو امیدونه ئے خاورے کړی وو۔

دَ ۱۸۵۵ء نه تر ۱۸۵۸ء پورې چه انګريزانو دَ کوهاټ او علاقه ورکزائ دَ کومو قبائلو سره جنګونه کړي دي. په مقابله کښې قبائلي غازيانو ورسره غزاګانې کړې دي دَ هغې قبائلو نومونه دا دي. عثمان خيل. زمخت چه دَ ميران زي قوم دَ علاقې نه شمال مغرب ته آباد دي. لوئ قوم دے پنځه زره ملاتړ لري. سبحان چه دَ عارف زي قوم شاخ دے. دوه نيم زره [۲۵۰۰] ملاتړ لري. څلورم [۴] علي شيرزئ چه درې زره [۳۰۰۰] ملاتړ لري. او دَ دوئ دَ غزاګانو حال مخکښې دَ کرم ايجنسئ په تذکره کښې بيان شوېدے. پنځم اکاخيل چه پنځه سوه [۵۰۰] ملاتړ لري. شپږم [۶] علي خيل چه دَ عارف زائ قوم شاخ دے. تقريبًا درې زره [۳۰۰۰] ملاتړ لري او دَ هنګو شمال طرف ته پراته دي. اووم [۷] شني زائ دَ دې قبيلې خلق دَ ابراهيم زائ قبيلې شمال طرف ته آباد دي. درې زره [۳۰۰۰] ملاتړ لري. اتم [۸] حموزائ. دا خلق هم دَ هنګو شمال طرف ته آباد دي. او تقريبًا درې زره [۳۰۰۰] ملاتړ لري. دا اته قومونه چه دَ جنګي ځوانانو مجموعي طاقت ئې تقريبًا پنځلس نيم زره دے. شاه خلي غازيان دي. دَ دې قبائلو بهادرانو پښتنو چه دَ انګريزانو خلاف کومې غزاګانې کړي دي په هغې کښې دَ بعض غزاګانو حال مخکښې بيان شوېدے. په دې پورته ذکر شوؤ قومونو کښې عثمان خيل چه مقامي خلق ورته اتمان خيل وائي دَ عارف زي قوم شاخ دے ورکوټے قوم دے. تقريبًا څلور نيم سوه [۴۵۰] ملاتړ لري.

بله دا چه په دې پورته ذکر شوؤ اته [۸] قومونو کښې شپږ [۶] قومونه ميران زي [۱]. عثمان خيل [۲]. سبحان زي [۳]. ابراهيم زي [۴]. شني زي [۵]. علي شيرزي [۶] بنيادي طور په خټه سيدان دي. دَ سيد محمد بختيار ابن سيد ابي سعيد اسحاق زيږيدلي په پښتنو کښې دَ شيراني غورغښتي قوم سره وصل شوي دي. په اوچته پېړۍ کښې په خوېشکي شيراني غورغښتي نامه هم يادېږي.

عارف زی۔ ابراهیم زی۔ شنی زی رونړه دی۔ عثمان خیل۔ سیمان زی دَ عارف زی ښاخونه دی۔ علی شیرزی دَ شنی زی ښاخ دے۔ او میران زی دَ عارف زی۔ ابراهیم زی د شنی زی دَ مشر دور اتوزی ښاخ دے۔

دا تول بهادران پښتانه دی او په غرغشتی شوریانی قوم کښے ستانه دار گنړلے شی۔ دَ دے قوم خلقو چه دَ انگریزانو په خلاف کومے غزا گانے کړی دی هغه به دَ تاریخ په پانړو ویادگار پاتے وی۔

# دَ تورغر جهاد

مخکښے دا ذکر شوید ے چه دَ آفریدی قوم گنړه قبیلے دَ ژمی په موسم کښے دَ اوچتو غرونو نه ښکته میدانی علاقے ته راکوزیږی او دَ کجوری په میدان کښے کښے آر وتا۔ دَ کجوری میدان دَ کوهاټ او دَ جمرود دَ سړک تر منځه یو لویه اوته میدانی علاقه ده۔ هر کله چه په پیښور کښے دَ انگریزانو پښے مضبوطے شولے نو په کجوری میدان قبضے نکولو ته ئے حیلے بهانے جوړول شروع کړه۔ اتفاق دا وو۔ چه په دغه ورځو کښے دَ انگریزانو په مقبوضه علاقه باندے ډاکه پریوتله۔ او ډیر نقصان ئے اوکړ۔ دَ ډاکه ماروتا رو ش شروع شه۔ په قبائلو باندے ئے شک اوکړ۔ او آخر دا چه دَ آفریدی قام په زغه خیلو ئے کوته کینبود له۔ دَ قبائلی علاقے دستور او قانون دادے چه دَ دے غونے خبره چه پرا ولسی جرگه کښے داورانده شی او دا معلوموله او غواړی چه ډاکه کومے قبیلے کړے ده۔ نو چه کومے قبیلے ډاکه غور زولے وی۔ هغه بیا انکار نه کوی فوراً دا منی چه دا کار مونږ کړے دے۔ په داسے موقع قبائلیان دروغ نه وائی۔ او بے گناه په بلے قبیلے باندے تورهم نه پورے کوی۔

په دا سې حال کښې هر کله چه دَ زخه خیل قبیلې دَ جرم منلو نه انکار کړے وو چه دا ډاکه زخه خیلو نه دۀ کړې نو پکار وۀ چه انګریزانو دَ هغوئ خبره منلې وې لیکن انګریزانو ضد را واخیست قبائل په دغه بانده ګرم شول ـ انګریزانو د جنګ تیارے شروع کړې اودَ نور و قبائلو نه ئے مطالبه اوکړه چه زخه خیل کجورئ ته مه پرېږدئ که نه دَ کجورئ میدان ورنه اخلو ـ خبره ورانه شوه او فرنګیانو دَ جنرل چیمبرلین په کمان کښې په آفریدو حمله اوکړله ـ جنګ دَ میدان (تیراه) لمنو ته اورسیدۀ ـ په تورغر بانده خونړے جنګ اوشه دا حمله په ۱۸۵۸ سنه ء کښې شوې وه دَ دے کمان اول دَ جنرل وائیډ په لاس کښې وو ـ لیکن هغه کوهاټ ته لاړ او دَ هغه فوځونو کمان ئے په لاس کښې واخیست چه دَ هنګو شمال طرف ته دَ سمانه په محاذ ئے حمله کړے وه او دَ دے جنګ کمان سرنیول چیمبرلین پخپله پخپل لاس کښې واخیست ـ

دا جنګ دَ ۱۸۵۸ سنه ء ، ۱۸۵۹ سنه ء نه ورپسے ور تیر شه ۱۸۶۰ سنه ء ته اورسیدۀ او په ۲۴ اپریل ۱۸۶۰ سنه ء کښې دَ آفریدو دَ نورو قبیلو سپاؤ ـ قمرے ـ ملک دین خیل او قمبرخیل سره دَ یو معاهدے کولو نه پس دَ دے فوځي اقداماتو سلسله ختم شوله ـ

## دَ علی مسجد غزا

په ۱۸۶۳ سنه ء کښې چه والی افغانستان امیر دوست محمد خان وفات شه نو دَ هغه په ځائے امیر شیر علی خان بادشاه شه ـ انګریزانو دَ دیر پخوا نه دَ افغانستان په سیاست کښې دخل ورکول شروع کړي وو ـ او هم په دغه وجه دَ افغانستان او لئے جنګ شوے وو ـ چه

امیر شیرعلی خان بادشاه شه انګریزانو خپل مهم له نورهم زور ورکړ. په ۱۸۶۹ کښې امیر شیرعلی خان ته د هندوستان د دورې کولو بلنه ورکړه په اپریل ۱۸۶۹ کښې امیر شیرعلی خان د خپل ولیعهد سردار عبدالله جان او نورو امیرانو سره د دره خیبر په لاره راغے انبالے ته لاړ. هلته ئے ډیر قدر مدارا وشه د هندوستان وائسرائے لارډ میئو ورسره ملاقات اوکړ. د هغه نه روستو امیر شیرعلی خان د خیبر په لاره کابل ته واپس شه. انګریزانو دا تړله لوبه په کابل باندے د خپل اقتدار قائمولو د پاره جوړه کړے وه.

په جنوری ۱۸۷۷ کښې انګریزانو امیر شیرعلی خان ته جواب اولیږلو چه:-

"په کابل کښې د انګریزانو یو مستقل نمائنده له د اوسیدو اجازت ورکړه. د افغانستان د سرحدونو د ملاحظے او معاینے د پاره د انګریزانو فوجی افسر له اجازت ورکړه او د مشترکه معاملاتو په حقله د انګریزانو نه اول تپوس به کوے."

د کابل امیر دا درے واړه شرطونه نه شول منلے د دے په حقله د خبرو اترو د پاره ئے سید نور محمد را اولیږلو هغه پیښور ته راغے. دلته د فرنګیانو د نماینده سر لیوس پیلے سره ئے په مقام د پیښور خبرے اترے اوشوے. سید نور محمد ورته صفا جواب ورکړ چه امیر کابل د انګریزانو سفیر په کابل کښې نه شی ساتلے. ځکه چه د انګریزی سفیر خوندی کول ګران

کار دے۔ دَ امیر کابل داخبره په ځای وه۔ ځکه چه دَ سنه ۱۸۲۱ ؁
تا سنه ۱۸۴۳ ؁ په اولنی جنګ کښے چه په افغانستان کښے انګریزانو
څه کړی وو۔ یا دَ افغانستان مسلمانانو ورسره څه کړی وو۔
دَ هغے نه پس په افغانستان کښے دَ خوځے انګریز بنکاره کیدل
ناممکن وو۔ بیا هم امیر شیرعلی خان څه ورځے پس خپل یو
دوئم نماینده مرزا حبیب الله خان پیښور ته دا اولیږه۔
لیکن هغه چه په خیبر راتیر شه او پیښور ته را اورسیده نو
فرنګیانو دَ هغه سره دَ ملاقات نه انکار اوکړ۔ او دَ جنګ
تیاری ئے شروع کړه۔

انګریزانو باوجود دَ دے خبرے چه دَ کابل دَ نمایندهٔ سره
ئے ملاقات نه دو کړے هسے جنګ ته دَ اوبوخړولو په غرض
ئے دَ جرنیل سرنیول چیمبرلین په کمان کښے یو وفد روان که۔
دا وفد په ۲۱ ستمبر ۱۸۷۸؁ جمرود ته اورسیده۔ او دمخکښے
تللو انتظامات ئے شروع کړل۔ اوکیوګنری (کیوکنادکا) المعروف
کامناوری نوے انګریز افسرئے دَ دے دَ پاره مقررکړ چه دَ
درهٔ خیبر علی مسجد نومے مقام ته لاړ شی۔ او دغلته چه دَ
امیر کابل دَ طرف نه کوم افغان کماندار او سیږی دَ هغه
سره دَ انګریزانو دَ فوجی وفد کابل ته دَ تللو په باره کښے
خبرے اترے اوکړی۔ یو خواته ئے دَ افغان کماندار سره
دَ خبر و اترو په شکل کښے دَ فریب دام اوغوړه ولو۔
او بل خواته پرده په پرده ئے په علی مسجد دَ حملے کولو
تابیا اوکړه۔

دلته دا یاد لول پکار دی۔ چه دَ ۱۸۷۸؁ پورے په

درهٔ خیبر باندے دَ امیر کابل اقتدار وو او دَ هغه دَ طرف نه په دَ خیبر آفریدو ملکانو له ماجبونه ورکولے شول. دَ فرنګی استاذے کامنارے علی مسجد ته ورغے دَ لاله چینه او علی مسجد ترمنځه په یوه جرنده کښے دَ کامنارې او افغان کمانډر سردار فیض محمد خان ملاقات اوشه. افغان کمانډر په صفا الفاظو کښے وفد ته دَ کابل دَ تللو اجازت ورکولو نه انکار اوکړو. په دا سے حال کښے چه فرنګیانو دَ امیر کابل نمائنده مرزا حبیب الله سره ملاقات قدرته هم نه وو کړے. دَ هغه سره دَ خبرو اترو نه ئے انکار کړے وو. افغان کمانډر سردار فیض محمد خان دَ فرنګی فوځی وفد ته دَ کابل دَ تللو اجازت څرنګ ورکولے شه. په دغے باندے کامنارې ورته اووئیل چه مونږ دَ افغانانو سره همدردی لرو. نو سردار فیض محمد خان جواب ورکړو. چه "ستاسو همدردی داده چه افریدی قبائل پخپلو کښے او جنګوئے انګریزی تې په افریدو او اوډهی او په ملک کښے بد امنی او خونریزی پیدا کړی او دَ دے نه پس هم ځان ته دَ افغانانو دوستان وائے" (تاریخ آزاد پټهان ص۲۱۲ تا ص۲۱۳ په حواله دَ آیتین ائرزان خیبر. تالیف دَ وار برټن)

دَ دے نه پس انګریزانو امیر کابل ته جواب اولیږلو چه هر کله په افغانستان کښے دَ روسیانو وفد (سفیر) موجود دے. لازمًا ته به په کابل کښے دَ انګریزانو فوځی وفد هم پریږدے او که دَ ۳۰ نومبر ۱۸۷۸ء پورے دَ انګریزانو شرطونه او نه منے نو جنګ ته تیار شه.

افغانستان دَ دغه شرطونو منلو نه انکار اوکړو. جنګ ئے قبول کړو. او دَ دے طرف نه په ۲۱ نومبر ۱۸۷۸ء دَ انګریزانو فوځو نه درهٔ خیبر باندے ورغلل او دَ افغانستان دَ دریم جنګ آغاز

ئې اوکړ۔ او په علی مسجد ئې یوه لویه حمله اوکړله۔ په دے تاریخي مقام باندے دا بله تاریخي غزا وه چه د افغانستان د دویم جنګ په ابتداء کښې شوے وه۔ د دے اقدام نه وړاندے انګریزانو په قبائلو کښې روپئ خورے کړے۔ وے پخپل فکر ئې ځان ته لار آواره کړے وه۔ مګر بیا هم د زخه خیل قبیلے غازیان او د ملاګوری شنواری۔ شلمانی قبیلو غازیان د ملاخلیل په مشرئ کښې دے میدان ته رارسیدلی وو۔ او ښه مقابله ئې کړے وه۔

"سرجارج ینګ هزبنډ" پخپل کتاب د ،،کانیډ ز سرګذشت،، (صفحه $\frac{۱۳۷}{۱۳۸}$) کښې د علی مسجد د غزا څه کوم حال لیکلے دے۔ هغه د لوستو دے۔ لیکی:-

"د لفټننټ جنرل سرسیم براؤن کے۔ سی۔ بی وی۔ سی۔ کے په کمان کښې چه کوم فوځ د افغانستان د دویم جنګ د پاره روان شه۔ هغوئ د علی مسجد په مضبوطه نوجی قلا باندے د قبضے د پاره حمله شروع کړله۔ په علی مسجد د قبضے تجویز دا ئے وو۔ چه یو بریګیډ فوځ دے د جمرود د طرف نه مخامخ حمله اوکړی۔ بل بریګیډ دے د بل طرف نه او دریم بریګیډ فوځ دے په غرونو غرونو کښې تاؤ شی۔ او بډ د چکر دے اوهی۔ او که د دشمن (مسلمانانو) فوځ په شا باندے ځی د هغوئ مخه دے اونیسی او د علی مسجد په قلعه پدشا

دَطرف نه حمله هم اوکړی۔ کوم فوځ چه
دَشا دَ طرف نه دَ حملے دَ پاره مقرر شوے
وو او دَ هغه سره دَ ګائیډ پلټن سپاهیان
هم وو۔ هغه دَجرنل ټټلر په کمان کښے وه
اوکوم فوځ چه دَ بلے غاړے نه دَ حملے دَ
پاره مقرر شوے وو۔ دَ هغه سره څه
دَګائیډ پلټنې سپاهیان وو۔ او نور دَ
اول نمبر سکھ پلټن وه هغه دکرنل جنکنز
په کمان کښے حمله کړے وه۔ او دَ مخامخ طرف
نه دَجنرل سرسیم براؤن په کمان کښے فوځونو
حمله کړے وه۔"

غازیانو دَ جنرل سرسیم براؤن په حمله آور فوځونو سخته
راوستلے وه۔ لیکن چه دَجنرل جنکنز امدادی فوځ دَ براؤن دَ فوځ
سره ملګرے شه۔ نو غازیانو ته مقابله سخته شوه۔ په دغه منځ
کښے دَ سردار فیض محمد خان په فوځ کښے دَ غازیانو په منځ کښے بهاالدین
نومے یو قزلباش فوجی افسر وو هغه دَعلی مسجد دَ قزلباش رسالے
په سپاهیانو کښے ماته ګډه کړه۔ غداری ئے اوکړله۔ چه دَ قزلباشو
رساله دَ علی مسجد نه په ماتے لاړه۔ نو دَ سردار فیض محمد خان
سره چه کوم غازیان پاتے وو۔ دَ هغوئ مټ کمزورے شه۔ دَقلا
نه اوتل او په جنګ جنګ په شا دوان شول۔ په دغه موقع باندے
غازی ملک ولی محمد نخه خیل ډیره بهادری کړے وه۔ دَ غازیانو
لښکرے دَ وادئ بازار په لار دَ خیبر درے نه دوغ او بنیکلے وو۔
سرجارج ینګ هزبنډ لیکی:-

"دَ قزلباشو رساله او سواره فوجیان اوتښتېدل لیکن دَ غازیانو پیاده فوځ چه دَ خیبر درے په منځ کښے په شا تللو نو دَ جنرل جنکنز دَ انګریزی فوځ سره ئے مقابله را غلله. ډیر مړه او زخمیان پکښے او شول. دَ جنګ په میدان کښے دا سے دوړے پورته شوے چه زمکه آسمان نه ښکاره کیدل او په هغے کښے غازیان دَ وادیٔ بازار په طرف اوتښتل. چه جنګ تلار شه هغه غدار قزلباش بهاءالدین جرنیل جنکنز له راغے. په کائیډ پلټن کښے نوکر شه. او په هغه ساعت نان کمیشنډ افسر شه"

دَ دغے نه پس دَ انګریزانو فوځ کابل ته ننوتلو. او هلته چه څه ئے په قسمت وو. هغه وربیښه شوله. اوبنان قچر. خرګاه بار کاه فوځ هرڅه ئے تباه شول. په دے جنګ ئے ټول خرچ تقریباً (۳۲۲۱۶۵۰۰) روپیٔ او شه. او تباهی ئے هم اوشوله.

# دَ وادیٔ بازار غزا

انګریزانو چه په افغانستان دَ دوئم جنګ ابتداء کوله نو دَ هغے دَ پاره ئے پوره تیارے کړے وو. هرکله چه دَ علی مسجد دَ غزا په موقع زخه خیل آفریدو غازیانو دَ فرنګی مقابله اوکړله. او بیا دَ غازیانو لښکر ئے وادیٔ بازار ته واړه ولو. نو په دغے باندے دَ اورلمبه شول فیصله ئے اوکړله. چه زخه خیلو له سزا ورکول پکار دی چنانچه دَ جنرل ماډ په کمان کښے په ۱۹ دسمبر ۱۸۷۸ء

دَ انګرېزي فوځ يوه حصه دَ چنار او دره سا سوپي په لاره دَ وادئ
بازار په طرف روان شه. او دَ فوځ څه نوره حصه دَ جنرل کينټرپه لاما
دَ چوره او ولئ په لاره دَ وادئ بازار په طرف اقدام شروع کړ. په دے
لښکر کښے پياده فوځ. سواره فوځيان. توپخانه او مشينونه سرقسم
و سله موجوده وه. دَ انګرېزانو دَ فوځ ډيروالي ته چه ځ اوګتل
نو زخه خيلو مقابله اونه کړله. کلي ئے خالي کړل. او په شا شول.
انګرېزانو چه حمله اوکړه نو خومره آبادي او کلي. کورونه چه په تخه
ورتلل هغه ئے ورانه ول او مځ په وړاندے روان وو. په دے
جوړ چه وادئ بازار ته اور سيدل او دَ دغه ځاے پورے په تخه
څه ورتلل هغه ئے تباه کړل. نو دَ واپسئ بګل ئے اوغږاوه. چه
انګريزي فوځونه واپس راروان شول. تو دغه وخته پورے بيا زخه خيلو
ورته پوره تيا بيا کړے وه تيار شوي وو. دَ فرنګئ په فوځونو ئے پړي تل
دَ هريو کاڼي دَ پاسه او دَ هر بوټي خواته ئے دَ انګريزي فوځونو
ککري پرے کړے. او وينے ئے بهيولے. او په دے جوړ دَ خيلو ورانو
شوؤ کلو او کورونو قيمت ئے وصول کړ. بدل ئے واخيست.

# دَ وادئ بازار دوئم جنګ

دَ فرنګي په فوځونو چه زخه خيلو آفريدو کوے لوبے اوکړے. دَ
دغے نه روستو دَ خيبر دره ډيره خطرناکه معلومه شوه. دَ دره خيبر
لاره محفوظه پاتے نه شوله. نو انګرېزانو بيا دَ آفريدو خلاف دَ
جنګ اعلان اوکړ. په وادئ بازار باندے بيا دَ حملے کولو تجويز
ئے پاس کړ. او داسے هم فيصله اوکړه چه دا دوئمه حمله دے دَ
جمرود علي مسجد. لنډي کوتل او ډکه دَ طرف نه اوکړے شي.

چنانچه دَ انګریزانو۔

(۱) کوم فوج چه په کړکه پروت وو هغه دَ درهٔ ساسوبي په لاره مخکښې روان شه۔

(۲) دانډي کوتل انګریزي فوځ دَ چوره تاله په طرف اقدام اوکړه۔

(۳) او په علي مسجد چه کوم یو بریګیډ فوځ پروت. هغه دَ الچه کندهٔ

په لاره حمله اوکړله۔

دا درے واړه حمله کونکي فوځونه په چپاؤ روان وو۔ او دا بیره هم

لکه دَ اول ځل په شان په ټوله لاره کښې دَ زخه خیلو یو سړے هم

مخے له رانغے۔ جنګ ئے اونه کړ۔ انګریزي فوځونه وادئ بازار ته په

حمله روان وو۔ او په لاره چه هر څومره کلي او کورونه په مخه

ورتلل هغه ئے وړانول۔

دا بیره دا دَ ۱۸۷۹ء حمله هم دَ ۱۸۷۸ء دَ حملے دَ انګریزانو

جرنیلانو جنرل ماډ او جنرل کینز په کمان کښې شوے وه۔ هر کله

چه دا لښکر په وادئ بازار کښې چینه نومے مقام ته اورسید۔

نو هلته خبر شول۔ چه زخه خیلو او نورو اپریدو قبائلو تیارے کړے

دے او په انګریزي فوځونو یوه لویه حمله کوي۔ په دے باندے په

فرنګیانو لړزان ګډ شه۔ وجه ئے داوه چه دَ انګریزانو یوه

پالیسي وه دَ هغے مطابق دَ قبائلو سره ئے جنګونه کول۔ پالیسي

داوه چه په یو وخت کښے به ئے فقط دَ یوے قبیلے سره جنګ

کولو۔ دَ ګڼو قبیلو سره به ئے جنګ نه کولو۔ او چه کله به ګڼ

قبائل ورته راپورته شول۔ نو بیلمه ئے میدان پریښودلو۔

چنانچه د دے پالیسئ ما تحت هر کله چه جرنل ماډ او جنرل

کینز یوه شول چه قصه خرابه شوه داخو به اوس ټول قبائل

پرے راټول شي او تباهي به پرے راولي۔ نو دَ واپسئ بګل ئے

اوغزاوه. او په ۴م فروری ۱۸۷۹ء د لنبکر دَ وادئ بازار نه رامات شه. او په تیښته واپس راغے.

دَ دغے نه روستو هم زخه خیل دَ انګریزانو نه قلار نه وو. او دَ ۱۸۸۹ء او ۱۸۸۸ء په دوران کښې ئے هم په انګریزانو بد ساعت جوړ کړے وو. او بیا چه دَ کوکی خیل قبیلے نه ئے هم ویره پیدا شوه نو ۱۳۰ سوه روپئ ماهوار ماجب ئے ورله نور زیات کړ. چه دَ جمرود نه دَ شادی بګیارې پورے دَ سړک حفاظت به دَ دوئ ذمه وی.

# دَ تیراه غزا

په ۱۸۷۸/۱۸۷۹ء کښې چه دَ انګریزانو او آفریدو ترمنځه کوم جنګ شوے وو. دَ هغے نه روستو کتر داسے واقعات پیښ شوی وو. چه دَ هغے په نتیجه کښې په ۱۸۹۷ء کښې دَ تیراه دَ غزا واقعه پیښه شوے وه.

په ۱۸۷۸/۱۸۷۹ء کښې چه انګریزانو په کابل دویم جنګ کړے وو. او په نتیجه کښې دَ امیر شیرعلی خان دَ لاسه حکومت تلے وو. امیر محمد یعقوب خان ئے بادشاه کړے وو. او بیا ئے دَ دغه کمزوری او بے وسه امیر نه په معاهده ګندمک دستخط اخستے وو. نو دَ معاهده ګندمک په شرطونو کښې یو شرط دا وو چه دَ وزیرستان دَ وانا علاقه. تول کرمه او تول خیبر دره به دَ انګریزانو وی. دَ معاهدے دویم شرط دا وو چه په کابل کښې به انګریز سفیر او سیږی. په معاهده ګندمک باندے په جون ۱۸۷۹ء دستخطونه شوی وو. په جولائی ۱۸۷۹ء کښې دَ انګریزانو سفارت دَ سر لوئس کیو ګنری (کاماناری) لفټننټ والټر همګتن. مسټر اے ایچ. کیلی (ډاکټر) او کرنل ډبلیو جنکنز په مشرئ کښې کابل ته

ازرسیدلی ده ـ شهزاده طیموس هم ورسره دَ کابُیدِ پلټنی افسر و ـ
په اگست ۱۸۷۹ کښې دَ دې سفارت ټول ارکان او دَ دوئ دَ محافظ
فوج دسته ټول اوژلې شول انګریزانو بیا کابل باندې لام اوکړ
په ۳ سیتمبر ۱۸۷۹ء چه کومه حمله ئې کوله ـ فوج ئې په کرمه او بولان
دروا چاوه ـ دَ خیبر نه ئې دره اوکړه ـ امیر محمد یعقوب خان ئې
بند یوان کړ ـ هندوستان ته ئې راوستلو ـ هرکاله چه دَ ګندمک دَ
معاهدې له مخه دَ خیبر علاقه په سیاسی حیثیت سره دَ انګریزانو
په تسلّط او اقتدار کښې ورکړې شوې وه ـ په دغه وجه انګریزانو
دَ افریدو سره جرګې شروع کړلې په جرګه ئې اوغوښتل او دَ ۱۸۸۱ء
په آخر کښې دَ معاهدهٔ خیبر په نوم یوه معاهده لاس لیک شوه
دَ قبائلو آزادی تسلیم شوه او دَ افریدو نه دا اقرار واخیستې
شه چه سیاسی تعلقات به صرف دَ حکومت هند سره ساتی ـ
دَ کابل بادشاه چه به کوم ماجب افریدو له ورکاوه هغه به
اوس انګریزان ورکوی ـ (۸۷۵۴۰) روپئ دَ افریدو او (۹۶۶۰) روپئ
ماجب دَ شنوارو مقرر شه او دا وعده اوشوه چه دَ درهٔ خیبر
دَ لارې حفاظت به دوئ کوی ـ وروستو خیبر ایجنسی جوړه شوه
اوچه روستو په ۱۸۸۱ء کښې امیر عبدالرحمان په کابل بادشاه
شه ـ او هغه دَ معاهدهٔ ګندمک تصدیق اوکړ ـ نو په ۱۸۸۳ء
کښې دَ خیبر سړک جوړ شه ـ دَ دغې نه روستو چه په ۱۸۹۳ء
کښې دَ امیر عبدالرحمان خان او انګریزانو ترمنځه دَ ډیورنډلائن
په نوم معاهده اوشوله او انګریزانو په هغه ټولو علاقو
باندې باقاعده قبضه لګول شروع کړل ـ نو قبائل راپورته
شول دَ وزیرستان نه تر باجوړه په ټولو سرحدونو باندې

دَ انګریزانو په خلاف دَ جهاد تحریک اوچت شه. شروع دَ وزیرستان نه اوشوه. په کرمه. په خیبر په مهمند په ملاکنډ یو شان دَ قبائلو یوه چغه وه. دَ دے په مقابله کښے انګریزانو دَ باړه او جمرود ترمنځه فوځ جمع کړ. افریدی را پورته شول. او چه په وزیرستان کښے په انګریزانو شروع شوه. افریدو هم توپک ته لاس کړ. او دَ دغے په نتیجه کښے په ۱۸۹۷ء کښے دَ تیراه غزا جوړه شوه.

دَ جمرود او باړے ترمنځه انګریزانو فوځ اچولے وو. لکه دَ پخوا په شان په وادیٔ میدان سے حمله کول غوښتل لیکن افریدی په دومره زور کښے را غلل چه فرنګیانو ورته مورچه بدلول ضروری اوګڼل دَ خیبر نه ئے پښے را اوکښلے دَ خیبر رائفل کمانډر سردار محمد اسلم خان ته ئے حکم ورکړ. چه هر څومره انګریزان افسران چه په لنډی کوتل کښے موجود دی. همت اوکړه چه ژوندی ئے پیښور ته را اورسوے. سامان وسله هر څه ئے په ځای پریښودل دوه لاس دوه پښے را اوتښتیدل. افریدی پړے ورغلل په ۲۳ اګست ۱۸۹۷ء ئے علی مسجد. مونړه. کټه کشته او نورے فوجی څوکئ اونیولے په ۲۴ اګست لنډی کوتل ته ورغلل په ۲۵ اګست ئے دلنډی کوتل قلا اونیوله. دَ انګریزانو چه څه مال اسباب وسله دغلته موجود وو. هغه ئے تالا کړل په قلا ئے قبضه اوکوله.

انګریزانو چه دا حال اولیده. فیصله ئے اوکړه چه دے قبائلو داسے ګذار پکار دے چه بیا سر پورته نه کړے شی. لښکرئے جمع کړ. دَ حکومت هند ټول فوځی طاقت په حرکت کښے راغے. په ۲۳ ستمبر ۱۸۹۷ء دَ افریدو خلاف دَ جارحانه اقدامات کولو اعلان اوشه. او په تاریخ ۱۰ اکتوبر ۱۸۹۷ء په افریدو باقاعده

حمله او شوله - چه دغه حمله په تاریخ کښې دَ

دَ تیراه جنګ، محاربهٔ تیراه، دَ تیراه غزا

په نومونو یادیږی - انګریزان دَ خپل طاقت په نشه دومره مغروره وو - چه دَ حملے نه مخکښې دا اعلان ئے هم اوکړ - چه دَ جنګ په دوران کښې به دَ هیڅ قسم صلح خبرے اترے نه شی کیدلے - او دَ صلح چه کوم شرطونه دی هغه چه دَ افریدو په مرکز (باغ تیراه) باندے انګریزی فوځونه قبضه اوکړی - بیا به کیدلے شی - انګریزانو چه په څومره طاقت سره په تیراه حمله کړے وه دَ هغے اندازه دَ دے لاندے اعداد و شمار نه په اسانه لګیدلے شی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| انګریزان افسران | ۱۰۱۰ | انګریزان اوګوره سپاهیان | ۱۰۸۸۲ |
| | | هندوستانی سپاهیان | ۲۲۶۱۲ |
| | | نور متعلقه افراد | ۱۹۹۳۲ |
| | | میزان | ۵۴۴۳۰ |

اوښان - اسونه - قچر - غویان - خره ــــ ۴۴۸۸۰

دَ دے په مقابله کښې دَ افریدو سره نه خو څه نوے قسم وسله وه - نه سامان - نه خرګیر بارګیر - نه دَ داشن او دارومړکی رسولو انتظام هیڅ هم نه وو - دَ دوی وسله توپک - توره - چاړه - خنجر - پیش قبضه - بله - او دَ هغے دَ پاسه دَ جهاد جذبه او خپل خوږ وطن دَ سر قربان کولو مینه او ولوله وه - نور بس!

لیکن دَ دے ټولو خبرو باوجود انګریزانو دَ مجبورئ دَ میدان په لاره په افریدو باندے دَ حملے کولو جرأت او نه کړ - او په ۱۱ اکتوبر سنه ۱۸۹۷ ئے دَ کوهاټ په علاقه کښې دَ شنه ورئ دَ طرفه په تیراه حمله اوکړله دَ حملے په اوله ورځ په مشکلاتو کښې ګیر شول - دَ وړاندے تللو لار

ئے نه موندله تر ۱۸، اکتوبر پورے په ځای ډب پراته وو. دَ تښنه وړیٔ نه ئے درګئ ته مخه اوکړه. قدم په قدم افریدو مقابله کوُله. دَ فرنګی فوځ ډیر وو په دغه زور مخکښے روان وو. دَ غرهٔ سر ته اورسیدل. چائے مقابله او نه کړه. دغه دا سے ځای وو. چه دَ فوج شپه پکښے نه تیریداله دَ واپسیٔ بګل ئے اوغږاوه. چه واپس کیدل حیران شول دهریو کا نړی او بوټی شاته غازیٔ ناست وو. دَ فرنګی په فوځ ئے ګولیٔ وره ولے او په دغه شان دَ ګولو په باران کښے فوځ ژورے ته راکوز شه. په ۱۹، اکتوبر ئے دَ مخکښے تللو واده برابر نه شوه. په ۲۰، اکتوبر فوځ ئے په درے حصو تقسیم کړه په بیله بیله لار مخکښے روان شه وادیٔ خانکیٔ طرف ته ئے مخه اوکړه. دَ دره چکرو پورے پرے ډز اونه شه. چه چکرو ته اورسیدل غانیان پرے راپورته شول. قیامتونه ئے پرے راکوز کړ. افریدی غازیان په دا سے ځای خوړو کښے پراته وو چه دَ فرنګی فوځونه لیدل او دَ هغوئ په ګولو انګریزی فوځ لګیده. مرکیده او تباه کیده. دَ غر ئیږے علاقے نه وړاندے پنځوس ګزه اوږده میدانی حصه وه. بیا مخکښے غر وو. چه دَ فرنګی فوځ پکښے پناه موندلے شوه. دَ فرنګی فوځ پوره زور اولګاوهٔ چه دَ دغه پنځوس ګزه میدان نه وړاندے دویم غر ته ځان اورسوی. دَ سر نه ئے او دنګل. زور ئے او لګاوه په ډیر مشکله فقط ددے کمپنئ فوځ مخکښے اووت نور ګیر شه. ځکه چه افریدی په دا سے مورچه کښے په سوُ کښے ورته پراته وو. چه دَ هغوئ دَ توپک دَ ګولیٔ نه هیڅ یو سپاهی بچ کیدے نه شه چه دا که میدان ته پښه وړاندے کړی. دَ غره تنګه دَ فرنګی دَ فوځ دَ مړو نه ډکه شوه.

[تاریخ آزاد پٹھان صفحه ۲۳۳ بحواله دکمپین آن این ډبلیو فرانټیر. دکپتن پګټ]

داجنګ دَ سحر صبائی نه تر ماسپخین پورے اوشه. دَ فرنګی دَ فوځ نوے کمپنئ به دغه ډاګے ته راوتله او تک سترے کیدله به. دَ ډیر نقصان نه روستو فوځ دَ دوئم غر په ناوُ وربرابر شه. غازیانو ورته مخه اونه ورکړه. دَ فرنګی فوځ ئے راګیر کړو. نه مخکښے تللے شه. نه روستو. په پټو سترګو ئے بمباری شروع کړه. ټوله شپه ئے دغه شان تیره کړه په دے ویره چه غازیان پرے حمله اونه کړی.

دَ ۲۱ اکتوبر په صباله چه رنړا ئی اولګیده دَ فرنګی فوځ بیا په مخکښے روان شه. دَ دواړه طرفه دَ ګولو باران وو. او دے ورځو لو چه دا لښکر خړپه نوے ځای ته اورسیده جنګ نور هم سخت شه. لښکر نور مخکښے دَ تللو تاب نه لرلو. مجبوراً کیمپ ئے اولګولو دغه پوره هفته په دغه ځای پروت وو. شپه او ورځ دواړه جنګونه کیدل. انګریزانو دَ درهٔ سم بخه نه وادیٔ مستوره ته دَ سړک په جوړولو کښے لګیا وو. آفریدی غازیان هم ترے دمه شول. انګریزی فوځ هم ساه واخیستله. البته په دغه منځ کښے په ۲۳ اکتوبر او ۲۵ اکتوبر غازیانو داسے سخت حملے کړے وے چه دَ فرنګی فوځ ئے ډیر تباه کړے وو. په دغه موقع دَ انګریزانو دَ فوځ تعداد څلور دیرش زره او شپږ سوه وو. ۳۴۶۰۰

انګریزانو دَ یوے هفتے په دمه کښے دَ خپل فوځ تنظیم دَ نوی سر نه اوکړو. په ۲۸ اکتوبر ئے اقدام شروع کړو. دَ درهٔ سم بخه لاره ئے اونیوله. دغه دره تقریباً څلور میله اوږده ده. غازیانو پرے دَ دواړه طرفه غرونو نه ګولئ ورولے. او دَ انګریزانو فوځ مخکښے روان وو. په ۲۹ اکتوبر وادیٔ مستوره ته اورسیده. په ۳۰ اکتوبر ئے دَ ځ په دراندے ترېږ دَ پاره حمله اوکړه. په ۳۱ اکتوبر دَ ارنګه په لاره ئے

دَ تیراه دَ میدان لاره اونیوله. افرید و غازیانو په یوه یوه انچه زمکه دَ فرنګی دَ لښکر وینې تویُ کړے. لیکن انګریزی فوځ دَ سپاهیانو دوسلے اوګولئ مرِ دکی دَ زیاتوالی په وجه تللوکینې بریالے شه. او آخرداچه دَ میدان علاقے ته اورسیدهُ. توله علاقه ئے زیروزبر کړه اوبیائے باغ ته مخه اوکړ له. په باغ پریوت یوه هفته دلته دیره وو. دَ دواړه طرفه دَ جنګ تیاری کیدله. انګریزانو دَ دغه علاقے سروے شروع کړ له. مګر دَ زخه خیل قبیلے غازیانو دمه ورنکړله.

په ۸ر نومبر دَ انګریزانو فوځ دَ باغ نه روان شه. نمرخانه طرف ته دَ زخه خیلو په علاقهٔ حمله اوکړله. دَ هغوئ خالی کړے شوی کلی اوکورونه ئے وران کړل.

په ۹ر نومبرئے په سرن سر نومے غره حمله اوکړه داغود دَ تیراه مشرق ته آخری سرحدی غر دے. دَ میدان نه تقریباً څلورمیله لرے دے. افریدی غازیان ئے مقابلے ته غونډ شوی وو. دانګریزانو فوج ته ئے پوره نقصان اورساوه وجه ئے داوه چه دَ افریدو خپل ملک وو. لوړه ژوره ور ته معلومه وه. او دَ انګریزانو فوج ته دو ګودر معلوم نه وو. چه په کوم ځوا به ورتلل دَ کمر شاته به غازیان پراته وو. او دوئ به ئے دَ خاورولاندے کړل. دَ دے په حقله کپتن نِکمت لیکی:-

اکثر به داسے اوشول چه افریدی به
په نظر نه راتلل. لیکن دَ کانړو بوټو
نه به ئے آواز و نه آوریدلے کیدے
شول. ځوئ فوځیانو به آوریدلے.

دَ سرن سر نه دَ انګریزانو فوځ په ډیر بدحال راواپس

شه۔ افریدو پرے داسے ناتار جوړ کړ. چه فرنګیانو دَ خپلو مړو لاشونه هم په میدان کښے پرېښودل پښے ئے راسپکے کړے. په دغے باندے دَ انګریز کمانډر دَ انتقام جذبه نوره هم زیاته شوه په ۱۱ نومبر ئے بیا په سرن سر حمله اوکړه. فقط دَ دے دَ پاره چه دَ خپلو فوځیانو دَ زړونو نه دَ آفریدو ویره او بڼاسي او خپل مړي دَ میدان نه را اوچت کړی. لیکن په افریدو ئے هیڅ اثر اونه کړ. دَ انګریزی فوځ نور هم جانی او مالی تاوان اوشه۔

په ۱۳ نومبر انګریزی فوځونو دَ درهٔ سرې په لار باندے وادئ درن ته مخه اوکړه۔ دلته اکاخیل افریدو بنه په نړه او بهادرئ مقابله اوکړه۔ انګریزانو دلته هم خپل خوئ بنکاره کړ. دَ اکاخیلو کلی اوکورونه ئے وران کړل۔ او په ۱۶ نومبر میدان ته راواپس شول۔ دَ واپسئ په وخت کښے افریدو غازیانو ترینه ګیره چاپیره کړه. بنه ئے اووژل ټول پړ وګرام ئے ورله تالا والا کړ. دومره ئے اوژل چه کندے پرے ډکے شولے۔ په ۱۷ نومبر دَ میدان نه نور امدادی فوځ ورغے او ګیر شوے فوځ ئے راخلاص کړ دَ دغه تازه دم فوځ سره هم سخته مقابله اوشوه۔ او په ۱۸ نومبر دَ انګریزانو فوځ زیاتیدلے اوشر میدان نه باغ ته راواپس شه۔

په باغ کښے دَ دوه ورځے آرام کولو نه دوستو په ۲۲ نومبر دَ باغ نه شمال مشرق طرف ته دَ (دوتئ) خواته چه دغه مقام دَ وادئ بارهٔ په لار کښے دے۔ انګریزی فوځونو حمله اوکړله — افریدی مقابلے ته پراته وو. جنګ تود وو۔ انګریزانو دَ مخ تګ په دوران کښے کلی او کورونه وران وول۔ په ۲۶ نومبر دے فوځ درهٔ کاهو ته مخه اوکړه۔ افریدو پرے یو ځل بیا سخته حمله اوکړله۔ تباهئ ئے

پوړا وستله. بیا هم په سختئ او خوارئ ئې موسئ درے ته اورساوه.
دَموسئ درے نذے دقبیله چکمنئ په زمکه دَحملے کولو اراده
اوکړه. په یکم دسمبر ئې لښکر په دوه حصو کښې تقسیم کړ. نیت ئې
داوو چه دَ چکمنئ قام مرکزی ځای تهبوئ (تبئ) برباد کړی.
یو حصه فوځ ئې وړاندے لاړ. باقی پاتے فوځ ئې افریدو راګیر
کړ. ویره پرے راغله واپس شول. صباله ئې بیا حمله اوکړه
دَ تبئ کلے ئې اوسیزه. لیکن نور دَ مخکښې تللو تاب ئې نه وو. ویره
پرے راغلله ځکه چه دَ دوئ دَ راتلونه لږے وړځے وړاندے
څکمنو غازیانو دَکیپل ـ هل. روس کیپل فوځونه وهلی وو. دفرنګی
سره خطره پیدا شوه چه که دَ مخ نه څکمنی او دَ شانه افریدی پرے
راشی بالکل به ئې تباه کړی. ماتے ئې اوکړه او په ۷ دسمبر
زیاتنیدلی او شرمیدلی دَ قبائلی علاقے نه راووتل. یو انګریز مصنف
دَ دے جنګ په حقله لیکی:-

"دَکریمیا او دَ هندوستان دَ بغاوت دَ دوه
لویو او خطرناکو جنګونو نه روستو دا دریم
لوئ سخت جنګ وو. چه مونږ کړے دے."

(تاریخ آزادپټان ص۲۳۸ په حواله دَلائف آف لارډ رابرټس. ازفارسټ)

# دَ تیراه دوئمه غزا

انګریزانو چه په ۱۸۹۷ء کښې دَ آفرید و مرکزی علاقه میدان
او ورسره نورے خواؤ شا علاقے څومره په ظالمانه او وحشیانه
طریقے سره تباه او برباد کړے وے په هغے ئې خوانه وه یخه
شوے. اراده ئې اوکړه چه دَ افریدو نورے علاقے هم

تباه کړی. دَ میدان دَ تباهئ نه پس ئے دَ وادئ بازار او خیبر دَ تباه کولو تجویز جوړ کړو. دوه لښکرے ئے تیارے کړے دواړو په ۲۲ دسمبر ۱۸۹۷ء حمله اوکړه.

(الف) یو فوځ په خیبر ورغے په وهلو او وهلے کیدلو ئے ځان چینے ته اورسولو.

(ب) بل فوځ حمله اوکړه. الاچه. کرمنا. برګ ئے برباد کړل.

بیا دواړه فوځونه راواوګرځیدل په لنډی کوتل یو ځائ شول. بیا ناساپه درے بریګیډه نورے تازه دم فوځ ئے په یکم جنوری ۱۸۹۸ء دَ جمرود نه دَ لنډی کوتل پورے دره کښے خورکړو لوټ مار ئے شروع کړو. دغه دَ انګریزانو طوفانی حمله وه. چه افریدی غازیان ورله راساز شول. شروع ئے پرے اوکړه. نو فرنګیانو باندے بده ورځ راغله جرګے ئے شروع کړے. دَ صلح خبرے اترے ئے رابرسیره کړے افریدی هم ستړی شوی وو جرګه ئے او منله صلح اوشوه البته اکاخیلو صلح اونه منله. په ۲۶ اکتوبر ۱۸۹۸ء پوره لس میاشتے جنګ نه روستو چه کومه صلحه اوشوه په هغے کښے دَ جمرود او لنډی کوتل ترمنځه دَ سړک په غاړه دَ حفاظتی ځوکو جوړولو. دَ سړک دَ جوړولو. دَ ریلوے سړک اوکښلو. او په سیاسی معاملاتو کښے فقط دَ برطانیه سره دَ تعلق ساتلو لوظ اوشه. اکاخیل بچیل مخالفت کلک پاتے شول. پنځه کاله پړ له پسے ئے دَ فرنګی سره اوجنګړل آخر دا چه په ۱۸ اکتوبر ۱۹۰۳ء دَ اکاخیلو سره هم معاهده اوشوله.

## دَ وادئ بازار دریمه غزا

دَ بازار دَ دویمے غزا ۱۸۹۸ء نه روستو ترڅه وخته پورے قلاری وه.

منځ ترسخته په وړې وړې نخښتې کیدلې. مګرخه داسې غټه جګړه نه وه پیښه شوې. په ۱۹۰۷ء کښې فرنګیانو بیازخه خیلو ته اوبه خړې کړې. په مجبورئ ئې بند کړل. په دغې حالات خراب شول. زخه خیلو ملا اوتړله. فرنګی ته ئې لاس واچاوه. ړا وړاندې شول. دَسا په پیښور ښهرئ حملې شروع کړې. دَ زخه خیل قام یونومیالی، توریالی جنګیالی غازی وو. ملتان خان نوم ئې وو. په پیښور ښهرئ حمله اوکړله. دَ ماښام دَ نمانځه نه روستو دَ اندرشهر بازار هندوان ئې تالا کړل. ړنږئ اوکړلې. مال هال ئې په قچرو بار کړ. روغ جوړ لاړل. دا واقعه په ۲۸ جنوری ۱۹۰۸ء پیښه شوې وه. دَ افرید و دَ بهادرئ درزخور شه. روستو فرنګیانو پیسې خورې کړې دَ ملتان خان په خپلو ملګرو کښې یوکس مخبری اوکړله. ملتان خان دَ سوریزو په میره کښې وو فوج پرې ورغې دَ ملتان سره دولس ملګری وو. سخته مقابله ئې اوکړه. دَ انګریزی فوج افسر دَ ملتان خان په ګولئ سور شه. وروسته دَ سختې مقابلې نه روستو ملتان خان هم شهید شه.

دَ دغې نه پس انګریزانو دَ زخه خیلو په خلاف دَ جنګ اعلان اوکړ په ۱۳ فروری ۱۹۰۸ء دَ بازار دَ دریم جنګ آغاز ئې اوکړ په درهٔ خیبر کښې ئې فوجئ څوکئ مضبوطې کړلې. دَ زخه خیلو خیال وو. چه انګریزی فوځ به دالاچي، کرمنا په لاره په وادئ بازار حمله کوی. لیکن انګریزانو قبائلو له تیر وډکړ. په بله لار ورغې په چوره ئې قبضه اوکړله. دَ فوځ دویمه حصه دَ ولئ په لاره مخکښې لاړه. اودریمه حصه فوځ په وادئ بازار وراوخوت.

زخه خیل شاه خلمی ورله راا ورسیدل ـ خپله مړانه ئې ورته ښکاره کړله ـ دَ هرکانړی په سرئې دَ انګریزی فوجي سړا وسولاؤ ـ په ډیره سختئه په ۲۱ فروری انګریزان وادی باز ار ته ورننوتل ـ دَ کلو او کودونو په ورانولوئې لاس پورے کړ ـ

زخه خیلو ورته ښه مضبوطه ملا اوتړله ـ په مورچه کښې ورته پریوتل ـ دَ فرنګی ډیر فوج وو ـ لیکن دا سے معلومیدله چه زخه خیل په کلونو کلونو جنګ ته تیار دی ـ فرنګی ته په دغه درانه ویجاړه علاقه کښې دومره لوئ فوځ ډیره موده ساتل ګران وو ـ جرګے ئې شروع کړے ـ چه روغه اوشی ـ ځان له ئې پرتوګ جوړکړ ـ په ۲۸ فروریٔ فوج ئې را واپس کړ ـ

# دَ لنډی کوتل غزا

په مئ سنه ۱۹۰۹ء کښې دَ حضرت ملا نجم الدین صاحب المعروف هډے ملا صاحب رح یو مشهور ماذون او خلیفه صوفی عالم ګل صاحب رح دَ افغانستان دَ بټي کوټ دَ طرف نه لښکر اوکړ راروان شه ـ په لنډی کوتل ئې حمله اوکړه ـ خونړی جنګونه اوشول انګریزی فوځونو ته ئې پوره نقصان اورسولو ـ لیکن دا جنګ وړپسے اوږد نه شه ـ او غازیان واپس لاړل ـ

# دَ چوره غزا

په سنه ۱۹۱۹ء کښې دَ افغانستان دَ دریم جنګ واقعه پیښه شوې وه ـ دَ دغه جنګ په موقع ټول سرحدی قبائل لکه دَ سنه ۱۸۹۷ء په شان په یو ځل اویو وخت دَ انګریزانو په خلاف راپورته شوی

وو۔ او په دے کال کښے دَ انګریزانو او قبائلو ترمنځه دومره خونړی جنګونه شوی وو۔ چه هغه دَ تاریخ یو ځان له باب دے۔ دَ مثال په طور په دے یو کال سنه ۱۹۱۹ء کښے انګریزانو صرف په وزیرستان باندے ۱۱۱ حملے کړے وے۔ چنانچه په دے کال سنه ۱۹۱۹ء کښے افریدو غازیانو هم په فرنګی ناراسته نه ووه کړے۔ په ړکه۔ په تورخم په علی مسجد په زنتاره په کټه کشته په جمرود دے دَ فرنګی دَ فوځونو مقابله کړے وه۔ دَ دغے نه علاوه دَ خیبر رائفلز آفریدی ځوانان سره دَ وسلو او سرکاری وردیو دَ خپل اولسی لښکر سره ملګری شوی وو۔ او په فرنګی ئے سخته تیره کړے وه۔ په دے تولو واقعاتو کښے دَ چوره یار محمد خان دَ انګریزانو په خلاف ډیر لوئی کارا وغزا ګانے کړے وے۔ هرکله چه دَ افغانستان او فرنګی په منځ کښے عارضی صلح اوشوه۔ نو دَ یار محمد خان دَ چوره دَ قبائلی سردار نه ئے دَ بدل اخستو دَ پاره په چوره حمله اوکړله۔ په وادئ چوره باندے دَ انګریزانو لښکر دَ حملے دَ پاره د ۱۲، او ۱۳ ستمبر په منځنۍ شپه کښے روان شه۔ فوځ ئے په درے برخو تقسیم کړے وو۔ یوه برخه فوج سحر وختی تقریبًا څلور بجے دَ چوره کنډو او نیولو۔ بلے برخے فوج دالاچی کنډو اونیولو۔ او دریمه حصه فوج دَ چوره کنډو نه جنوب طرف ته په شوا نه کښے مورچه شه۔ په دے لښکر کښے سواره۔ پیاده فوج توپ خانه وغیره هر قسم وسله موجوده وه۔ چه افریدی غازیان ترینه خبر شول۔ نو فقط څلویښت شاه ځلمی ورته مخے ته پریوتل ډزے ئے شروع کړے او دَ مازیګر پنځه بجو پورے دا دومره لوئ فوځ دغه څلویښت کسه بهادرانو پښتنو حصار کړو۔ مخکښے تګ نه ئے پرے نښو دو۔ چه دَ دے ځائ نه په شا شول نو بیا غازیان

ورته په سارا ګرهئ کښے مورچه شول. دوباره مقابله شروع شوه.
داځای به اندازتا دَچوره نه یونیم میل دے خوا وی. دَ
دغه ځای نه انګریزانو توپے چل کړے دَغلورنیم انچواو شپږ انچوخُلے
والا غټے توپے ئے سرکړے په چوره ئے ګوله باری شروع کړه.
دَ پاسه هوائی جهازونو ګوله باری کوُله. لکه چه دَیو ډیر
لوئ حکومت سره مقابله وی. په دغه منځ کښے افریدو یو
هوائی جهاز راوغورزولو چه په هغے بمباری بند شوله.
بیا هوائی جهازونو هغه خواته مخه نه کوله. دَاوه ټیموبجو
پورے خونړے جنګ روشه. په دغه هومره وخت کښے
خاص په چوره باندے یوولس ګولئ پریوتلے وے. آفریدو
بیا سارا ګرهئ اوچوره دواړه خالی کړی وو. لیکن انګریزی
فوځونو اوتوپونو هغه شان ګوله باری کوُله. دَدوه بجونه
رو ستو دَ فرنګی فوځ په چوره ورننوتلو. کلے خالی وو. فوج
ورلاندے وت. تر پنځه بجو پورے دَ کلی کودونه ئے لوټے
لوټے کړه. بیا فوج واپس شه. مګر دَظلم داستانئے پاتے
شه چه ترعمرونو به یادیږی.

دَ دغے نه روستو دَ آفریدو او انګریزانو
بیا پړ یوتله. مارے داړے به کیدلے. انګریزان
هم کله دَ افریدو په یو قوم برید کړے کله په بل.
او افریدو هم پړے نارا سته نه کوله آخرچه فرنګے
تنګ شه جرګے ئے شروع کړلے. په مارچ سنه ۱۹۲۱ء کښے دَ
افریدو نورو قبیلو صلح اوکړله. مګر زخه خیلو دَفرنګی
ظلم ډیره ولے نه شه روغه ئے اونه کړله. دَ زخه خیلو

او فرنګی ورانه هم دغه شان جاری وه . آخر داچه په فروری سنه ۱۹۳۲ء کښې زخه خیل ے هم رضا پخلا کړل .

# دَ کجورئ غزا

دَ آفریدو علاقه دَ پېښور ښهر سره په پوله پرته ده . سنه ۱۹۳۰ء په صوبه سرحد کښې دَ سیاسی تحریکونو دُ عروج زمانه وه . دَ هغے اثر په افریدو هم پریوتلو . په ۲۳ر اپریل سنه ۱۹۳۰ء انګریزانو په قصه خوانئ کښې ګولئ اوچلولے . سوونه مسلمانان ے شهیدان کړل په دغه شهیدانو کښې کنړ قبائلیان هم وو . قبائل پرے راپورته شول . افریدو هم احتجاج اوکړ . فرنګی پرے بداومنل . دَ افریدو لښکر کجورئ ته راغونډ شه په توره چینه پریوتلو . فرنګے نور هم بېخوده شه . توپے ے ورته مخامخ کړلے . افریدو ته هم ننګ اوغیرت اودیده را مخکښے شول په ۵ رجون سنه ۱۹۳۰ء ے پېښور ښهر قلابند کړ . دَ مکړئ ګودام سرکاری میګزین ے لوټ کړ . په وزیر باغ پراته وو . فرنګی په افریدو باندے نور زیاتے شروع کړ . دَ افریدو شاه خلمی بیا په ۱۳ر اګست دَ پېښور ښهر نه تاؤ شول . دَ ښهر خلقو به هم امداد ورکولو . یوه هفته ے دَ پېښور ښهر محاصره کړے وو . په ۲۰ر اګست سنه ۱۹۳۰ء واپس شول په دغه یوه هفته کښې دَ انګریزانو فوځ په بالاحصار کښې ګیر وو . په دغه دوران کښې دَ آفریدو شاه خلمو یوه دسته دَ پېښور ښهر جنوب طرف ته په وزیر باغ پرته وه . دَ هغوئ مقابلے ته یوه راجپوت رساله لیږلے شوے وه . افریدو غازیانو چه په شماره باندے فقط دوه سوه وو . هغه پرے راپورته شول .

روغه رساله ئے په محنه کړه . فوجیانو خپل مړی زخمیان په ځای پرېښودل . دَ ښهر په ګنج دروازه راننوتل . په تاخت باندے په بازار کښے زغلیدل په کابلۍ دروازه اووتل . دَ ښهر خلقوئے تماشه کوله . ورپورے خندل .

دَ دے واقعے نه روستو انګریزانو فیصله اوکړه چه دَ کجوړی میدان قبضه کړی . لښکر ئے اوکړ . افریدی ئے مقابلے له راغلل . دَ سنه ۱۹۳۰ء روستنئ ورځے او دَ سنه ۱۹۳۱ء ابتدائی میاشتے په جنګونو کښے تیرے شوے . انګریزانو دَ کجوړی په میدان کښے سړک جوړه ولو . او افریدو پرے ګولئ وره ولے . چه فرنګے تنګ شه جرګے ئے شروع کړے دَ کجوړی په میدان ئے دَ افریدو دَ ملکیت حق تسلیم کړ . په ۳ ر اکتوبر سنه ۱۹۳۱ء په جمرود کښے یوه معاهده اوشوله او په دے شان سره داکشاله ختم شوه .

# نامور غازیان

دَ افریدو او انګریزانو تر منځه چه کوم جنګونه شوی دی . او کومے غزا ګانے شوی دی دَ سنه ۱۸۲۶ء نه تر سنه ۱۹۲۷ء پورے په یوسل یو کال کښے بے شمیره داسے نامور غازیان میدان ته راغلی دو . چه هغوئ په خپل بے مثاله شجاعت ، جوانمردئ او بهادرئ ډیر لوئ نوم ګټلے دے . او دَ خیبر ایجنسئ دَ ملاګوریانو شلمانی او شنواری او آفریدی قومونو دَ افتخاراتو په ګټه کښے ئے اضافه کړے ده . چه په دغے کښے دَ

غازی کمال خان[1] ملک دین خیل آفریدی ۔ غازی ملتان[2] خان
زخه خیل آفریدی۔ عجب[3] خان آدم خیل آفریدی ۔
ملک سردین[4] جواکی افریدی ۔ کمل[5] خان کلا ۔ آدم خیل افریدی
وغیره نو مونه د یاد ولو دی۔

---

# څلورم باب

# دَ

# مُهمندو اواُتمانخیلو

# غرځګانې

[ مونږه په دے باب کښې دَ مهمندو او اتمانخیلو دَ علاقو غرځګانې په یو بل پسے منځ ترمنځه بیان کړے دی۔ ځکه چه دا دواړه علاقے یو بل ته ډیرے نزدے دی۔ اواکثر غرځګانې دواړه قومونو شریکے کړے دی۔ اونن هم دَ اتمانخیلو څه حصه علاقه په مهمند ایجنسۍ کښې شامله ده۔]

[ اثرافغانی ]

---

# دَ مهمندو او اتمانخیلو

## غزاګانے

په ۱۸۴۶ کښے چه دَ لاهور دَ فیصلے مطابق دَ انګریزانو استحنت دیره نت پیښور ته راغے. او دَ دغه نه وړاندے چه انګریزانو په ۱۸۴۱ کښے په افغانستان اولنۍ حمله کړے وه. په هغه زمانه چه دَ مهمندو ایجنسیٔ دَ لوئر مهمند (بنګښی مهمندو) او اپر مهمند (پاسنی مهمندو) کوم سیاسی وضعیت وو. دَ هغے په باب کښے دَ تاریخ صولت افغانی تالیف دَ زرداد خان ناغر طبع نولکشور پریس ۱۸۷۳ صفحه ۵۹۹ تا صفحه ۵۶۱ و صفحه ۵۶۵ تا ۵۶۶ بیان دَ لوستلو دے دلته دا یاد ول پکار دی چه دَ معاهده ګندمک جون ۱۸۷۹ پورے دا علاقه دَ افغانستان سره متعلق وه او دَ دے علاقے مشرانو له به امیر کابل مواجب ورکول. بیا چه امیر عبدالرحمان دَ معاهدهٔ ګندمک تصدیق په ۱۸۹۳ کښے اوکړ. نو دَ دے علاقے سیاسی تعلق په برطانوی هند پورے محدود شه. زرداد خان ناغر لیکی:

دَ مهمندو ملک غریزه علاقه ده دَ پیښور نه شمال مغرب طرف ته واقع ده. دَ دے علاقے شمال طرف ته باجوړ او کونړ. مغرب طرف ته ننګرهار. جنوب مغرب طرف ته شلمان. جنوب طرف ته پیښور او مشرق طرف باجوړ او اتمانخیل پراته دی. جنوب طرف ته سیند دریائے کابل دے. دلته هم (لویر مهمند) پراته دی. دَ امیر کابل سرپرستی تسلیم کوی. شپږ زره روپۍ

مواجب ورکولے شی۔ په اوچته پېړۍ کښې دَ مهمند قوم
شپږ لوئ قبائل دی۔ تقریبًا دیارلس زره (۱۳۰۰۰) ملاتړ
یعنې جنګی ځوانان میدان ته راوکښیلے شی۔ دَ کومے
ورځ نه چه فرنګی پنجاب قبضه کړے دے۔ او پیښور ته
راشریک شویدی۔ مهمند دَ فرنګی په خلاف دَ جهاد
میدان ته راوتلی دی۔ او فرنګیانو ته نقصان رسوی۔
دَ فرنګی سره دَ مهمندو دَ برخلافئ بله وجه دا ده۔
چه په سنه ۱۸۴۱ء کښې چه انګریزانو په کابل حمله کړے وه
نو دَ لالپورے خان سعادت خان مورچه خیل مهمند دَ
انګریزانو سخته مقابله کړے وه۔ په دغه وجه څه وخت
چه په کابل باندے دَ انګریزانو پنجه ښنه شوه۔ نو دَ
سعادت خان ورارہ یار خان ئے دَ لالپورے خان کړے
وو۔ او چه کله په سنه ۱۸۴۳ء کښې دَ انګریزانو فوځونه دَ کابل
نه راواپس شول او سعادت خان بیا د لالپورے خان
شه۔ نو هغه دَ فرنګیانو برخلاف دَ ټول مهمند قوم
راپورته کولو مهم له زور ورکړے دے۔ دَ مهمند قوم
جغرافیائی پوزیشن داسے دے۔ چه انګریزانو ته په
خاص طور سره تکلیف ورکولے شی افغانستان ته چه
په موجوده وخت کښې کومے دوه لارے او سړکونه تلی
دی۔ هغه دَ دوئ په علاقه کښې تیر شوی دی۔ او په
خطوه کښې دی دَ مهمند قوم دَ درے ښاخونو ترکزی۔
حلیم زی او پنډیالی مهمند دَ ضلع پیښور په پوله پراته
دی۔ بلکه دَ دے درے واړه قومونو یو څو کلی دَ ضلع

پیښور په حد ودوکښې دی. چه په مجموعی طور سره لس زره روپئ سالانه خراج ئے دا تومونه اخلی. په سیاسی طورسره دَ دے قوم خلق دَ امیر کابل سره تعلق لری. لیکن دَ ضلع پیښور دَ جائید اد په وجه دَ پیښور دَ حکومت سره ئے هم تعلق دے. مگر هرکله چه دَ دے قوم تعلق دَ فرنګیانو سره ښه نه دے. نو دَ دوی په وجه دَ پیښور ضلع ټول خلق په عذاب کښې ګیر دے. او علاج ئے ډیر ګران دے"

# دَ میچنی غزا

په سنه ۱۸۴۹ء کښې چه دَ پیښور په علاقه باندے دَ سکهانو دَ حکومت دور ختم شه او دَ انګریزانو دور راغے. او ورپسے انګریزانو دَ پیښور په میدانی علاقه باندے دَ خپلے قبضے ټکولو دپاره اقدامات شروع کړل. او دَ دے ضلع په شمالی حصو کښې دَ ډیرئ شبقدر او میچنئ همغه علاقوطرف ته ئے پښے غزول شروع کړل. چرته چه دَ علیم زی. ترکزی او برهان خیل (پنجپائی) کلی او جائیدادونه وو. نو په سنه ۱۸۵۰ء کښې مهمندو قامونو دَ فرنګی دَ عمل دخل مقابله شروع کړه. لښکر به ئے اوکړ. په کومه کومه علاقه چه انګریزانو قبضه ټکولے وه په هغے به ئے چپاؤ اوکړ. کلی به ئے لوټ او تالا کړل. مال او څاروی به ئے ترینه بوتلل. سری به ئے ترینه ګرفتار کړل دَ ځان سره به ئے بوتلل. په دے چه تاسو دَ فرنګی اقتدار ته ولے غاړه کیښوده. دَ داؤدزی او خلیل او دَ دوآبے دَ

ګکیانړو مال او څاروی چه به دَ مهمندو دَغرونو لمنو ته ځنګلی زمکو ته دَڅرید لو دَ پاره پخوا تلل هغه ئې بند کړل. چرته چه فرنګی څوکئ جوړې کړې وې هغه به ئې سیزلې. چنانچه هرکله فرنګیان ډیر تنګ شول نو دَ کرنل کولن کیمبل المعروف په لارډ کلایډ ی په کمان کښې ئې یو لوئ مضبوط فوځ په سلسلهٔ ۱۸۵۱ء کښې په مهمندو باندې دَ حملې کولو دَ پاره اولیږه چه په ترکزائ او علیم زائ مهمندو باندې دَ میچنې په مقام حمله اوکړی. او دغه خلقو له سزا ورکړی. لارډ کلایډ ی په ډیر زور کښې روان شه او دَ فرنګی فوځونو په میچنې حمله اوکړله. دَ مهمندو غازیان دَ خان سعادت خان مورچه خیل، ترکزی مهمند په مشرئ کښې دَ فرنګی فوځ مقابلې ته را اورسیدل. جنګ شروع شه. ټول مهمند قام ورله را اوچلیدهٔ. لاس په لاس او سینه په سینه جنګ وو. دَ سرجارج ینګ هزبند بیان دے. چه په دغه زمانه دَ فرنګی دَ فوځ سره توپکونه به نه وو. فقط تورې او نیزې به ورسره وې. البته دَ غازیانو سره به چقماقی توپکونه موجود وو. او تورې نیزې. بلې اولغانئ اوږدے چړے او جمدرونه به هم ورسره وو. ظاهره خبره ده چه دَ تورو او پیش قبضو جنګ لاس په لاس جنګ وی. مهمندو غازیانو ښه مړانه ښکاره کړه. جنګ اوږد شه دَ تاریخ صولت افغانی بیان دے:-

"لڑائی تین مہینے تک جاری رہی" (صفحہ ۲۰۰)

یعنے پوره درے میاشتے جنګ وو. کله لرے او کله برے. په دے جنګ کښې دَ میچنې کلې وران شه. فصلونه تباه شول. شپه او ورځ جنګ وو. چه دَ غازیانو لښکر والپس شه. دَ فرنګی سپاهیان

د میچنیٔ په کلی پریوتل۔ او څو ورځې روستو واپس شول۔

## دَ میچنیٔ دوٌمه غزا

دَ میچنیٔ دَ اولنیٔ غزا نه روستو دوباره دَ مهمند قوم دَ پاسنیٔ او ښکینیٔ قبیلو غازیان راجمع شول۔ سعادت خان دَ لالپورے ئے مشرو و۔ احمد شمیر۔ بورکل۔ مکرم۔ رحیمداد نورے علیم زی مهمند و ورسره مَلا تړلے وه۔ چه دَ غازیانو لښکر په میچنیٔ راجمع شه۔ په پیښور دَ حملے په تکل کښے شه۔ دَ انګریزانو فوځ دَ کرنل سرسی کیمپبل په کمان کښے دَ مهمندو غازیانو مقابلے ته ور وړاندے شه۔ سخته جګړه اوشوه۔ دَ دواړه طرفه نه جنګیالی ځوانان په میدان پریوتل۔ چه فرنګے پوهه شه چه په جنګ باندے دَ مهمندو غازیانو نه ګټه نه ده نو دَ جرګو مرکو په ذریعه ئے خپل مطلب سرکولو ته لاس واچاوه۔ په علیم زی مهمند کښے ئے لاړ بیا موندہ سردار شمشیر احمد صلح کولو ته غاړه کیښوده چه علیم زی په روغه کولو رضا شول۔ لښکر کمزورے شه۔ ترکزو صلح اونه کړله۔ جنګ اوږد شه۔ فرنګیان دیته جوړ شول چه علیم زی ترکزی۔ برهان خیل دے خپل کلی خوری لیکن دَ جنګ نه دے لاس واخلی۔ خو خبرے څه ځای اونه نیوے۔

## دَ میچنیٔ دریمه غزا

دَ ۱۸۵۲ سنه دَ میچنیٔ دَ دویمے غزا نه روستو تر ۱۸۵۴ سنه پورے دَ انګریزانو او علیم زو، ترکزو او فرنګیانو ترمنځه واړه جنګونه کیدل۔ پتنه ختمه شوے نه وه۔ په ۱۵ نومبر ۱۸۵۳ سنه دَ آوارے

رضلع پېښور) دَ علاقې عليم زو مهمندو دَ سردار شمشير احمد
(احمد شير) و غيره يو ولس ملکانو په مشرئ کښې دَ انګريزانو
سره يو معاهده کړے وه چه هغه دَ انګريزانو دَ معاهدو
په فهرست اور يکارډ کښې په اقرارنامه ۲۸ ياديږى ـ ليکن
په دے هرڅوک پوهيږى چه انګريزانو چه کوم معاهدے
به کولے هغه به ئے دَ خپلو مفادو دَ حفاظت دَ پاره کولے ـ
چنانچه ډير زر عليم زو ملکانو ته معلومه شوه چه دغه معاهده
خو سراسر دهوکه وه ـ نو دَ برهان خيل ـ عليم زى ترکزى قومونو
هرڅومره خلق چه په آواره کښې دَ داؤدزو او دوابے په علاقو کښې
پراته وو خپلے کړے ئے بره کندا ب ته او ليږلے ـ لښکرے ئے اوکړے
پاسنى مهمندو ئے امداد له راغلل ـ جنګ ئے شروع کړو ـ په
اګست ۱۸۵۲ کښې دَ انګريزانو فوځ دَ کرنل سرمنهى کا ټن
په کمان کښې دَ مهمندو مقابلے له ورغے ـ دَ مهمندو لښکر دَ
کابل سيند نه را پورے وتلے وو ـ دَ خليلو او داؤزو په علاقه
پروت وو په بله غاړه په ميچنئ هم پروت وو جنګ اونښت
تود شه ـ زور ئے واخيست کله لرے کله برے دَ فرنګى فوځونو
ته ئے سخت نقصان اورسؤلو ـ انګريزانو بيا خوشامند ه
شروع کړه جوګے ئے سازے کړے ـ ملکان ئے رضا کړل ـ
دَ پېښور ضلع په علاقه کښې دَ عليم زو او ترکزو په جايداد دونو
ئے دَ دے قومونو حقدارى او منله ـ زبانى روغه اوشوله ـ
خه ليکل را ليکل پکښې اونه شول ـ البته دَ پنډيالئ مهمندو
روغه اونکړه ـ دَ پنډيالى دَ مهمندو دړے واړه قومونه
برهان خيل ـ عيسى خيل ـ منصور شاه خيل دَ فرنګى په خلاف

په میدان جنګ کښې په نره او دریدل دَ دوی دو نره مورچه خیل
چه په لالپوره پراته دی هغه ورسره په ملا تړ کښې ولاړ وو۔
دَ سنه ۱۸۵۴ء نه تر نومبر سنه ۱۸۶۰ء پورے دَ فرنګی سره اوړزول۔
آخر داچه فرنګیانو په جرګو مرکو په سنه ۱۸۶۷ء کښې دَ پنډیالئ
ملک نواب خان رضا کړ۔ او دَ فرنګیانو غوږونه لږ ساړه شول۔

# دَ ناوی ډنډ غزا

ناوی ډهنډ دَ اتمانخیلو په علاقه کښې دے۔ دَ باجوړ په زمکه
دَ مهمندو په پوله دَ انبار په علاقه کښې چه دَ اتمانخیل قوم
دَ بوټ کور کوم اتمانخیل آباد دی۔ دَ هغوئ نه مشرق طرف
ته دارنګ برنګ اتمانخیل پراته دی۔ دَ دے قبیلو خلق دَ
پنجکوړے سیند (ددیاے سوات) په جنوبی غاړه دَ غره په
لمنو کښې په پرانګ غار۔ کنډ هیری۔ لزئ اوبه۔ سپین خړی۔
نوی ډهنډ۔ کوټ۔ ټوټهئ۔ آکره۔ مینه۔ اریان کوټ کښې
هم پراته دی۔ اتمانخیل۔ ساده۔ سوچه۔ بهادر۔ توریالی
او جنګیالی پښتانه دی۔ تران غازیان دی۔ دَ فرنګی دَ راتللو
نه روستو که نور و پښتنو قبائلو دَ فرنګیانو سره دَ خپلے علاقے
په پوله او برید جنګونه کړل۔ اتمان خیلو په غزا پسے مزے
کړلے۔ دَ خپلے پولے او برید نه ډیر جدا دَ پیښور او مردان
په علاقو کښې دَ انګریزانو په فوجی کیمپونو حملے کړلے۔ چنانچه
هم دَ دغه شان واقعاتو په وجه دَ ناوی ډنډ دَ غزا واقعه
پیښه شوے وه۔ دَ دے غزا دَ واقعاتو بیا نولو نه وړاندے
دَ هغه حملو بیا نول مناسب معلومیږی چه اتمانخیلو غازیانو

دَ مردان او پيښور په علاقو کښې کړے وے۔

## په کوجر ګړهئ حمله

دَ ۱۸۵۱ء په آخر کښې فرنګيانو دَ وادئ پيښور او دَ يوسفزو دَ علاقے دَ پيمائش او نقشه کشئ کار شروع کړے وو۔ دَ ملک خلق پرے سخت ناراضه وو۔ او مخالفت ته ئے ملا تړلے وه۔ دَ دے ګران کار ذمه مسټر جيمز نومے يو فرنګی اخيستے وه او دَ دغه دَ حفاظت دَ پاره دَ ګائيډ پلټنې رسالدار فتح خان خټک مقرر شوے وو۔ جيمز او فتح خان دَ پيمائش دَ کار دَ پاره سره دَ يو سے فوجي دستے دَ مردان ښهر نه دوه ميله شمال طرف ته دَ کوجر ګهړئ په مقام ديره وو۔ چه دَ شپے په وخت کښې مکرم خان اتمانخيل دَ ناوی ډهنډ دَ دوه سوه سورو غازيانو سره پرے حمله او کړه۔ جيمز په دغه شپه چرته بل ځائ شپه وه۔ يو شه رسالدار فتح خان خټک ژوبل شه مګر مړ نه شه۔ دَ ګائيډ پلټنې سپاهيان مړه او ژوبل شول۔ او غازيان کامياب واپس راغلل۔ سرجارج يټک هزبنډ ليکی چه دا حمله دَ بهادر مکرم خان په کمان کښې شوے وه۔ سرجارج محکښنې ليکی: "مکرم خان (اتمانخيل) جو سرحد کے نہايت دلير اور مشہور وارستہ مزاج اشخاص ميں سے تھا۔" (صفحہ ۵۲ و ۵۵)

يعنے مکرم خان ډير زيات زړور انسان وو۔ او دَ صوبه سرحد په مشهورو بهادرانو کسانو کښے و تلے بهادر وو۔

## په چارسده حمله

دَ ضلع پيښور علاقه خليل دَ متره نومے کلی يو دوه اربابان وو۔ دَ يو نوم وو اجون خان۔ دَ بل نوم وو سردار خان۔ په دے دواړو کښے سردار خان ځلے وو۔ او اجون خان دَ پوخ عمر وو۔ دَ صولت افغانی نومے تاريخ بيان دے۔ چه دا دواړه ډير توديالی، نړان، او ...

زور، طاقت او شجاعت بائند ے غاورہ وو ۔ پہ سنہ ۱۸۵۰ء کښے چہ فرنګیانو
پہ میچنیٔ حملہ اوکړہ نو دا حملہ ئے دَ خلیلو دَ علاقے پہ لارہ کړے
وہ ۔ دمترے کلے دَ میچنیٔ پہ لارہ کښے دے ۔ دا دوارہ اربابان دَ
خلیل قوم دَ غازیانو سرہ دَ مهمند و غازیانو امداد لہ تلی وو ۔
اوچہ جنګ ختم شہ ۔ نو بیا بیرتہ مترے تہ رانغلل ۔ بلکہ دَ اتمانخیلو
علاقے تہ لاړل ۔ دَ کنهٔ هیری او پړانګ غار پہ علاقہ پریوتل ۔ هلتہ
ئے دَ غزا او جهاد مهم شروع کړ ۔ لښکرے ئے تیار کړے ۔ پہ دغہ زمانہ
دَ سوات ۔ بونیر ۔ چمله ۔ امازی ۔ هزارہ او سمہ پہ علاقو بائندے دَ
سید اکبر شاہ بادشاہ صاحب پہ مشریٔ کښے غازیانو جهاد و نہ
کوُل ۔ سید اکبر شاہ امیر جهاد وو ۔ اجون خان خلیل دَ سید اکبر شاہ
بادشاہ صاحب سرہ صلاح اوکړہ دَ هشتنغر او دَ سمے دَ علاقو کوم
خانان او ملکان چہ دَ غزا دَ پارہ دَ سید اکبر شاہ بادشاہ صاحب
سرہ دیرہ وو دَ هغوی یو لښکرے دَ اجون خان ارباب خلیل امداد
لہ راواستیرہ ۔ دَ مالاکنډ دَ سمے رانړی زی غازیان هم ورسرہ شول
دَ غازیانو پورہ لښکر تیار شہ راروان شہ او پہ ۲۱ اپریل سنہ ۱۸۵۲ء
ئے دَ هشتنغر پہ مرکزی مقام چارسدہ حملہ اوکړہ ۔ دلتہ دَ انګریزانو
چہ کوم تحصیلدار وو او پہ قام سید وو ۔ هغہ ئے مړ کړ ۔ دَ تحصیل
نور اهلکار او فوج هرځومرہ چہ وو هغہ ئے مړہ کړل ۔ خزانہ
ئے لوټ کړہ ۔ سرکاری بارکونہ ئے تالا کړل ۔ دَ تاریخ صولت افغانی
بیان دے چہ "کل ضلع ہشتنگر میں تہلکہ مچ گیا" او دَ دے کامیاب حملے نہ دوستو
غازیان واپس لاړل ۔

چنانچہ دَ اتمانخیل قوم دَ دے قسم حملو او غزاګانو دَ لاسہ چہ فرنګے
تنګ شہ نو پہ میاشت دَ مئی سنہ ۱۸۵۲ء کښے دَ اتمانخیل قوم برخلاف

دَ جنګ اعلان اوکړ۔ او دَ غازيانو دَ اتمانخيلو په ناوے ډهنه نومے مقام ئے حمله اوکړله۔

سر جارج ينګ هزبنډ ليکی چه دَ کرنل سرکالن کيمبل په کمان کښے يو بريګيډ فوج په ناوی ډنډ حمله اوکړه۔ دَ دے مقام تعريف دا دوچه په ټولو قبائلی علاقو کښے چه په هر څومره مقامات دَ فرنګی فوځونو حملے کړيدی۔ په هغے کښے ناوے ډنډ ډير مستحکم او مضبوط مقام وو۔ دَ کلی نه څلور واړه طرف ته ډيره پخه او مضبوطه قلا تاوُ وه چه په هغے ورختل ډير ګران وو۔ انګريزانو دَ قلا سره نزدے پړاوُ اوښولو جنګ لا شروع شوے نه وو۔ فوج له سامان او رسد راچليده او دَ اتمانخيلو سره په خبرو اترو کښے دَ وخت اړولو کوشش کيدلے شه په دے چل دَ انګريزانو فوځ قلا ته دومره ورنزدے شه چه يوبل ئے ليدلے شه۔ بلکه آوازهم آوريدلے شه چه په دغه منځ کښے يوناساپه مسلمانان غازيان دَ قلا نه پرے را اوتل او دالله اکبر چغه ئے پورته کړه۔ دَ پښتنو اتمانخيلو غازيانو دَ دغے ورځے دَ حملے کومه منظرکشی چه سر جارج ينګ هِزبنډ کړيده هغه دَ هغه پخپلو الفاظو کښے دلوستلو ده۔ ليکی :-

"انگریزوں پر حملہ کرنے اور ان کے خیموں پر بلائے ناگہانی کی طرح ٹوٹ پڑنے کی غرض سے نکلے۔ یہ سپاہی گو شکستہ حال تھے۔ مگر دل مضبوط اور بازو قوی رکھتے تھے۔ اور ان کے اسلحہ بھی ہمارے ہتھیاروں سے کسی طرح کم نہ تھے۔

انگریزی پہرہ داروں نے فوراً ان کی روانگی کی اطلاع دی۔ مگر فوجوں کو مسلح ہونے۔ سامان لینے اور صف بستہ ہونے میں دیر لگتی ہے۔ برخلاف اس کے سرحد کے جری افغان آندھی اور بھونچال کی طرح ایسے آتے ہیں

کہ دل سینوں میں دہل جاتے ہیں۔"

یو ځلمی انګریز افسر جی۔ این۔ هارډ ننګ بهادری اوکړه۔ خپل فوځ ئے ځه نه ځه بچ کړ۔ جنګ اوشه۔ مګر انګریزانو چه په کوم خیال حمله کړے وه۔ چه دَ ناوے ډنډ قلا به قبضه کړی۔ هغه ارمان ئے پوره نه شه۔ او هرکله چه پوهه شول چه دَ ناوے ډنډ وهل اوبیا دَ دغه ځائ نه وړاندے دَ مقام دروازګئ په لاره تلل او ځکښے دَ کوټ۔ مینه۔ توتئ۔ آکره نوے غرنیزه درو۔ تنګو او سختو خطرناکو مقاماتو ته ورننوتل او دَ هغے رالاندے کول ګران کار دے۔ نو فوځ په قبله ئے مخه اوکړه۔ او دَ هشنغر دَ مشهورکلی تنګی په مقام ئے پړاؤ اونیولو۔

## دَ پړانګ غارغزا

هرکله چه دَ فرنګیانو فوځ په تنګی بانډے کیمپ اولګاوه۔ نو داتمانخیلو په مشهور مرکزی کلی پړانګ غار ئے دَ حملے کولو اراده اوکړله۔ داکلے دَ غارے دَ اتمانخیلو په قبلیزه حصه کښے په دامنے بریډ دے یعنے دَ اتمانخیلو دَ غرونو په جنوبی لمنو کښے دَ هشنغر علاقے ته سیلمه او دَ اتمانخیلو ( دَ انبار اتمانخیل ) او دَ پنډیالئ مهمند و ته نزدے دے۔ دَ دے ځائ دَ وهلو نه دَ فرنګی غرض په آواره او دَ غره په لمنو کښے آباد و اتمانخیلو طاقت ختم کول وو۔ په پړانګ غار چه فرنګی کومه حمله کړے وه دَ دے په حقله په تاریخ صولت افغانی کښے لیکی :۔

" تنګی ته دَ انګریزانو یو بریګیډ فوځ دَ وړاندے نه راغلے وو۔ پنځه زره فوځ ئے نوررا جمع کړ۔ دَ دوئ

په مقابله کښے دَ اتمانخیل قوم خلق وو. او ورسره دَ
هنوئ په امداد کښے دَ روانی (دوانړی) قوم خلق
وو. او څه دَ سید اکبر شاه بادشاه صاحب دَ ستهانے
دَ لښکر غازیان وو. چه مخکښے دَ ارباب اجون خان
خلیل او ارباب سردار خان خلیل امداد له په
چارسده باندے دَ حملے کولو په موقع دلته
راغلی وو. لا دلته پاتے وو. دَ ناوے ړ سنړ
په غزا کښے موجود وو. او دَ پړانګ غار غزا
له هم دَ اتمانخیلو دَ امداد دَ پاره راغلی وو.
او دغه ټول غازیان په شماره باندے ۳۰۰۰ درے زره وو"

په مئ ۱۸۵۲ء کښے انګریزانو دَ کرنل سرکولن کیمبل المعروف به
لارډ کلائیډی په کمان کښے حمله اوکړله. دَ فرنګی فوځ دَ کنډهیری
او ابازی کلی نوے کلو په منځ کښے په میره باندے دَ تنګی کلی نه
شمال طرف ته حمله اوکړله. دَ غره په لمن (کوهدامن) کښے دَ اتمانخیل
قوم په مشهور کلی پړانګ غار (پړان ګهر) ئے چپاؤ اوکړ. څو ورځے
پړله پسے جنګ اوشه. دَ فرنګی فوځ په کلی ورغے ورانے ئے کړ. نور
دَ غره دروته دَ ننوتلو تاب ئے نه لیده واپس شه. په ابازی نوے
کلی ورغلل دا کلے دَ دریائے پنجکوړه په غاړه دَ مهمند او اتمانخیل
په برید او دَ هشنغر په بره سر دے. دلته ئے قلاجوړه کړه. چه
دَ اتمانخیلو او مهمندو دَ حملو نه دَ هشتنغر دعلاقے حفاظت اوکړے شی.

لکه چه مخکښے ورته اشاره شوے ده په دے غزا کښے دَ
(روانی، دوانړی) قبیلے پښتنو حصه اخستے وه. دَ دے قبیلے خلق
په دغه ورځو کښے په کنډهیری کلی باندے پراته وو. دَ فرنګی

فوځ چه دَ پړانګ غار دَ جنګ نه را اوګرځیده په کنړهیرۍ ئے
حمله اوکړه له کلے ئے وران کړ. او دَ دے تمام مشران ئے اونیول
لږے ورځے پس دَ دروانی قبیلے مشران راغلل. معافی ئے اوغوښتله.
درخواست ئے منظور نه شه. البته کرنل میکسن چه په دغه وخت کښے
دَ پیښور کمشنر وو هغه تر ینه یو اقرار نامه واخیستله. چه
دَ انګریزانو او قبائلو دَ معاهدو په فهرست او ریکارډ کښے دَ هغے
۹ نمبر دے. دَ دغے اقرار نامے مطابق دَ دروانی قبیلے خلقو کړے
دَ کنړیرۍ نه اوچتے شوے او دَ جلاله (ضلع مردان) په میره ئے
دیره اونیوله. جلاله ته دَ درانی قوم اتیا کهے دَ کنړیرۍ نه راغلے
دے. په دوی کښے یو کورنۍ دَ پیرانو دَ خاندان وه چه دَ حضرت
اخوند محمد قندهاری کاکړ دَ خوئ پیر محمد صالح المعروف په پیر صالح
اولاد دے. دَ پیر صالح زیارت په طورو (مردان) کښے دے. دا کورنۍ
دَ درانی قوم ستانه دار دی او په دے غزا کښے دَ پیرانو دَ دے کورنۍ
مشرانو ښه مړانه او بهادری کړے وه. دَ دروانی قوم سره یو بله
کورنۍ چه دَ کنړیرۍ نه جلاله ته په کهه را غلے وه هغه دَ اخوند
زادګانو کورنۍ وه چه حضرت میاں صاحب محمد عمر دَ چمکنو دَ
مشهور مرید اخوند صوفی عبدالرحمان دَ دوه ځامنو اخوند زاده
محمد صدیق او خوند زاده محمد رفیق اولاد دے. دَ اخوند زادګانو
په دے کورنۍ کښے اخوند زاده فقیر شاه دَ ناوی په نړ او پړانګ غار
په غزا کښے شامل وو. او بیا چه انګریزانو کنړیرے کلے وران کړه
نو دَ دروانی تمام دَ غازیانو سره جلاله ته راغلی وو. ځما خور ملګرے
حکیم عبدالمالک مجاهد کشمیر دَ دغه غازی فقیر شاه اخوند زاده
نمسے دے. چه دَ خپل نیکه دَ جهاد روایات ئے ژوندی ساتلی دی.

او هُما خوږ دوست پیر ماسم دَ دغه پیرانو دَ خاندان یو بهادر مجاهد دے چه دَ انګریزانو په خلاف په سیاسی تحریک کښے ئے لوئ خدمات انجام ته رسولی دی۔

# دَ میچنئ څلورم غزا

په ۱۸۶۳ء کښے دَ چمله او بونیر په پوله دَ سرکاوئ (امبیله) په مقام دَ سوات دَ بابا جی صاحب په مشرئ کښے غزا شوے وه۔ دَ ۲۰ اکتوبر تا ۲۷ دسمبر ۱۸۶۳ء په دغه غزا کښے دَ مهمند و دَ قبائلی علاقے نه چه کوم مشهور و مشرانو قبائلی سردارانو او روحانی پیشوایانو حصه اخیستے وه۔ په هغے کښے دَ بیدمنئ دَ حاجی ابراهیم صاحب علیه الرحمة. دَ خوائزو دَ علاقے دَ مولانا سید محمد خلیل المعروف په ملا خلیل علیه الرحمة. او دَ لالپوره دے دَ خان سعادت خان مرچه خیل نومونه دَ یاد ولو دی۔ حضرت مولانا نجم الدین المعروف هډے ملا صاحب هم په دغه زمانه دَ مهمندو په علاقه کښے اوسیده او هغه هم دے غزا له بونیر ته تلے وو۔ هرکله چه دَ سرکاوئ غزا ختم شوله۔ او دَ فرنګی فوځونه واپس شول۔ نو په دے خبره چه جنګ په بونیر وو۔ او دَ مهمندو غازیان ورپسے بونیر ته هم اورسیدل۔ په دغے باندے قار واخیستل او فیصله ئے اوکړه چه مهمندو له سزا ورکول پکار دی۔ چنانچه په ۱۸۶۴ء کښے دَ سرکاوئ دَ غزا نه یو کال پس دَ کرنل میکه انلډ په کمان کښے دَ انګریزانو فوځونو یو ځل بیا په میچنئ حمله اوکړله۔ دے غزا له تول مهمند که هغه پاسنے وو۔ که ښکینی وو۔ دَ کامه لال پورے او دَ لکړئ۔ شونکری۔ ناوګئ۔ انبار، او شلمان پورے را اوچلیده۔ او غازیانو دَ هډے ملا صاحب۔ دَ

بید منیٔ حاجی صاحب دَ خوائزو ملاخلیل صاحب او دَ لالپورے
دَ سعادت خان او د اسے نورو قامی مشرانو دَ بیرغونو دَ لاندے
لښکر راجمع کړ۔ او د میچنیٔ په مقام د دوند جنګ اوشه۔ جنګ دَسیند
په دواړه غاړو کیدهٔ۔ بیا دا جنګ ورپسے ښکته شبقدر ته اورسیدٔ۔
دغلته فرنګیانو فوجیٔ قلا جوړه کړے وه۔ غازیانو په قلا باندے
حمله اوکړه۔ اور ئے ورته کړ۔ هغه ئے اوسیزله بازارئے تالا کړ۔ په
دغه موقع ډیر مرګ او ژوبله اوشوه۔ غازیان هم ډیر شهیدان
شول۔ خو دَ فرنګی دَ فوځونو دَ مړو نه ئے هم کندے ډکے کړے۔

## دَ میچنیٔ پنځمه غزا

دَ تاریخ مخزن پنجاب جلد ۲ صفحه ۵۱۷ و ۵۱۸ بیان دے۔ چه په
تاریخ ۱۵ اګست ۱۸۵۷ء باندے فرنګیانو ته خبر را اورسیدهٔ۔ چه
سید محمد امیر نومے یو مولوی دے په قام باندے دَ کنړ سید دے۔
دَ حج دَ پاره مکه، مدینه ته تلے وو۔ بیائے دَ ترکو دَ وطن قسطنطینه
سفر هم کړے وو۔ دَ حج نه چه واپس را اورسیدهٔ نو دره خیبر ته راغے
وو۔ دَ کوکی خیلو افریدو قومی مشران ئے راغونډ کړی وو۔ جرګه ئے ورسره
کړے وه چه راپورته شیٔ چه دَ فرنګی خلاف غزا اوکړو۔ لیکن کوکی خیل
ورسره پورته نه شول۔ دَ هغه ځائی نه رااوکرځیده مهمند قوم له
راغے۔ مهمند و ورسره دغله خبره کړیده۔ دَ جهاد فیصله ئے اوکړه
نن دے که صبا دے مهمند غازیان به په میچنیٔ حمله اوکړی۔ دَ
دے خبر رارسیدلو نه دوه هفتے روستو په یکم ستمبر ۱۸۵۷ء مطابق
۱۰ اردَ محرم الحرام ۱۲۷۴ه دَ عاشورے په ورځ سید محمد امیر بادشاه
صاحب دَ مهمند قوم د یو مضبوط لښکر سره راروان شه۔ په

دغه لښکر کښې دعه ۱۸ نمبر هندوستانی پلټنی دغه سپاهیان هم شامل وو. په دَ ۱۱ دمئی سنه ۱۸۵۷ء دَ هندوستان دَ جهاد آزادئ دغدر دَ اعلان نه روستو دَ پېښور دَ انګریزی فوځ نه جدا شوی وو. او دَ مهمند و علاقے ته آوختی وو. چنانچه دَ مهمند و غازیانو دغه لښکر په میچنئ قلا باندے حمله اوکړله. دَ میچنئ په قلا کښې دَ کلات غلزئ دَ هندوستانی پلټنی فوځیان پراته وو. غازیانو ورته سوال جواب ورا اولیږلو. چه که تاسو خپل سرونو نه او خپل مذهب اسلام بچ کول غواړئ نو قلا په رضا خانی کړئ چه نقصان درپېښ نه شی. دَ دے نه چه دَ پېښور ډپټی کمشنر خبر شه سمدستی ئے دَ آفریدو دَ پلټنی یوه کمپنی دَ امداد دَ پاره ورا اولیږله. دَ کلات غلزئ پلټن او دَ آفریدو پلټن دَ دواړو فوځیان دمهمندو غازیانو لوئ سیلاب ته ټینګ نه شول. غازیانو پرے باندے حزائل توپک ورپورے وهل. قیامتونه ئے پرے راکوز کړل. چپاوُ ئے پرے اوکړ. په زورے دَ قلا دروازے ماتے کړلے قلا ئے اونیوله. غلزئ او آفریدی فوځیان ئے ګرفتار کړل. او ډیرے ملامته کړل چه دا څومره دَ شرم خبره ده چه دَ فرنګی دَ پاره دَ خپلو پښتنو مسلمانانو رونړو سره جنګیږئ:

دَ دغے نه روستو غازیانو جرګه اوکړه. چه په پېښور ښهر حمله اوکړی. په دغه وخت کښې دَ فرنګیانو سره دَ پېښور په مرکزی مقام کښې دومره فوځ نه وو. چه دَ غازیانو دَ حملے مقابلے له ئے لیږلے وے. دَ مکر او فریب او سیاسی حکمت عملی نه ئے کار واخیست او مهمندے ئے پوخل بیا په جرګه اوهل. په دے سلسله کښې دَ تاریخ مخزن پنجاب الفاظ دَ لوستلو دی. لیکی:-

"اس وقت سرکاری فوج ضلع میں اسقدر نہ تھی۔ کہ ان کی سزا دہی اور
مقابلہ کیلئے مامور ہو۔ اور وقت ایسا تھا کہ سرکار انگریزی حکمت عملی کے طور ان کے
ساتھ بہ والدہی اور خوشامد پیش آوے اور اس طرح اپنے ملک کو دشمنوں
(غازیوں) کے حملوں سے بچائے (تاریخ مخزن پنجاب جلد ۲ صفحہ ۵۱۸)
دا مؤرخ محکښې لیکي۔

"چه په دغه وخت کښې په جرګو او مکر او فریب سره
ئې مهمندو ته تجویز وړاندې کړ۔ چه که ستا سو د امطلب
وي چه انګریزانو درنه کوم علاقې لاندې کړیدي هغه
واپس تاسو ته درکړې شي۔ نو په سرکار سخته ده لږ صبر
اوکړئ چه د دهلي د جنګ فیصله اوشي نو د پیښور ضلع
حاکمان به حکومت هند ته رپورټ اولیکي او تاسو له به
ستا سو علاقې په نوؤ او بهترو شرطونو واپس درکړې شي
اوس تاسو د اسې اوکړئ چه سید میر بادشاه صاحب
واپس کونړ ته اولیږئ۔ او خپل یو څو مشران ملکان پیښور
ته را اولیږئ۔ چه زیاتې نوره جرګه او خبرې اترې اوکړو"۔
د فرنګیانو دغه فریب او مکر کامیاب شه۔ مهمند په جرګه
اوغلي شه۔ لښکر خور شه۔ که د مهمندو دغه لښکر خور شوې
نه وې او په پیښور ئې حمله کړې وې۔ نو فرنګي د اتک نه بره
نه شه پاتې کیدې او نن به د دې ملک تاریخ څه نور څه وې۔
د مهمندو عام لښکر خور شه لیکن د میچنئ ترکزي خواره نه
شول۔ د ۸۱ نمبر پلټنې سپاهیان ورسره وو۔ هغوئ د ۵۱ نمبر
هندوستانې پلټنې د سپاهیانو سره خط کتابت شروع کړ۔ او ترکزو
مهمندو په انګریزانو باندې بې واره حملې شروع کړې۔

په دغه منځ کښې ۵۱ هندوستانی پلټنې بغاوت اوکړ او دَ ۱۸ نمبر پنجابی پلټنې سپاهیان دَ فرنګی وفادار پاتې شول. هندوستانی سپاهیانو دَ پنجابیانو په ۱۸ نمبر پلټن حمله اوکړه دَ پنجابیانو نه یې وسله واخیستله په انګریزانو افسرانو یې حمله شروع کړله. جنرل کاټن اولګیده دَ آفریدو پلټن یې دَ ځان سره کړله. په هندوستانی پلټن یې حمله اوکړله. دَ هندوستانی پلټن سپاهیان پرے راواوګرځیدل. جنرل کاټن او آفریدی فوځیان یې په مخه کړل. دَ تاریخ مخزن پنجاب جلد ۲ صفحه ۱۸۱ بیان دے چه:-

"آفریدی پلٹن نے ہندوستانی پلٹن ۵۱ کے سپاہیوں پر حملہ کیا۔ اور توڑیدار بندوقوں سے ان کے ساتھ لڑنا شروع کیا۔ یہ لڑائی پشاور کے پریڈ گراؤنڈ سے شروع ہوئی اور جمرود کے قلعہ کے پاس جاکر ختم ہوئی۔"

دَ هندوستانی پلټن غازیانو دَ آفریدی پلټن سپاهیان په شابلے اوتنبول دَ جمرود پورے یې اوزغلول. او بیا اته سوه ۸۷۱ اویا هندوستانی غازیانو کښې تقریبًا اته سوه په دے جنګ کښې شهیدان شول او نور مینځ ته مهمند و غازیانو ته اورسیدل. او په دے جوړ دَ مهمندو ملکان او دَ آفریدو سپاهیان دَ هندوستان دَ آزادئ دَ جنګ په ناکامیابه کولو کښې په خپله ناپوهئ او بے تدبیرئ او ساده توب حصه دار شول. او بیا چه په ۲۰ ستمبر ۱۸۵۷ء دَ دهلی په جنګ کښې دَ انګریزانو دَ کامیابئ خبر راغے. او دَ هغے نه دوستو انګریزانو دَ مهمندو او آفریدو سره کوسے لوبے اوکړلے. کوم ظلمونه یې پرے اوکړل دا دَ هغه نیکو بدله وه.

# دَ اتمانخیلو غزا

مخکښې دَ خیبر دَ آفریدو دَ غزا کانو په باب کښې دا ذکر شوید ے. چه په
۲۱ نومبر ۱۸۷۸ء انګریزانو دَ درهٔ خیبر په علی مسجد قلا باندے حمله کړے
وه. او په دغے سره دَ افغانستان په خلاف دَ دویم جنګ آغاز کړے وو.
دَ فرنګی فوځ چه دَ تورخم نه وړاندے شو نو دَ دغه ځائ نه دَ جلال آباد
پورے په ۷۰ میله اوږده میدانی علاقه کښې دَ کونړ دَ سیند په دواړه
غاړو دَ مهمند قوم خلق پراته دی. دَ مهمندو غازیانو په فرنګی لاس
پورے کړ. په لال پوره او کامه کښې ورته مورچے اونیولے. بیا ورغونډ
شول په جلال آباد ورسره جنګیدل. غرض دا چه مهمند قام په دغه
محاذ دَ فرنګی سره جنګیده. دَ اتمان خیل قام لرے پروت دے دَ مهمند
قام امداد له دغه مورچے ته نه شو رسیدلے. راپورته شو او دَ
مهمندو او اتمانخیلو په برید چه فرنګیانو په سنه ۱۸۵۲ء کښې دَ ابازئ په
مقام کومه غوټئ قلا جوړه کړے وه په هغې کښې حمله اوکړله. او قلا کښې
اوسیزله. قبضه ئے کړله. وروستو په دره طرف نه ئے حملے اوکړلے یو
دَ سپه مغل خیل او شبقدر په طرف او بله دَ تنګی. کنډیری. بهرام پیری
په طرف او دلته چه دَ فرنګیانو کومے څوکئ وے هغه ئے اونیولے.
انګریزانو دَ اتمانخیلو دَ دے حملو دَ مقابلے دَ پاره دَ کیپټن بیټی په کمان
کښې یو دروند فوځ اولیږه جنګونه شروع شول. پړله پسے جنګونه
وو. غازیانو ورله دمه نه ورکوله. دَ جنګونو دا سلسله تر سنه ۱۸۶۹ء
پورے اوږده شوله. او په دے کال سنه ۱۸۶۹ء کښې فرنګی په مهمندو
حمله اوکړله. بیل خواته داجنګ چه په اول سر کښې دَ اتمان خیل قام
دَ انبار دَ علاقے دبوټ کور او دَ غاړے اتمانخیلو شروع کړے وو.

هر کله چه دا جنګ اوږد شه نو نور هم ورپسې خور شه. او دَ دې جنګ میدان ته دا رنګ، بړ نګ. اصیل. سرنی خیل. عمر خیل. متکی. شموزی ماندل. علی زی. او دُ آوارے غار سے رانړی زی قومونه او قبائل هم را غلل. او دَ ناوے پړنو. نزی اوبه. سپین خړو. شکور. ناسایُ ایروشا په طرف ئے حملے شروع کړے. بل خواته دَ رانړی زی قام په پوله او دَ ضلع مردان شمال مشرق طرف ته په ورتیر. خرنی. برمول. کوهی پیپل. میاں خان. سنګاؤ چه کوم اتمان خیل پراته دی هغه هم راپورته شول او دَ بائزو په علاقه کښې دَ فرنګی په فوجی څوکوئے حملے شروع کړلے. دَ قبائلو دَ دے غزا ګانو او مجاهدانه حملو په جواب کښې فرنګیانو دَ کال ۱۸۷۹ سنه په منځ زمانه کښې دَ دوه نورو جرنیلانو په کمان کښې په دغه طرفونو هم فوځونه ورواچول.

(الف) دَ لفټننټ سر کالن کیمبل په کمان کښې یو درونډ فوځ ئے دَ رانړی زو په طرف اولیږه.

(ب) دَ لفټننټ کرنل ایف. ایچ جنکنز په کمان کښې یو مضبوط فوځ ئے دَ مشرقی اتمانخیلو په طرف اولیږه.

جنګ اوشه. او په دے دواړو محاذونو باندے غازیانو دَ فرنګی په فوځ تباهی راوستلے وه. آخر دا چه فرنګیانو دَ صلح کوشش اوکړ. چه په څه جوړ دا جنګ قلاړ شی او دا کوشش ئے حُکه کولو چه هم په دے کال په افغانستان ئے حملے کولو ته نیت ود هغے ته ئے خپل فوځونه اوزګارول. او لکه چه مخکښې دَ خیبر دَ غزا ګانو په باب کښې مونږ لیکلی دی په ۲۱ نومبر سنه ۱۸۷۹ء بیا انګریزانو په کابل دغه حمله کړے هم وه.

دلته دا یاد لرل پکار دی چه په سنه ۱۸۶۶ء کښې انګریزانو په مشرقی

اتمان خیلو حمله کړے وه۔ او د هغوئ کلی ئے په هغه تیپانو نړولی او وران کړی وو۔ او په اتمانخیلو ئے پابندی لګولے وه چه بیا به د غره په ډډو کښے کلی نه جوړه وی۔ او بله دا چه په دغه جنګ کښے مشهور بے ننګه پښتون فتح خان خټک چه د کاشیخ پلټنی رسالدار وو۔ د یو شاه حلمی اتمانخیل غازی د لاسه قتل شوے وو۔

## د میچنی شپږ غزا

اتمانخیلو چه په اباژی قلعه کومه حمله کړے وه او د هغے نه د غزا کانو کومه سلسله شروع شوے وه۔ او دغه سلسله تر سنه ۱۸۶۹ء پورے را اوچلیده۔ او بیا د مهمند و غازیان په میچنی راجع شول چه په فرنګی حمله اوکړی۔ نو فرنګیانو د مهمند و غازیانو د دغه مقابلے د پاره د کیپټن کریک او میجر پالیس په کمان کښے په میچنی باندے حمله اوکړله۔ دلته دا یاد لرل پکار دی۔ چه مونږه وړاندے د دے بحث په اول سر کښے دے خبرے ته اشاره کړے وه چه د سنه ۱۸۶۹ء نه تر ډیر دستوز مانے پورے کابل ته د تللو دوه لارے وے۔ یوه د خیبر وه۔ او په دغه لار هم د مهمند و نه خطره وه ځکه د دے لارے شمال طرف ته تر پنځوس میله پورے مهمند پراته دی۔ دویمه لار د خلیلو۔ ملاګورو شلمانو په غاړه د موجوده اورسک نوے مقام په برید دکونړ سیند په غاړه غاړه تلے وه۔ دا عامه او پخوانئ لاره وه۔ اکثر کاروانونه به په دے تلل راتلل۔ په دغه لاره باندِ فرنګیانو خیبر شلمان ریلوے لائن هم تیر کړے وو۔ چنانچه په میچنی باندے د مهمند و غازیانو راجع کیدلو مطلب دا وو چه د افغانستان د تګ لار بیخی بندیدله۔ بل خوا ته په سنه ۱۸۶۹ء کښے لا د انګریزانو فوج په افغانستان کښے پروت

وو۔ نو چه مهمند غازیان په میچنیٔ را غونډ شول نو دَ دے مطلب دا وو چه یو قسم ته دَ انګریزانو چه کوم فوځ په افغانستان پروت وو هغه په ګیره کښے راغلے وو۔ په دے وجه انګریزانو دَ سنه ۱۸۷۹ء دَ میچنیٔ جنګ له دَ دوه مشهور انګریزانو جرنیلانو دَ کریګ او واټسن په کمان کښے فوځونه لیږلی وو۔

دوستو دا جنګ وړیسے اوږد نه شه۔ په اصل کښے په دے موقع دَ انګریزانو غرض جنګ نه وو۔ بلکه په اتمانخیلو۔ مهمندو په لویه پیمانه دَ حملے کولو نه په دے قومونو د باؤ پریستل او اچول وو۔ چه دا قومونه په څه نه څه شکل جرګه او منی حملے کول بند کړی۔ او تلاره قلاری شی۔ چه دَ انګریزانو فوځونه اوزګار شی۔ لکه چه مخکښے ورته اشاره شوید ه هلته په کابل کښے دَ انګریزانو سفیر سر کیوګنری (کامناری) قتل شوے وو۔ او انګریزانو دَ هغه دَ بدل اخیستو دَ پاره په کابل باندِ لام کوُلو۔ چنانچه په ۱۲ نومبر سنه ۱۸۷۹ء چه کوم فوځ په کابل حمله کړے وه په هغے کښے ایف۔ ایچ۔ جنکنز هم شامل وو۔

## دَ میچنیٔ اوُمه غزا

په سنه ۱۸۸۰ء کښے چه انګریزانو دَ جنرل ډورن په کمان کښے دَ مهمندو په علاقه په میچنیٔ باندے کومه حمله کړے وه۔ دَ هغے ګڼړ وجهات وو۔ چه هغے ته اشاره کول مناسب معلومیږی۔

(۱) یوه وجه ے دا وه چه هر کله انګریزانو په ۲۱ نومبر سنه ۱۸۷۸ء په کابل حمله اوکړه دَ امیر شیر علی خان نه ئے حکومت واخیست او دَ هغه په ځای ے امیر محمد یعقوب خان دَ کابل په تخت کینولو۔ نو په جون سنه ۱۸۷۹ء کښے ے دَ هغه سره یوه معاهده

کړے وه چه هغه په تاریخ کښے په معاهده گندمک یادیږی. دَ دغه معاهدے له مخه امیر محمد یعقوب خان دَ مهمند و په علاقه دَ انګریزانو اقتدار منلے وو. او دَ دغه معاهدے نه روستو خو لګ چه انګریزانو دَ وزیرستان په وانا په کرمه. په خیبر. په ملاکنډ خپله قبضه ټکوله دغه شان دَ مهمند و په علاقه ئے هم قبضه ټکوله چه مهمند پوهه کړی چه اوس ستاسو تعلق دَ دغه معاهدے له مخه دَ افغانستان سره ختم شه. کوم ماجبونه چه امیر کابل به ورکول هغه به اوس انګریزان ورکوی. او تاسو به دَ برطانیه په غیر دَ بل چا سره سیاسی تعلق نه ساتئ.

(۲) دویمه وجه داوه چه په دسمبر ۱۸۷۹ء کښے په کابل کښے کائیډ پلټن په مکمل طور سره تباه شوے وه. فوځ ئے ټول تباه شوے وو. انګریزانو کابل ته بیا څه قیصه جوړ وله. امیر محمد یعقوب خان خو انګریزانو ګرفتار کړے ' هندوستان ته راوستلے وو. لیکن هلته دَ امیر محمد یعقوب خان رور امیر محمد ایوب خان په میوند کښے په فرنګیانو قیامت جوړ کړے وو. خاص په کابل او خواوشا علاقو کښے په انګریزی فوځونو بده ورځ وه. انګریزانو په مهمندو حمله کوله چه دا قوم چه دَ کابل دَ ټک راټک په لاره پروت دے چه پخپل کور ورته جنګ ورپیښ وی. نو دَ کابل دَ تللو لار به صفا وی. چنانچه دَ دے قسم وجوهاتو له مخه انګریزانو په میچنئ حمله اوکړه. جنګ شروع شه. تود شه ورپسے خور شه. په شبقدر هم جنګ اوشه دَ فرنګی فوځونه پکښے تباه شول. دَ شبقدر قلعه یو ځل بیا غازیانو اوسیزله. لیکن دَ فرنګی غرض خو دَ مهمندو مخه دلال پورے او کاڼے نه شکته راارول وو. جنګ ئے دومره اوږد کړ چه دَ ۱۸۸۱ء دَ نیمایئ

پورے را اورسید ہ. په دے غزا کښے خلیل ملا صاحب او هډے ملا صاحب دَغازیانو مشران وو. دَ خوګاخیلو. موسیٰ خیلو۔ خویزو۔ بابازو۔ علیم زو۔ ترکزو۔ صافو۔ دَشیخانو میاں کانوا په خاص طور سره دَکوړاخیلو شاه حُلمو غازیانو ښه توره کړے وه۔ لکه چه مخکښے ورته اشاره اوشوه هرکله چه فرنګیانو دا جنګ دَیوے خاصے پالیسئ ماتحت دَیو خاص مقصد دَ پاره کولو نو څرنګ چه په ۱۸۸۱ء کښے دَ تیراه دَ زخه خیلو نه یے فوځونه واپس کړی وو. دغه شان یے دَ مهمند و نه هم فوځونه واپس کړل او میدان جنګ مهمند و غازیانو ته پاتے شه۔

# دَمیچنئ اتمه غزا

لکه چه مخکښے ذکرشوید ے هرکله چه په ۱۸۹۳ء کښے دَ امیر عبدالرحمان والی افغانستان او دَحکومت هند دَ فارن سکریټری سرمارټیمر ډیورنډ په منځ کښے په یوه معاهده دستخطونه اوشول چه هغے ته ډیورنډلائن وائیٔ. درے کاله کښے دَ هغے دَ حد بندئ کار کیده او په ۱۸۹۶ء کښے ختم شه او دَ قبائلی مهمندو دَ علاقے څه حصه چه دَ دغے لائن نه نمرخاته طرف ته وه هغه دَ فرنګیانو په ولش او حصه کښے اورسیده. نو ورپسے په کال ۱۸۹۷ء کښے فرنګیانو دَ توے قبائلی علاقے په شپږ سوه میله اوږد سرحد باندے دَ هرے یوے قبائلی علاقے په پوله باندے فوځونه واچول جنګ او حملے یے شروع کړے چه خپل بریدته خپله قبضه اورسوی. چنانچه هم په دغه سلسله کښے انګریزانو

(الف) یوه حمله دَ مهمندو په سرحد باندے دَمیچنئ په مقام

په ۱۸۹۷ء کښې دَ جنرل ایلس په کمان کښې اوکړله.

(ب) او دویمه حمله ئې دَ مهمندو په پوله پورې دَ اتمانخیلو په علاقه دَ لفټننټ کرنل ریډ په کمان کښې اوکړله.

دا پورته چه ذکر شه دا دَ میچنئ دَ ۱۸۹۷ء دَ جنګ سیاسی پس منظر وو. تاریخي پس منظر ئې دا سې وو چه هرکله په ۱۸۹۷ء کښې دَ مولانا سعد الله خان المعروف په سرتور فقیر په مشرئ کښې په مالاکنډ باندې جنګ شروع شه او دغه غزا له حضرت هډې صاحب او دَ مهمندو او اتمانخیلو غازیان هم لاړل. نو انګریزانو فیصله اوکړه چه مهمندو او اتمانخیلو له سزا ورکول پکار دی چه دوئ ولې دَ ملاکنډ غزا له تلی دی. ورپسې بله واقعه داپیښه شوه چه کوم فوځ په ملاکنډ حمله کړې وه هغه دَ دیر دَ علاقې نه تختګښې تیر شه دَ باجوړ منځ ته اورسیده او بیا چه په باجوړ کښې راګیر شه. نو دَ باجوړ خلقو ته ئې اوئیل چه پېښور ته دَ واپس تللو لار راکړئ. فیصله په دې اوشوه چه فرنګی فوځ دې دَ مهمندو په لار واپس لاړشی په کمالی اوګنداؤ دې بنکته کوز شی. هلته مهمند ورته دَ هډې ملا صاحبؒ دَ بیرغ دَ لاندې راپورته شول لار ئې نه ورکوله. نو دَ جنرل ایلس په کمان کښې په میچنئ باندې حمله دَ دې دَ پاره شوې وه چه په باجوړ کښې دَ انګریزانو کوم فوځ ګیر شوې دې چه هغه راووځی. چنانچه جنګ اوشه او څه په جنګ او څه په صلح منت او زارئ دَ فرنګی فوځ بیا هم په کمالی راننځی بلکه زیانیدلې اوشرمیدلې مالاکنډ ته واپس شه او په دې شان سره دَ میچنئ اتمه غزا دَ مهمندو په کامیابئ سره سرته اورسیده.

# دَپړانګ غار درېمه غزا

په ۱۸۹۷ء کښې هر کله چه په ټولو قبائيلي علاقو باندې انګريزانو فوجونه ور واچول. جنګ ئې تود کړ. په ملاکنډ ئې هم حمله اوکړه. سرتور فقير غزا له راغې. دَ اتمانخيلو نمر ختيزه علاقه دَ ملاکنډ ايجنسئ دَ سم رانړي زي او سوات رانړي زي سره په پوله پرته ده نو په اتمانخيلو کښې هم حرکت پيدا شه. دَ ملاکنډ په جنګ کښې ئې دَ سوات. دير. باجوړ. مهمند دَ غازيانو سره پوره امداد اوکړ. جوانمردي ئې ښکاره کړه بهادري ئې اوکړه. کفار ئې اوهل دَ دغه جرم په بناء دَ ۱۸۹۷ء په آخر کښې دَ کرنل ريډ په کمان کښې په اتمان خيلو باندې انګريزي فوځونو حمله اوکړه دا حمله په دوه غاړې وه. يوه حصه فوځ دَ سوات سيند په غاړه په تلنګئ دره باندې را واوخت آګره. توتئ. کوټ. مينه طرف ته راتاؤ شه. او بله حصه لښکر دَ درګئ نه په آواره کښې دَ اتمان خيلو دَ غرونو په جنوبي لمنو کښې په ناوې ډهنډ. سپرى. بوچه او پړانګ غار حمله اوکړله. دَ ناوې ډنډ قلا چه په ۱۸۵۲ء کښې نه وه وهلې شوې هغه ئې په دې جنګ کښې ودانه کړله. ځکه چه زيات غازيان هلته په آګره او توتئ کښې په جنګ کښې ګير وو. دَ پړانګ غار او سپرى آبادئ هم ورانې شولې.

دَ اتمانخيلو نمر ختيز کلي چه دَ سوات رانړي زيو او سم رانړي زي سره په پوله پراته دي لکه مينه. کوټ. توتئ. آګره. تلنګئ دَ هغوئ سره ئې لکه دَ رانړي زو معاهده اوکړله. چه دَ ملاکنډ ايجنسئ سره به سياسي تعلق ساتي په ۱۹۰۰ء کښې دَ رانړي زو او اتمانخيلو په منځ کښې اختلاف پيدا شه. انګريزانو اول دا دواړه قبيلې په خپل منځ کښې اوجنګولې

بیائے دَ دوئ په منځ کښې راضی نامه اوکړه لیکن په راضی نامه کښې ئے اتمانخیلو باندے خپل پرتې باد کړې۔ چه دَ مالاکنډ دَ پولیټیکل ایجنټ ماتحتی به قبلوی۔

## دَ پړانګ غار څلورمه غزا

په سنہ ۱۹۰۸ء کښې دَ علاقه انبار اتمان خیل بنکته راپریوتل دَ پېښور په علاقو کښې ئے دَ فرنګی په څوکو حملے شروع کړلے۔ انګریزانو دَ کرنل ایس۔ایچ۔ګاډفرے پولیټیکل ایجنټ مالاکنډ په کمان کښې دَ غاړے په اتمان خیلو او پړانګ غار حمله اوکړه۔ وروستو دَ اتمان خیلو ناکه بندی ئے اوکړه۔ آخر جرګے ترمنځه شوے او صلح اوشوه۔ وروستو په کال سنہ ۱۹۱۱ء کښې دَ علاقه غاړه اتمانخیلو ترخپل منځه ورانه راغله او په هغے کښې ئے دَ فرنګیانو علاقه تالا کړه۔ وروستو په سنہ ۱۹۱۳ء کښې دَ انبار او غاړے اتمان خیل راکوز شول دَ هشتنغر مشهور کلے اتمانزی ئے تالا کړو حوصله ئے زیاته شوه دَ پېښور پورے دَ پولیس څوکئ به ئے تالا کوُلے۔ دَ اولنئ جنګ عظیم ورځے وے فرنګے په ځان وو۔ غږ ئے نه شه کوُلے۔ آخر دا چه په جرګو مرکو په سنہ ۱۹۱۸ء کښې هیله اتمانخیل قلار شول۔ البته دَ غاړے اتمانخیل ئے درے زره روپئ جرمانه کړل۔ په لوم جرمانه ورا ادا نه شوه۔ په سنہ ۱۹۲۲ء کښې دَ غاړے دَ اتمانخیلو او دَ مشرقی اتمانخیلو دَ علاقے سروے شروع شوه۔ اتمانخیل راپورته شول خوځه لوئ جنګ او نه شه۔

## دَ پړانګ غار پنځمه غزا

په سنہ ۱۹۳۰ء کښې چه دَ سیاسی تحریکو نو اثر په قبائلی علاقو باندے

او شه۔ نو دَ ارنګ برنګ اصیل نو ے اتمانخیل او دَ انبار بوټ کورنو ے اتمانخیل په آکره او پړانګ غار را ښکته شول او دَ هشنغر په بريد په جنډی خور پريو تل مورچے ئے اوکړل انګريزانو ور پسے سمدستی لښکر اوکړو۔ په آکره او پړانګ غار باندے جنګ او شه ډيره سخته مقابله اوشوه۔ دَ آکره په جنګ کښے دَ مالاکنډ پوليټکل ايجنټ ميجر جے۔ ډبليو۔ تهامس کلور۔ آئی۔ اے قتل شه۔ انګريزانو په آکره باندے دَ هوائی جهازونو ګوله باری اوکړله۔ ورپسے دَ کوټ (مينه) نه ئے سړک شروع کړے په تو تئ ئے آکره ته اورساوه قدم په قدم جنګ وو دَ اصيل قام اتمان خيلو ښه مړانه ښکاره کړه۔ چه آکره په جنګ اوهلے شوه دَ پړانګ غار محاذ هم کمزورے شه۔ دَ قبائلی غازيانو لښکر واپس شه۔ ۳۳ غازيان دَ جنګی قيديانو په شکل دَ فرنګی په لاس پريوتل په اګست سنه ۱۹۳۰ء کښے جرګه ترمنځه شوه۔ قيديان ئے پريښودل۔ البته چه دَ غازيانو کومه وسله فرنګی له په لاس ورغلے وه۔ هغه ئے غازيانو له واپس ور نه کړله۔

دَ آکره په غزا کښے يو اوسے روحانی پيشوا دَ علی نګر فقير را ښکاره شوے وو۔ ډير شهرت ئے موندلے وو۔ هغه په اګست سنه ۱۹۳۰ء کښے دَ پړانګ غار په لاره په پيښور دَ غزا کولو خيال لرلو۔ ليکن دَ اتمان خيلو په النګار فقير اتبار نه وو لاره ئے ور نه کړه۔

# دَ مېچنۍ نهمه غزا

په سنه ۱۹۰۸ء کښے چه فرنګيانو دَ تيراه دَ زخه خيلو آفريدو په علاقه وادئ بازار دَ حملے کولو اراده اوکړه نو په دغه سلسله کښے يو خواته ئے دَ درهٔ خيبر په مختلفو ځو کو۔ قلاګانو او کيمپونو کښے فوځونه واچول۔

خپل حفاظت او پخلے ئے او کړ۔ نو بل خوا ته ئے دَ مهمندو دَ سرحدی
قلاګانو شبقدر او میچنیٔ دَ مضبوط والی او پخلی دَ پاره هم فوځونه
اولیږل۔ چنانچه په دغه شان سره هرکله چه دَ فرنګی فوځونه
دَ جنرل ویکاک په کمان کښے دَ میچنیٔ قلعه ته ورغلل نو قبائلی مهمند
ورته راپوره ته شول۔ جنګ جوړ شه۔ او بنه دروند جنګ اوشه۔
دا جنګ چه دَ میچنیٔ نه شروع شوے وو۔ دَ شبقدر پورے خورشه
دَ میچنیٔ۔ ناقی۔ سوربان۔ شبقدر په خوا کښے داسے جګړے اوشولے
چه غازیانو پکښے تیامتونه راکوز کړل۔ دا جنګ په میاشتو میاشتو
اوږد جنګ وو او څه وخت چه دَ آفرید و دَ زخه خیلو نه دَ انګریزانو
فوځونه واپس کیدل نو دَ مهمند و دَ علاقے نه ئے هم فوځونه واپس
کړل۔ او په دے جنګ کښے دَ فرنګیانو فوځونه دَ ناقی غرلمنے راښوولے
وے مګر هغه ترینه غازیانو بیرته واخیستلے۔ په دے غزا کښے دَ
دَ باجوړ سلارزی په تاریخی اعتبار سره مونږ ه دَ ۱۹۰۸ ؁ ر دَ
میچنیٔ غزا ته

## دَ ماذونانو غــزا

وایو۔ وجه ئے دا ده چه دَ قبائلی مهمند د په علاقه کښے چه دَ سوات
دَ باباجی صاحبؒ کوم مشهور خلیفه ګان وو۔ لکه دَ بید منیٔ حاجی صاحبؒ۔
دَ مخرنیٔ ملا صاحبؒ۔ دَ هډے ملا صاحبؒ۔ دَ خویزو خلیل ملا صاحبؒ۔
دغه څلور واړه بزرګان غازیان دَ ۱۹۰۸ ؁ دَ غزا نه وړاندے
وفات شوی وو۔ او دَ هغوئ نه روستو په دے غزا کښے دَ حضرتؒ
هډے ملا صاحبؒ مشهور ماذونان غزا له راغلی وو۔
او دا غزا دَ هغوئ په مشرئ او رهنمائ کښے کیده له۔ چه په هغوئ
کښے دَ یو څو مشهور و ماذونانو کوم چه دے غزا له راغلی وو نومونه

دادی. دَ چارمنګ دَ بابړې ملا صاحبؒ. دَ سلامپور باچا صاحبؒ. دَ شنوارو صوفی عالم ګل صاحبؒ. چکنور ملا صاحبؒ دَ سرکانړو میاں صاحبؒ. چه دَ دے ماذونانو په مشرئ کښے دَ باجوړ. کونړ. ننګرهار. شلمان غازیان هم دے غزاله راغلی وو. هرکله چه دَ مهمندو په زمکه دَ دے بزرګانو په مشرئ کښے ډیرے زیاتے غزاګانے شویدی. په دے وجه مناسب معلومیږی. چه دَ دے بزرګانو غازیانو څه لږ ډیر حالات هم دلته اولیکلے شی.

## هډې ملا صاحبؒ

دا بزرګ غازی چه خیل قوم ئے اخوندزاده نجم الدین وو. دَ غزنی دَ شیلګر او سید ونکے وو. په قام احمدزی. سلیمان خیل وو. پلار ئیله ئے بنه خلق تیر شوی وو. په دغه وجه ورته اخوندزاده صاحب ویلے شه. دَ جلال آباد سره نزدے په هډه نومے کلی کښے زیږیدلے وو ځکه ورته هډے ملا صاحب وائی. دَ سوات دَ باباجی صاحبؒ په مریدانو کښے مشر مرید وو. عالم وو. بزرګ وو. غازی وو. ټول عمر ئے په غزاګانو کښے تیر شویدے. دَ بونیر په سرکاوئ دَ مالاکنډ په تلنګئ. چکدره. په باجوړ او دَ مهمندو په شبقدر چه دَ سنه ۱۸۶۳ نه تر سنه ۱۹۰۰ پورے په ۳۷ کاله عمر کښے دهٔ کومے غزاګانے کړی دی. او په دغه منځ کښے چه په افغانستان بانده انګریزانو کومے حملے کړے وے خصوصاً دَ سنه ۱۸۷۸-۱۸۷۹ او بیا دوستو دَ سنه ۱۸۹۳-۹۶ او سنه ۱۸۹۷ چه کومے تاریخی غزاګانے ئے کړے دی. هغه دَ تاریخ یو زرین باب دے. په سنه ۱۸۹۳ کښے چه دَ امیر عبدالرحمان او انګریزانو ترمنځه معاهده اوشوله. او امیر مرحوم دَ انګریزانو په درخواست دَ هډے ملا صاحب دَ ګرفتار کولو حکم اوکړ. نو دے دَ مهمندو علاقے ته راغے. دلته دیره شه. بیا جرکنډ ته لاړ. او په دے شان سره نو ټول عمر ئے دَ باجوړ

او مهمند و دَ پښتنو سره یو ځای په غزا کانو کښې تیر شوے وو۔ او موږ ته ئے دَ مهمند قام په بزرګانو او غازیانو کښې شمارو۔ هډے صاحب په سنه ۱۳۱۹ھ مطابق سنه ۱۹۰۲ء کښې وفات شویدے۔

## مخزنئ ملا صاحب شهیدؒ

حضرت مخزنئ ملا صاحب دَ سوات دَ باباجی صاحبؒ مرید وو۔ لوئ غازی وو۔ په سنه ۱۸۹۳ء کښې چه امیر عبدالرحمان دَ هډے ملا صاحب او مخزنئ ملا صاحب او خلیل ملا صاحب دَ ګرفتاره ولو فیصله اوکړله۔ ځکه چه دے بزرګانو دَ انګریزانو او امیر عبدالرحمان ترمینځه دَ معاهدے کیدلو مخالفت کولو۔ نو هډے ملا صاحبؒ په لاس ورنهٔ غلو هغه چمرکنډ ته اوختے وو خلیل ملا صاحبؒ هم په لاس ورنغے۔ او مخزنئ ملا صاحبؒ چه په لاس ورغے نو هغه ئے شهید کړ۔

## ملا خلیل صاحبؒ

حضرت مولانا محمد خلیل ابن عبد العظیم ابن عبدالکریم په قام سید وو۔ دَ پیر بابا علیه الرحمة نمسے وو۔ دَ پلار او نیکه دواړو زیارتونه ئے په پیچ دره کښې دی۔ دَ کافرستان په غزا کښې شهیدان شوی وو۔ سید محمد خلیل دَ سوات دَ باباجی صاحب ته ئے لاس نیوه اوکړه۔ چه ماذون شه مهمند ته راغے دَ خوایزو په علاقه کښې دَ خان بیګ په کلی کښې اوسیده۔ دا کلے په ملا فهیم کلی نامه هم یادیږی۔ او دَ هغے نه روستوئے دَ هډے صاحب په ملګرتیا کښې او بیا ځان له غزا ګانې کړلے۔ کامنارے چه کابل ته د سنه ۱۸۷۹ء تلو خلیل ملا صاحب پرے دَ ډکے په مقام غزا کړے وه۔ سلطان محمد خان بابازی دَ بیدمنئ چه روپئ او خوړلے۔ او دَ مخزنئ ملا صاحب او دَ بیدمنئ حاجی صاحب دواړه شهیدان شول او هډے صاحب چمرکنډ ته واوخت نو په دغه زمانه یواځے سید ملا خلیل صاحب وو۔ چه دَ ټولے مهمند نامے دَ غازیانو روحانی پیشوا وو۔ حضرت

مولانا خلیل چه کوم غزا کانے کړیدی. دَ هغې حالات او واقعات اوس هم دَ مهمند و په حجرو او جماتو نو کښې بیانولے شي داغازي بزرګ . سیّد او عالم خلیل ملا صاحب په سنه ۱۳۰۷ هـ مطابق سنه ۱۸۸۹ء کښې وفات شه. زیارت ئې په ملا فهیم کلي کښې دی. اولاد ئې پاتې دے. ستانه دار دی. او عزتمند خاندان دے.

# دَ شبقدر غزا

دَ هډے ملا صاحب په ماذونانو کښې یو مشهور ماذون حضرت حاجي صاحب دَ ترنګزو تیر شویدے. نوم ئې فضل واحد وو. په قام سیّد وو. دَ دوئ خاندان ته پیران وائي. مشرنیکه ئې پیر بهاءالدین بابا وو. چه په پیر بودلے بابا مشهور دے او زیارت ئې په ترنګزو کښې دے. په پښتونخوا کښې دَ بزرګانو یوه کورنئ ده. په پنځه پیرانو نامه یادیږي. دغه پنځه پیران په اصل کښې پنځه سکه رونړه وو. په قام سیدان وو. په دغه پنځه پیرانو کښې دَ یو پیر اولاد یکښې دَ حضرت حاجي صاحب دَ ترنګزو نیکونه وو.

حضرت حاجي صاحب په سنه ۱۸۹۷ء کښې دَ هډے ملا صاحب نه لاس نیوه کړے وه. بیا دَ هغه دَ مشهور مرید دَ شنوارو دَ صوفي عالم ګل صاحبؒ نه لاس نیوه اوکړه. په سنه ۱۹۱۴ء کښې ئې دَ ترنګزو نه هجرت اوکړ. بونیر ته لاړ. دَ هغه ځای نه سوات ته لاړ ورپسے باجوړ ته راغے او دَ جرکنړ سره نزدے په لکړئ کښې دیره شه. بیا دَ هغه ځائ نه دَ صافو مهمندو په علاقه کښې کند غار نومے ځای ته راغے دا ځائ خوښ کړ. دلته آباد شه. او دَ هجرت (سنه ۱۹۱۴ء) نه دوه کاله پس په سنه ۱۹۱۶ء کښې ئې دَ قبائلي علاقے باجوړ او مهمندو لښکر جمع کړ.

او دَ شبقدر په قلعه ئے حمله اوکړله۔ فرنګیانو تول مهمند بلاکیت کړل۔ دَ میچنیٔ دَ پُل نه واخله دَ ابازی قلعه دَ پل پورے په ۱۱ اولس نیم میله اوږده پوله باندے۔ دَ ځلورسوه ګزه اوبعض ځای کښے اته سوه ګزه فاصله باندے برجونه جوړکړل۔ او فوځیان ئے پکښے واچول۔ او ورسره ورسره ئے دَ میچنیٔ نه تر ابازیٔ پورے اووه ګزه پلن دَ ازغو دَ تارونو دیوال جوړکړ۔ او دَ هغه تارونو سره ئے دَ بجلیٔ تارونه هم اوغزول چه څوک به ورنزدے کیدهٔ۔ نو دَ بجلیٔ تارونو به نیولو۔ لیکن په دغے باندے هم دَ غازیانو حوصلے خرابے نه شولے۔ په فرنګیانو ئے حملے شروع کړلے۔

## په شبقدر حمله

انګریزانو اګرچه دَ غازیانو دَ حملے نه دَ ځان بچ کولو تابیا کړے وه۔ لیکن څه لږے ورځے پس حاجی صاحب دَ شپے زره غازیانو دَ لښکر سره دَ شبقدر قلعه په مقام دَ انګریزانو په فوځ حمله اوکړه۔ فرنګیانو دَ غازیانو په دے لښکر سخته بمباری اوکړله۔ رساله او پیاده فوځ ئے مقابلے ته راوویستلو په سبحان خوړ او دَ شبقدر قلعه په خوا کښے خونړے جنګ اوشه۔ غازیان قلعه ته ورننوتل دَ شبقدر په قلا ئے اوربورے کړ۔

## په میچنیٔ حمله

بل خواته غازیانو دَ میچنیٔ په قلعه باندے حمله اوکړله۔ دغلته دَ میچنیٔ دَ نهر په غاړه دَ فرنګیانو دَ رسالے سره لاس په لاس جنګ جوړ شه۔ غازیانو توره اوکړه او دغه رساله ئے تقریبًا ټوله تباه کړله۔ دَ غازیانو دَ طرف نه چه کوم نهه کسان شهیدان شوی وو۔ په هغویٔ کښے دَ اووه کسانونومونه دَا دی۔ دوا جان خوګاخیل۔ جان خان

غلام جان. شیرعلی خان. سید میران. میاں خان. حضرت خان عیسیٰ خیل

## د واجان خوګاخیل شهیدؒ

په دے غازیانو کښے دَ دواجان خوګاخیل شهید نوم به تل تر تله یادګار پاتے وی. په دغه دوران کښے چه دَ میچنی دَ نهر په غاړه لاس په لاس جنګ وو. غازی دواجان په یو انګریزانسر ورتوپ کړ. دَ اس نه ئے را اوغورزه ولو. دواړه په پړ زولو شول. انګریز ئے سملولو. دَ پاسه په سینه ورته کیناست. هغه دَ لاندے نه په تمانچه اوویشت. دواجان دَ پاسه نه په چاړه اووهلو. دواړو یو ځائے ساه ورکړه. انګریز لاندے پروت وو. او دواجان پرے دَ پاسه. جنګ هم عجیبه څیز دے. دوه دشمنان یو تر بله غاړه غړتی کړی.

# دَ شبقدر دوېمه غزا

په سنه ۱۹۱۹ کښے چه انګریزانو په افغانستان حمله اوکړه او ورسره په ټولو سرحدی قبائلو لکه خیبر. تیراه. کرم. وزیرستان ئے هم جنګ شروع کړه. او مهمند و ته ئے نیت خراب کړ. نو حضرت حاجی صاحبؒ دَ ترنګزو دَ مهمندو او باجوړ لښکر دَ ځان سره کړ. په شبقدر ئے حمله اوکړه. دَ فرنګیانو فوځ مقابلے له راغے. دَ شبقدر سره نزدے په سبحان خوړ جنګ اوشه. لیکن هرکله چه هم په دغه ورځ کښے خبر راغے چه دَ افغانستان فوځ دَ ډکه په مقام دَ افغان سپه سالار صالح محمد خان په ناپوهتیا شکست اوخوړ. او دَ فرنګیانو فوځ ډکه اونیوله. او س ئے په وړاندے جلال آباد ته روان دے. نو حاجی صاحبؒ دَ ترنګزیؒ دَ حضرت مولانا سیف الرحمان

الکوزی په ملګرتیا کښې صلاح مشوره اوکړله ـ دَ غازیانو دَ لښکر سره دَ شبقدر ته روان شه ـ دَ هزارنا وُ په لاره ئے دَ انګریزانو دَ فوځونو مخه اووهله ـ په ډکه ئے حمله اوکړله ـ او دَ فرنګی فوځ ئے دَ مخکښې تر نه حصار کړ ـ په دغه موقع دَ غازیانو مرکز په باسول وو ـ دَ قبائلی علاقو نه او دَ سمت مشرقی افغانستان نه به ورته دَ لالپورې او کامې په لاره امداد رارسید لو ـ دَ غازیانو دا لښکر دَ فرنګیانو دَ فوځ سره دَ ډکے په مقام تر ډیرے جنګید لو ـ چه ترڅو پورے دَ افغانستان او انګریزانو دَ صلح نه روستو دَ انګریزانو فوځونه پیښور ته واپس شوی نه وو ـ په دے غزا کښې او ورپسے په نورو ټولو غزا ګانو کښې مولانا سیف الرحمان الکوزی ډیره بهادری کړے وه ـ

## دریمه غزا

په سنه ۱۹۲۲ء کښې فرنګیانو دَ مهمندو په علاقه جنګ راوړے وو ـ او دَ هغے مقابلے ته دَ ترنګزو حاجی صاحب په مشرئ کښې غازیان راوتلی وو ـ لیکن دغه جنګ اوږد شوے نه وو ـ او زر تر زره صلحه شوے وه ـ

## څلورمه غزا

په سنه ۱۹۲۶ء کښې چه فرنګیانو په زور باندے په قبائلی علاقه مهمندو کښې دَ سړک تیره ولو اراده اوکړله ـ نو دَ ترنګزو حاجی صاحب دَ انګریزانو په خلاف دَ جهاد اعلان اوکړ ـ حمله ئے اوکړله ـ او دَ فرنګیانو پروګرام ئے تالا ترغه کړ ـ دَ غازیانو دا حمله دومره لویه او سخته وه چه فرنګیانو خپل فوځونه پیښور ته راواپس کړل ـ

# پنځمه غزا

دَ باجوړ په علاقه کښې یو کلے دے. التکار (علی نګر، علنګار) نوم ئې دے. په دغه کلی کښې یو فقیر را پیدا شه شهرت ئې حاصل کړ. پښتے ابله به ګرځیده. مجذوب فقیر وو په سلارزو. ماموند. اتمانخیل کښې ئې مریدان پیدا شول. مهمند وته راواوړیده دَ ترنګزو حاجی صاحب علیه الرحمة ته کینا ست چه صاحبه په فرنګی غزا کوو! مهمند هم ورسره شول حاجی صاحب علیه الرحمة جوړ نه وو. په پښتو ئې خه چل شوے وو. مشهوره شوے وه چه فرنګیانو ورله دَ چا مخبر په لاس زهر ورکړیدی. په دغه شان حال کښې هم چه د التکار فقیر دَ ډیرے ډیرے زاری منت نه مجبوره شه. ورسره رااوړ ته شه. په ۱۹۲۷ سنه کښې غازیان راغله په شبقدر په میچنئ ئې حمله اوکړله. جنګ اوشه. دَ دواړه طرفه نه مړی اوشول ژوبله اوشوه. دا جنګ ډیراوږد نه شه زرختم شه. لیکن دَ دے غزا دَ تولونه لویه خبره چه هغه دَ یاد ولو ده. داوه چه دَ هشنغراو دوآبے په کلو کښې به ډوډئ پخیدلے په خاروو به بار کیدلے اوکومو غازیانو چه شبقدر قلا بند کړے وو. دَ میچنئ قلائے قلا بنده کړے وه. هغوئ ته به ئې رسولے. انګریزانو دا جنګ په دے وجه زر ختم کړچه داویره ورسره پیدا شوے وه چه هسے نه په ټوله ضلع پیښور کښې بغاوت جوړ نه شی. په دغه موقع که غازیان لږ هم نور حصار شوی وے. او جنګ نور اوږد شوے وے. نو یقیناً چه په ټول صوبه سرحد کښې دَ انګریزانو خلاف بغاوت کیده. روستو چه په ۱۹۲۸ سنه کښې یو نوے سیاسی تحریک جوړ شه.

ډیر زر خور شه. او انګریزان ئے په لړزان کړل. دغه هم دَ دغه سنه ۱۹۲۷ء دَ غزا آثار وو.

## شپیرنمه غزا

په ۲۳ اپریل سنه ۱۹۳۰ء کښے چه فرنګیانو دَ پیښور په قصه خوانی بازار کښے په مسلمانانو ګولئ اوچلوئے او په هغے کښے نهه دَ پره سل (۱۰۹) مسلمانان شهیدان شول نو دَ سرحد په خلقو کښے دَ فرنګیانو دَ حکومت نه نفرت پیدا شه. دَ قصه خوانئ دَ شهیدانو احوال چه تیانلوته اورسیده نو خرنګ چه آفریدی او اتمانخیل راپورته شوی وو. دَ آفریدو لښکر کجورئ ته راکوز شوے وو. او دَ اتمانخیلو لښکر راکوز شوے وو. او دَ هشنغر دَ تنګی کلی سره نزدے دَ جندی په غاړه ورته پریوتلے وو. دغه شان دَ مهمند قام هم لښکر اوکړ. او دَ ترنګزائ حاجی صاحب علیه الرحمة په مشرئ کښے ئے په میچنی حمله اوکړله. په میچنی بانډے چه دَ غازیانو کوم لښکر حمله کړے وه. دَ هغے قیادت دَ حاجی صاحب مشر ځوی بادشاه ګل فضل اکبر صاحب کولو. او حاجی صاحب پخپله دَ غازیانو دَ یو بل لښکر سره دَ ګنداب غلنئ نومے ځائ له راغلے وو. دوستو دَ غازیانو دواړه لښکرے په غلنئ بانډے یوځائ شولے. دا جنګ دَ اپریل سنه ۱۹۳۰ء نه تر نومبر سنه ۱۹۳۰ء پورے څه دَ پاسه شپږ میاشتے جاری وو. دَ لښکر فقیر سره چه کوم غازیان دے جنګ له راغلی وو. هغه ترینه دَ جون دَ میاشتے په آخره کښے سره دَ خپلو مړو او ژوبلو واپس تلے وو. او دَ دغے نه دوستو دَ حضرت حاجی صاحب علیه الرحمة په مشرئ کښے دَ شبقدر په محاذ بانډے غازیان

جنګیدل. او دحضرت بادشاه ګل فضل اکبر صاحب په مشرئ کښے
دَ میچنئ په محاذ غزا کیدله.

هر کله چه فرنګیان ډیر تنګ شول. نو دَ ملکانو دَ یوے جرګے
په ذریعه ئے روغه اوکړه. او په دے شان سره دَ غازیانو لښکر
څه په ۳۰ اکتوبر سنه ۱۹۳۰ء او څه په ۷ نومبر سنه ۱۹۳۰ء بانډے والپس شه.

# اووَمه غزا

دَ سنه ۱۹۳۰ء دَ غزا نه روستو دَ سنه ۱۹۳۱ء سنه ۱۹۳۲ء سنه ۱۹۳۳ء په
کالونو کښے هم دَ مهمند و په زمکه ورے ورے غزا ګانے شوے
وے. لیکن په سنه ۱۹۳۵ء کښے چه کومه غزا شوے وه. هغه دَ
یادولو ده. دَ دے غزا په موقع حضرت حاجی صاحب علیه
الرحمة دَ غلنئ په مقام دیره وو. دَ غازیانو رهنمائی ئے کوله.
داځل فرنګیانو دَ سنه ۱۹۳۰ء دَ جنګ نه هم په څوچنده زیات
ظلمونه دَ مهمندو په قبائلی علاقه بانډے کړی وو. دَ هوائی
جهازونو نه به ئے دَ مهمندو په درمندونو. کالو. کورونو
بانډے دَ اور لګونکو بمونو باران جوړ کړ. داچه نن په ویټ نام
او فلسطین بانډے دَ نیپام بمونو ورولو خبرے کیږی. انګریزانو
په سنه ۱۹۳۵ء کښے په مهمندو بانډے نیپام بمونه وره ولی وو.
په دغه بمونو به ئے هر څه ورله په اور او سوزه ول. دَ دغے
نه علاوه په تاله بونو. چینو او جوړدنو کښے به ئے ورته داسے بمونه
ګذار کړل. چه هغه به ئے ګندے ګندے کړل. او به به ئے ورکے
کړے چه خلق او څاروی دَ تندے هلاک شی. دَ دغے نه علاوه
دَ اوبو په جوهړونو کښے به ئے دَ زهرو بمونه ګذار ول. دَ غازیانو

په سمسو به ئے گوله باری کوله بیا به ئے پرے باندے دَ زهرو گولئ او بمونه ورکاول. او دَ دا سے لوئ ظالم انګریز دشمن مقابله دَ مهمندو باجړو. کونړ او ننګرهار و غازیانو دَ کوډی لښکر کوله. دَ دے غزا یو څو خبرے دَ یاد ساتلو دی.

الف | یوه دا چه دَ شبقدر او میچنئ په دواړو مورچو باندے دَ فرنګیانو درے اتیا زره فوځ جنګیدلو. چه ورسره ورے او لوئے توپے. مشین ګنونه او هوائی جهازونه هم وو. او دَ انګریزانو دَ فوځ لوئ زور په میچنئ وو.

ب | دویمه دا چه دَ انګریزانو هوائی جهازونو چه دَ مهمندو په جهاز دَ غازیانو په لښکر باندے کومه خطرناکه او لویه بمباری کړے ده. هغه په تاریخ کښے خپل مثال نه لری او غالبًا په ټولو مشرقی ملکونو کښے چه تر دغه وخته پورے کوم هوائی جنګونه شوی وو. دا اولنے هوائی جنګ وو. چه یک طرفه هوائی جنګ وو. دَ مهمندو سره هیڅ هوائی جهاز نه وو. او دا اولنئ هوائی بمباری وه چه په دے کښے نیپام بم. او زهریلا بم استعمال شوی وو.

ج | دریمه دا چه په زمکه دَ فرنګی درے اتیا زره فوج جنګیدله. او په هوا باندے هوائی جهازونو دَ اور بمباری کوله. لیکن سره دَ دغے دَ غازیانو په همت او استقلال کښے هیڅ فرق نه وو راغلے. دَ مهمندو په پوله دَ باجوړ. کونړ. ننګرهار ټول پښتانه غازیان دَ مهمندو په ملا تړ کښے جنګیدل غزائے کوله. او دَ غازیانو تعداد ورځ په ورځ زیاتیده.

د | څلورمه دا چه دَ فرنګیانو مشهوره پلټن ګائیډ پلټن په دے غزا کښے داسے په مکمل طور تباه شوے وه چه یو سپاهی ئے

هم ژوندي نه وو پاتې شوي. دا پلټن چه په سنه ١٨٤٦ء کښې د مردان په مقام جوړه شوې وه. او دهلي او کابل ئې وهلي وو. ٨٩ نهه اتیا کاله پس په سنه ١٩٣٥ء په مهمند وکښې تباه شوله دَ کائیډ پلټنې په تباهئ کښې په خصوصیت سره دَ عثمان خیل مهمند و شاه حلمو غازیانو ښه مړانه ښکاره کړې وه. او چه دَ کائیډ پلټن تباه شوله نو غازیانو له دَ دغه پلټنې دَ سپاهیانو او افسرانو ټول میګزین په لاس ورغلي وو. او مخل خان نومې یو غازی چه په قام باندې عیسی خیل مهمند وو. هغه دَ یو انګریز افسر نه سر پریکړې وو. او دَ ځان سره ئې دَ نمونې په طور وطن ته وړې وو.

دغه دَ دې جنګ پوزیشن وو. هر کله چه دَ دې دومره تباهئ نه پس دَ فرنګیانو وار خطا شه بې دریغه فوځ ئې مړ شه. تقریبًا یو ځلویښت کروړه روپئ خرڅ ئې پرې او شه. او بیا هم دَ جنګ دَ ختم کیدلو او دَ غازیانو په حوصله کښې دَ څه فرق او کم والی علامه نه ښکاریدله. نو په جرګو ئې کوټې پورې کړلې. دَ صلح کولو درخواستئ او کړ. په سنه ١٩٣٦ء کښې دَ صوبه سرحد ګورنر چه ګریفتهه نوم ئې وو. هغه دَ علیمزو ملکانو یوه جرګه دَ ترنګزو حاجي صاحب له اولیږله چه مونږ ته صلح کوو. حاجي صاحبؒ هم صلح ته غاړه کیښود له. دَ صلح دَ پاره ئې دَ مهمندو سپین ګیرو ملکانو یوه جرګه خوښه کړه. جرګه کنداو ته راغله. خبرې اترې او شولې صلح او شوه او دَ فرنګیانو فوځونه دَ کنداو نه را واپس شول.

دَ ترنګزو دَ حضرت حاجي صاحبؒ په ژوند کښې دَ سنه ١٩٣٦ء دغه جهاد اٰخرینې جهاد وو. په سنه ١٩١٦ء کښې ئې دَ غزاګانو کومه سلسله شروع کړې وه. پوره شل کاله عمر ئې په دې زمکه په جهادونو کښې تیر شه. او دَ دغه شاندار مجاهدانه ژوند تیرولو نه دوستو په لسم تاریخ

دَ واړه اختر میاشتې ۱۳۵۶ھ مطابق ۱۴ ردسمبر ۱۹۳۷ء دَ دے دُنیا نه ے رحلت اوکړ۔ او په مقام دَغازی آباد علاقه سورکمر قبائلی علاقه مهمند کښے ے مزار پرانوار جوړ شه۔ علیه الرحمة والغفران۔

## نامور غازیان

دَ مهمندو په زمکه په غزاګانو کښې چه کومو غازیانو لوئ نوم ګټلے وو۔ په هغے کښے دَ ملک ماصل خان او ملک میاں جان کوډاخیل نومونه دَ یادولو دی۔ دا دواړه بهادران غازیان دَ حضرت حاجی صاحبؒ دَ ترنګزو کلک ملګری وو۔ او دَغزا په میدان کښے ے دَ جرات او شجاعت کارنامے انجام ته رسوُلے وے۔

دَ مهمندو په زمکه په سنه ۱۸۵۰ء کښے دَغزاګانو سلسله شروع شوے وه دَ سنه ۱۹۳۵ء پورے دَ دے بهادر او غازی قام غازیانو ۸۵ کاله پوره په نرتوب دَ فرنګیانو دَ طاقت مقابله اوکړه۔ او په تاریخ کښے ے دَ بهادری دَ شانداره کارنامو یادونه یادګار پاتے شول۔

---

# دَ مالاکنډ غزاګانې

دَ مالاکنډ دَغزاګانو نه ځمونږه مراد هغه غزاګانې دی. چه دَ مالاکنډ په لاره په سوات. دیر. باجوړ اوچترال کښې د سنه ۱۸۵۲ء نه تر سنه ۱۹۳۰ء پورې په ۷۸ کاله زمانه کښې شوی دی.

دَ مالاکنډ په یوه حصه کښې اتمانخیل قوم آباد دے. دَ دے قوم دُغزاګانو حال مونږه مخکښې دَ مهمند قوم دَغزاګانو په باب کښې بیان کړے دے. دَ درهٔ مالاکنډ نه ښکته جنوب طرف ته رانړي زی قوم آباد دے. چه په سم رانړي زی یا دیږی. او دَ درهٔ مالاکنډ نه جنوب طرف ته چه دَ رانړي زی قوم کوم خلق آباد دی هغه ته سوات رانړي زی وائی. په سنه ۱۸۵۲ء کښې چه فرنګیانو دَ اتمانخیل قبیلے په خلاف لشکر کشی کړے وه. هرکله چه دَ پړانګ غار غزاله رانړي زی هم راغلی وو. نو فرنګیانو چه څه وخت پړانګ غار اووهه نو رانړي زو له دَ سزا ورکولو دَ پاره حملهٔ پرے کړے وه. او دَ درګئ، خرکی پورے دَ سم رانړي زی علاقه وهلے وه. پنځه زره روپۍ جرمانه ئے پرے لګولے وه. دَ خپلے خوښے په شرطونو ئے دَ سم رانړي زی دَ ملکانو نه دستخطونه اخیستی وو. او بیا قلار شوی وو. څه شورش یا غزاله نه وو راپا سید لی. او انګریزانو ته هم څه داسے بهانه په لاس نه وه ورغلے چه په سم رانړي زی حمله اوکړی. او دَ مالاکنډ په دره قبضه اوکړی. په سنه ۱۸۵۲ء ۵۳ کښې په رانړي زو باندے دَ انګریزانو فوځونو دَ سرکالن ځچیل په کمان کښې حمله کړے وه.

په دغه زمانه دَ انګریزانو توله توجه دَ بنیر په طرف وه. ځکه چه هلته دَ هندی مهاجرینو او دَ امیر المجاهدین حضرت سید اکبر شاه بادشاه

صاحب ډیرلوئ زور او طاقت وو۔ دَحسن زی قبیلے خلق راپورته شوی
وو۔ دَ فرنګیانو غټه خطره دَ هغوئ نه کیدله۔ او ټول طاقت ئے په
مردان او کالوخان دَ هغوئ دَ مقابلے دَپاره جمع کړے وو۔

په سنه ۱۸۷۷ء کښے چه دَ سوات اخوند صاحب وفات شه۔ او دَ
دیر او سوات دَخلقو په منځ کښے کشمکش راغے۔ نو دَ فرنګیانو بعض مخالفان
دَ سمه رانړی زی علاقے ته راغلی وو۔ شاه کوټ کښے وئے قبضه کړے وه۔
نو په سنه ۱۸۷۸ء کښے دَ انګریزانو یو مضبوط فوځ دَ سرکالن کچیل المعروف
لارډ کلائیډری په کمان کښے دپلئ او شیرخانی په لاره پرے حمله او کړله۔
لیکن رانړی زو مقابله او نه کړله۔ دَ فرنګی شرطونه ئے او منل۔

په اپریل سنه ۱۸۹۵ء کښے چه دَ فرنګیانو فوځونو دَ میجر سر آرلو۔ او کرنل
کیلی په کمان کښے په عمرا خان پسے لام کوُلو۔ او دَ سول افسر په حیثیت
سره شهزاده ابراهیم خان چغتائی ورسره وو۔ دَ درګئ او خرکی په مقام
دیره وو۔ هغه دَ رانړی زی قبیلے خلق په جرګه او وهل خاموش پاتے شول۔
البته چه دَ مالاکنډ په کنډو جنګ جوړ شه۔ او دَ بره سوات۔ دیر۔
باجوړ۔ اتمان خیل غازیان ورله راوچلیدل۔ نو دَ سوات رانړیزی بهادرانو
پښتنو بنه توره کړے وه۔ بیا چه دغه جنګ ختم شه۔ نو په تاریخ ۱۳ستمبر
سنه ۱۸۹۵ء انګریزانو دَ سوات رانړی زی او سم رانړی زی سره یو معاهده او کړله
په سنه ۱۸۹۷ء کښے چه دَ مالاکنډ دویمه لویه غزا کیدله۔ انګریزانو دَجنرل
میکلی جنرل ببلډ او کرنل ریډ په کمان کښے کوټے حملے کړے وے۔ او په
هغے کښے په خاص طور سره کرنل ریډ دَمالاکنډ په ځمکه دَ رانړی زی قام
په پوله په اتمانخیلو حمله کړے وه۔ نو په دغه غزا کښے دَ سم رانړی زی خلق
بیا خاموش پاتے شوی وو۔ او دَ سوات رانړی زی خلقو ډیر په بهادرئ
جنګ کړے وو۔ په دے غزا کښے دَ اله ډنډ ډیری یوے بهادرے پښتنے

خانخیلي میرمنې چه په کومه بهادرۍ غزا کړې وه دَ غازیانو مورچو ته به ئې ډوډۍ. وسله او دارو مرد کې رسولې. غبرګې کړدنۍ به ئې اچولې وې. توپک او توره به ورسره وه. او دَ غازیانو په سر کښې به په مورچه ورختله. دَ شپې به ئې دَ فرنګیانو په مورچو داړې اچولې دَ هغې دَ جهاد کارنامې به تل ترتله په تاریخ کښې یادګار پاتې وی.

دَ لوند خوړ دَ جوړکلي حاجي کشمیرخان چه اوس هم ژوندې دې او په دغه جهاد کښې شامل وو. هغه چه دَ دغه بهادرې پښتنې مجاهدې

## معصومه ترور

دَ بهادرۍ کوم قیصې کوی هغه دَ پښتون دَ بهادرانو غازیانو دَ کارنامو یو زرین باب دې دغه شان هرکله چه دَ کرنل میکلي جان په کمان کښې دَ انګریزانو فوځ دَ انمانخیلو علاقې ته مخه اوکړه. په حصار تو تکان ورغلل نو دغلته دَ حصار او قلنګۍ ترمنځه یو کلې دې میشته نوم ئې دې. تود جنګ وو. دَ انګریزانو فوځ ګوله باري کوله. دَ نماز دیګر وخت وو. یو غازي په نمانځه او دریدکا. په قلار زړه ئې مونځ کاوه. ولاړ وو. دَ فرنګي فوځ پرې ګولۍ ورولې. دَ هغه پرې هیڅ پروانه ده. او حیرانتیا داوه چه په کوم ځاې کښې هغه په نمانځه ولاړ وو. په هغه ځاې کښې دَ فرنګي دَ فوځ دَ ګولو هسې ډیرې جوړ شه. لیکن نه هغه غازي په ګولو لګیدۀ. او نه دَ هغه په مونځ او حوصله کښې څه فرق راغلو. چه هغه غازي مونځ خلاص کړ. دعاګانې اوکړه. توپک ته ئې لاس کړ. دَ جمات په دیوال کښې ئې مورچه سازه کړه. دَ فرنګي په فوځ ئې ډزې شروع کړې. روغ فوځ ئې دَ مخکښې تللو نه حصار کړ. دَ جهاد په دې کارنامو چه دَ سوات رانیزي هرڅومره فخر اوکړی کم به وی.

دَ مالاکنډ په تاریخ کښې دوه لوئې غزاګانې شوې دی. یوه په

سنه ۱۸۹۵ء کښې او بله په سنه ۱۸۹۷ء کښې او مونږ هم په دے باب کښې دَ دغه دواړو غزاګانو حالات په اختصار سره بیانول غواړو۔

# دَ چترال غزا

په اپریل سنه ۱۸۹۵ء کښې چه انګریزانو په مالاکنډ باندے کومه حمله کړے وه۔ دَ درهٔ مالاکنډ نه اوختی وو۔ دَ دیر او باجوړ علاقے ئے وهلے وے۔ دغه غزا په تاریخ کښې دَ چترال غزا په نوم حُکه یادیږی۔ چه دَ دے جنګ بنیاد دَ چترال نه نخښے وو۔ که دے غزا ته دَ مالاکنډ غزا او وئیلے شی۔ که دَ چترال غزا ورته او وئیلے شی دا جنګ دَ دے دَ پاره شوے وو۔ چه په هغه زمانه چه په سوات۔ دیر۔ باجوړ۔ اتمان خیل۔ مهمند۔ بونیر۔ کونړ۔ چترال او کافرستان باندے دَ خان عمر افغان کوم حکومت وو۔ فیرنګیانو ئے ختم کول غوښتل۔ په دے وجه دَ دے غزا دَ حالاتو دَ بیان نه وړاندے په دغه تاریخی پس منظر باندے ځان پوهه کول ضروری دی۔

مخکښې مونږه دَ خیبر دَ غزاګانو په باب کښې په دے خبره بحث کړے دے۔ چه په سنه ۱۸۴۱ء تا سنه ۱۸۴۳ء کښې چه انګریزانو په کابل کښې کوم فساد ونه او خونریزئ کړے وے۔ یا دَ هغے نه روستو په سنه ۱۸۷۸ء تا سنه ۱۸۸۰ء کښې ئے چه په کابل کښې څه کړی وو۔ دَ هغے یو باعث دا وو۔ چه روسیانو دَ ایران او افغانستان طرف ته مخه راکړځولے وه۔ او فیرنګیانو دا غوښتل چه روسیان دَ برطانوی هند نه لرے او جدا اوساتی۔ دَ دغه مقصد دَ حاصلو دَ پاره په کابل کښې چه کوم فسادونه ئے پورته کول۔ جنګونه او ظلمونه کول ئے شروع کړی وو۔ دَ هغے څه لږ ډیر بیان مخکښې شوے دے۔ په دے سلسله کښې چترال هم یوه داسے علاقه وه چه پوله ئے دَ روسی ترکستان سره جنګیده۔

روسیان چه دَ چترال دَ پولې پورې رارسیدلی وو او فرنګیانو دَ
دغې خطرې دَ تابیا دَ پاره په چترال کښې ځان له ځای پیدا کولو.
چنانچه فرنګیانو چترال ته اول مخبران اولیږل. او بیا ئې فوځ اولیږه.
دَ دې دواړو واقعاتو بیان مونږ ه په پخه تاریخي حواله سره دلته
بیانول غواړو.

## چترال ته مخبران لیږل

مخکښې دا ذکر شوی دې چه دَ فرنګیانو دا کوشش وو چه په کابل
کښې دې دَ انګریزانو سفیر ته دَ اوسیدلو اجازت ورکړې شي. او دَ
هغې دَ پاره په کابل کښې ئې هره لوبه کړې وه دغه شان چترال
هم په هغه زمانه ځان له یو جدا حکومت وو. او دغلته به دَ
بادشاه سره دَ مهاراجه کشمیر او امیر کابل دواړو سفیران موجود
وو. انګریزان چه دې وطن ته راشریک شول نو دائې غوښتل
چه چترال کښې عمل دخل پیدا کړي او دَ دوئ یو سفیر دې هم په چترال
کښې موجود وي چه په دې لاره باندې دَ روسیانو مخه اونیسي.
چنانچه دَ دې غرض دَ پاره ئې چترال ته دَ مخبرانو لیږلو فیصله اوکړله
چه صحیح حالات او دَ دغه ملک نقشه راوړي په سنه ۱۸۶۹ء کښې چه
کوم مخبران ئې چترال ته لیږلي وو. دَ هغې حال دَ میجر جنرل ینګ هز
بنډ په الفاظو کښې دلته درج کوُو. لیکي:-

„ په سنه ۱۸۶۹ء کښې سرکار انګلیشیه ته دَ یو خاص
او ضروري خدمت سرته رسولو دَ پاره دَ یو
داسې سړي ضرورت پیښ شه چه هغه نهایت
باتدبیره. تعلیمیافته. جفاکش او بهادر وي —
ځکه چه هغه ته یو داسې خدمت حواله کیدونکے وو.

چه دَ هغې دَ پاره ډېره موده خپل سر په تلې
کښې ایښے په مسافرئ تلل وو. دَ جهانګیری
کلی تحصیل صوابئ یو بهادر او تعلیمیافته
سړے چه نوم ئے دلاور خان وو. او په
قام خټک وو دَ دے کار دَ پاره غوره کړے
شه. هغه دَ ټولو خطراتو او خدشاتو مقابله
کول او په دے خطرناک مهم باندے تللې ته
خوشحالئ منظور کړل. دَ هغه سره یو بل سړے
هم وو چه احمدجان نوم ئے وو. دا دواړه
روان شول. او دَ ډېرو سختو او تکلیفونو
برداشت کولو نه روستو دَ مهترچترال
علاقے ته اورسیدل. او هلته چه څه کار
ورته حواله شوے وو. هغه ئے ختم کړے
وو. دَ واپسئ تیاری ئے کوله چه په دغه منځ
کښې یوه ورځ غرمه دَ یوے ولے لاندے دَ
نورو مسافرانو سره ناست وو خبرے اترے
ئے کولے. چه ناساپه دَ مهتر سپاهیان
راغلل او ئے نیول او فوراً ئے په سنګینه
پهره کښې مهترچترال ته دَ پیش کولو دَ پاره
بیرته چترال ته بوتلل. دَ دلاورخان سره
څه خفیه کاغذات او رپورټونه وو. چه هغه
دَ چابل په لاس کښې دَ پریوتلو نه وو. هرکله چه
دلاورخان پوهه شه چه مصیبت راتلونکے دے.

نو دَ تالاشئ نه څخکښې ئې چالاکی اوکړه هغه
خفیه کاغذونه ئې دَ چترال سیند ته گذار کړل۔
چه چترال ته ئې اورسولو۔ نو دے او دَ
ده ملگرے ئې دَ دویم حکم پورے په قید
خانه کښې بند کړل۔ بیا چه مهتر چترال
ته پیش کړے شول۔ نو مهتر صاحب دَ دلاور
خان نه تپوس اوکړ چه ته څوک ئې او دکوم
ځای نه راغلے ئې۔ هغه جواب ورکړ چه ځما
نوم مُلا دلاور دے۔ بخارا ته دَ سخی صاحب
زیارت له روانیم۔

مهتر صاحب ورته اوویل۔ "غلط! ته دَ گائیډ پلټنې صوبیدار
ئې۔ دلاور خان نوم دې دے۔ ملحد ئې۔ کافر ئې۔"

دلاور خان:۔ تاسو بالکل درست فرمائې۔ یو وخت هغه هم
وو۔ چه زهٔ په گائیډ پلټن کښې صوبیدار شوے ووم۔
لیکن ما پخپله زمانه کښې ډیرے خبرے بدلے کړی
دی۔ اوس خو زهٔ مُلا یم۔

مهتر صاحب:۔ "دروغ وائې۔ ته اوس هم دَ فرنگیانو جاسوس ئې۔
دلته مخبری له راغلے ئې۔ هاں یو شرط دے که دَ انگریزانو
رازونه ما ته څرګند کړے نو خلاص به شې۔"

دلاور خان:۔ ما ته خو هیڅ راز نه دے معلوم۔ مهربانی اوکړئ
ما پریږدئ۔ زهٔ به بیرته خپل وطن ته لاړ شم۔ او دَ
کاکا صاحبؒ زیارت له چه لاړ شم نو ستاسو دَ طرف
نه به یو غلاف په زیارت واچوم۔ شکرانه به ورکړم۔

مهترچترال:۔ په دروغونه شي خلاصيدے. ستا تول حال ماته معلوم شوے دے. چه کله دلته راغلے اوخه دے کړيدی۔ دَ هغے نه خبريم واوره!

"اول يو انګريز يو ملک ته په طور دَ سيّاح يا دَ سيل او ښکار دَ پاره راشي بيا دوه راشي. بيائے مخبران راشي. بيا دَ هغه ملک نقشه اوکاږی. بيائے فوج راشي. او هغه ملک قبضه کړی. په دے وجه هښياريا داده چه اولے انګريز چه کوم ملک ته راشي، هغه په اوله ورځ وژل پکار دی. زه په قام مغل يم په دهلی کښے دَ مغل رونړو بادشاهی وه که هغوی په فرنګی اتبار نه وے کړے بادشاهی به ترينه نه وه تلے"

دَ دے وينانه روستو مهترچترال دَ دربار عالمانو ته مخ اوکړو او هغوی حکم اوکړ چه دلاورخان دے سنګسارشي. دَحکم نه پس دلاورخان بنديخانے ته بوتللے شه چه صباله به ئے وژنی دلاورخان دَ شپے دَ بنديخانے نه اوتښتيده. دَ افغانستان طرف ته واخان ته اوختلو په لاره دَ واورو په طوفان کښے مړ شه. (ګائيډز کی کهانی صـ۷۲ تا صـ۸۲ طبع سنه ۱۹۳۷ء)

## چترال ته فوځ ليږل

دَ دے پورته واقعے نه په آسانه دا اندازه اولګولے شي چه انګريزانو په هرقيمت چترال ته رسيدل غوښتل. ليکن حالات داسے وو. چه دا خبره اونکيدله. دَ فرنګيانو دَ بدقسمتی نه په سنه ۱۸۸۱ء کښے دَ باجوړ په وادی جندول کښے دَ ترکانی قوم دَ عيسیٰ خيل قبيلے په مست خيل نو شے خاندان کښے يوسړے دَ جندول خان شه چه دَ هغه نوم عمراخان ابن امان خان ابن فيض طلب خان وو. عمراخان په سنه ۱۸۸۰ء کښے

حج کړے وو۔ اوهلته ئے دَ تحریک ولی اللهی دَ مشهور بزرګ حضرت رشید احمد ګنګوهی علیه الرحمة نه لاس بیوه کړے وه۔ او په دغه اعتبار دَ شیخ الهند مولانا محمود الحسن اسیر مالټا پیر بهائی شوے وو۔ او دَ حج نه ئے دَ ځان سره دَ انګریزانو په خلاف دَ نفرت جذبه۔ او دَ جهاد جذبه دواړه راوړی وو۔ اوچه په سال ۱۸۸۱ء کښے خان شه۔ نو سمدستی ئے اعلان اوکړ۔ چه ځما خانی چه په هر څومره علاقه باندے ده په هغے کښے به ټول فیصلے دَ شریعت اسلام په مطابق کیږی۔ په نورو لفظونو کښے په وادی پیښور کښے دَ سید احمد شهید دَ اسلامی حکومت نه روستو دا دویم اسلامی حکومت وو چه په باجوړ کښے قائم شه۔ او ورسره دَ جهاد اعلان ئے هم اوکړ۔ اولنے جهاد ئے په کافرستان اوکړ۔ او دَ کټار ګنبیر پورے دَ کافرستان علاقه ئے فتح کړله۔ دَ موجوده افغانستان دَ سمت مشرقی په مشهوره علاقه کونړ ئے قبضه اوکړله۔ په اسمار۔ دم کلی۔ چغه سرائے وغیره ئے قلاګانے جوړے کړلے۔ دَ موجوده مهمند ایجنسئ ټوله علاقه دَ موجوده مالاکنډ ایجنسی ټوله علاقه او ورپسے دیر۔ سوات۔ بنیر ئے قبضه کړل۔ په مالاکنډ ایجنسئ کښے دَ سخاکوټ او پلئ شیرخانی او دَ پیښور په ضلع کښے دَ تنګی پورے ئے پوله راورسیدله۔ بیا روستو چه په کابل باندے امیر عبدالرحمان بادشاه شه دَ هغه سره ئے په اسمار جنګ اوکړ۔ او دَ سردار غلام حیدر خان چرخی له ئے شکست ورکړ۔ دَ چترال هغه علاقه چه دَ کافرستان په سرحد باندے ده۔ لکه ساؤ۔ ناړئ۔ دالکام۔ نرصات۔ بیلم هغه ئے اونیول۔ دَ باجوړ دَ نیم حکمران دلاور خان ئے او واهه۔ هغه په کډه پیښور ښهر ته راغے۔ دَ دیر خان اخند زاده محمد شریف خان

ئے په جنګ اوواهه. هغه دَ سوات منګورے ته بيا کابل ته اوبيا دَ
مردان کلی (ښهر) ته راغے دَ خان شاد محمد خان دَ مردان سره ئے دَ بے
ځايئے ژوند تيره ولو. دَ کونړ سيد محمود باچا صاحب چه هغه دَ امير
عبدالرحمان خان دُشمن وو. هغه لرے ئے دَ جنډول په کامبټ کښے
ځائ ورکړ. او دَ امير عبدالرحمان خان دَ دُشمنۍ پرواه ئے او نه کړله.
دَ چترال مهتر صاحب ته ئے اووئيل چه پښيل دربار کښے ځما سفير
به هم ساتے. چه دَ کشمير او کابل سفيران موجود وی ځما سفير به هم
موجود وی. او خپل اولنے سفير سيد عبدالکريم ئے چترال ته اوليږه.
په دغه ورځو کښے يو کاکاخيل مياں دوه فرنګيان افسران دَ مسلمانانو
په جامه کښے دَ عمرا خان علاقے ته بوتلی وو. اعلان ئے اوکړ چه که
چا ژوندی راوستل لس زره روپئ انعام او که چا ئے سرونه راوړل
نو پنځه زره روپئ انعام به ورکړے شی. هغه کاکاخيل مياں اوهغه
دواړه فرنګيان په تيښته چترال ته لاړل. او هلته په چترال کښے په
ريشه دوانئ کښے کامياب شول. او دَ فرنګيانو سره مهتر چترال لار
واخيسته چه عمرا خان ترينه خبر شه هغه مهتر ئے دَ تخت نه
کوز کړ. دَ هغه په ځائ ئے بل مهتر کينولو. په دغه منځ کښے دَ انګريزانو
دوه فوجی افسران دَ کشمير نه دَ ګلګت. غذر او ياسين په لار
چترال ته راواوريدل چه دَ يو نوم لفټننټ کرنل فولر وو. او دَ بل
نوم لفټننټ کرنل ايډ وردس وو. دَ دے دواړو کرنيلانو سره فوجی
دسته هم وه. دوئ دَ مارچ ۱۸۹۵ء په ورځو کښے چترال ته راغلی
او دروش ته رانوتلی وو. عمرا خان چه ترينه خبر شه. نو دَ دروش
په دغه انګريزی فوځ ئے حمله اوکړله. دواړه کرنيلان ئے اونيول.
بيا وروستو مخکښے روان شه دَ چترال خاص قلائے محاصره کړله.

عمرا خان هلته دَچترال په جنګ کښې مشغول وو۔ چه دَ بنګته طرف نه انګريزانو په مالاکنډ حمله اوکړله۔

منشی عزيزالدين ميرمنشی برټش ايجنسی چترال چه دَ ۱۸۹۵ء په جنګ کښې پخپله په چترال کښې موجود وو۔ هغه يو کتاب ليکلے دے۔ تاريخ چترال دا کتاب په ۱۸۹۷ء کښې په آګره پريس آګره کښې چاپ شويدے۔ هغه په دے کتاب کښې دَچترال دَ جنګ يوه روزنامچه ليکلے ده۔ هغه ليکی چه کله دَ فرنګی فوج په مالاکنډ راواوخت نوخان عمرا خان پخپله په چترال کښې وو۔ په ۲۱ر اپريل ۱۸۹۵ء عمرا خان دَچترال په محاذ جنګيده او په هم دغه ۲۱ر اپريل دَ دے نه خبر شه چه دَ فرنګی فوځ په مالاکنډ راورسيدلے دے۔ او په دريائے پنجکوړه هم راپورے وتلے دے۔ عمرا خان دَ ساؤ۔ نارئ په لاره چه راواپس شه او په ۲۳ر اپريل ۱۸۹۵ء خپل مرکزی مقام مونډې ته راورسيده۔ نو دَ فرنګی فوځ هم دَ مونډه نه دَ لس دولس ميله په فاصله کوسم ډاک ته رارسيدلے وو۔ دَ عمرا خان جانباز فوځ په چترال پروت وو۔ او په دے محاذ په مالاکنډ او چکدره دَ هغه لښکر دور محمد شاه خان جنګيده۔

که څوک په لاس کښې دَ ميرمنشی عزيزالدين کتاب "تاريخ چترال" موجود نه وے۔ نو سر جارج کپتن ينګ هزبنډ چه په خپل کتاب "دی ريليف آف چترال" کښې کومے غلط بيانی کړے دی۔ يا په کتاب "امپيريل ګزيټيرآف ډبليو ايف پی ۱۹۰۸ء" کښې واقعات په کوم غلط رنګ کښې ليکلی شويدی په هغے به نه وو پوهه شوی۔ لکه څاخوږ دوست مرحوم الله بخش يوسفی چه پخپل تاليف "تاريخ يوسفزے" کښې دغه غلط بيانی رانقل کړی دی۔

ميرمنشی عزيزالدين دَخان عمرا خان حالات په ډير تفصيل سره

بیکلی دی۔ په دیر باندے چه دَ دیر دَ خان محمد شریف خان برخلاف عمرا خان حمله کړے وه دَ هغے په باب کښے لیکی :

"خان عمرا خان کے چار صد خونخوار اور قواعد دان
نوجوانوں نے اخند زاده محمد شریف خان خان دیر
کے سات هزار لشکر کو شکست دیدی تھی ـــ"

په ځلور سوه ځوانانو دَ دشمن اووه زره لښکر له شکست ورکول یقیناً چه لویه تاریخی کارنامه ده۔ او دا کارنامه ئے په دے وجه انجام ته رسوُلے وه۔ چه په سنه ۱۸۹۰ء کښے دَ دیر خان اخند زاده محمد شریف خان دَ فرنګیانو سره پټه معاهده کړے وه چه دَ فرنګیانو ډاک به چترال ته زهٔ رسوُم ۔ دَ محمد شریف خان نه ئے خانی واخیستله جلاوطن ئے کړ۔ چه دَ انګریزانو دَ سازشونو جاله خوره شی۔ او بیا ئے ما لاکنډ سوات۔ بنیر ټوله علاقه ئے هم قبضه کړله۔ چه چترال ته دَ رسیدلو ټوله طمعه خوره شی۔

په سنه ۱۸۹۵ء کښے چه کرنل فولر او کرنل ایډورډس دواړه دَ دروش په قلا کښے دَ عمرا خان دَ حملے په وجه قلا بند شول۔ نو کرنل فولر به عمرا خان ته خطونه لیکل چه دَ انګریزانو سره دوغه جوړه پکار ده او دا پکار دی۔ دا یکار دی او موږ ته پریږده۔ نو عمرا خان به دَ کرنل فولر دَ خط په شا دَ حدیث شریف دا مختصر الفاظ اولیکل اَسْلِمْ تَسْلَمْ (مسلمان شه خلاص به شے) کرنل فولر حکومت هند ته په څه طریقه خبر راولیږه چه په دا سے سړی آخر یوُچه په غیر دَ دغه دوه لفظونو نه په بل هیڅ جواب نه پوهیږی۔ ځونږ دَ خلاصولو څه بند اوکړئ۔ چنانچه دَ هغوئ دَ خلاصولو دَ پاره دَ سنه ۱۸۹۵ء لام شوے وو۔

کوم انګریزانو چه دَ خان عمرا خان حالات لیکلی دی۔ هغوئ عمرا خان

په تعریفي الفاظو "افغان نپولین" یاد کړے دے. میرمنشي عزیزالدین لیکي چه عمراخان "فاتح اعظم" دے. مدبّر دے. او بهترین "فوجي جرنیل" دے. تر دے وخته پورے په هر محاذ او هره علاقه چه حمله ئے کړے ده شکست ئے نه دے خوړلے/ دا سے خونخوار قواعد دان فوج ئے دے. دومره بهترینه وسله ورسره ده. فوجي او جنګي منصوبه بندي دومره بهترینه کوي. په دومره فوجي قابلیت خپل فوځ جنګوي. چه په هغے کښے دَ شکست هیڅ وسوال نه پیدا کیږي. دَ افغانستان لوئ جرنیل او بهادر سپه سالار غلام حیدرخان چرخي له چه دَ اسمار په محاذ ئے کوم عبرتناک شکست ورکړے وو. هغه دَ دے خبرے بهترین مثال دے "

## دَ غازي عمراخان خلاف دَ انګریزانو دَ حملے دویمه وجه

پورته چه کوم واقعات دُ دَ ملاکنډ دَ ۱۸۹۵ء دَ جنګ یوه وجه وه دَ دے نه علاوه یوه بله وجه ئے هم وه. او هغه دا چه عمراخان په لس دولس کاله زمانه کښے په ډیر لوئ ملک قبضه کړے وه. په هغے کښے اسلامي حکومت جوړ کړے وو. او غټه خبره دا وه چه دَ انګریزانو سره ئے په هیڅ جوړ سیاسي تعلق نه ساتلو بلکه دَ افغانستان سره ئے هم تعلق خراب وو. په دا سے حالاتو کښے دَ خان عمراخان یو دومره لوئ حکومت چه په هغے کښے دَ موجوده ریاست سوات دَ سوات او بنیر علاقه دَ ملاکنډ ایجنسئ محفوظه علاقه. ټول ریاست دیر. ټول باجوړ. ټول اتمانخیل. ټوله مهمند ایجنسي. نیم ریاست چترال. دَ افغانستان دَ سمت مشرقي دَ کونړ او کافرستان علاقے شاملے وے او حکمران ئے یو دا سے مسلمان وو. چه جهاد ئے کولو. او دَ انګریزانو ئے نه منل دَ هغه په خلاف څه نه څه کول پکار وو.

بله دا چه هرکله په سنه ۱۸۹۳ ء کښې انګریزانو د امیر عبدالرحمان سره
د ډیورنډ لائن معاهده اوکړله. نو د دې معاهدې له مخه د خان
عمراخان د مملکت څه حصه لکه ساؤ. نارې. دالکام. اسمار. پیچ
کافرستان. شال. شنکر. شورتن. هندوراج. د سورې ناوګۍ. او
وادئ کونړ دا ټول علاقې د ډیورنډ لائن نه بره د امیر عبدالرحمان
د مملکت حصه تسلیم شوې وې. د خان عمراخان دلیل دا وو چه
کوم ملک ئې په جنګ ګټلې دې خصوصًا کافرستان هغه انګریزانو
امیر عبدالرحمان ته په کوم دلیل ورکړلو. د دغې نه علاوه پورته
چه کومې علاقې یادې شوې په دغې کښې په غیر د کافرستان
او کونړ نه په نورو ټولو علاقو کښې د عمراخان د خیل قام ترکانی
خلق آباد دی. انګریزانو د ډیورنډ لائن په ذریعه د عمراخان د خپل
حکومت او خپل قوم علاقه او زمکه څرنګ ینمه کړه ینمه ئې امیر
عبدالرحمان ته او بخښله او د ینمې ځان دعویدار کړې. حکومت
او ملک ځما دے او ویش ئې دوئ کوی. دا یو داسې صورت حال وو
چه د خان عمراخان په خلاف انګریزان او امیر عبدالرحمان
دواړه متفق شوی وو. د پاره د دې چه د دے "فاتح اعظم" او "افغان نپولین
دا عظیم الشان حکومت ختم کړے شی نو امیر کابل ته به هم خیله
حصه په لاس ورشی او انګریزانو ته هم. چنانچه انګریز او امیر
دواړه یو شول[2] او په نتیجه کښې ئې د سنه ۱۸۹۵ ء د مالاکنډ د جنګ
واقعه پیښه شوه.

واقعات دا دی چه د عمراخان په خلاف فوجي اقدام کول
او حمله کول څه آسان کار نه وو. انګریزانو چه د سنه ۱۸۴۹ ء د نه
تر سنه ۱۸۹۵ ء پورې په قبائلی علاقو کښې یا په افغانستان کښې

کوم جنګونه کړی وو. په هغې کښې او د عمراخان په جنګ کښې فرق
وو. د افغانستان په جنګ کښې د هغه مقابله د سردار محمد اکبر خان
غازی او محمد ایوب خان غازی سره راغلې وه. خان عمراخان په
بهادرئ او جرأت کښې د دغه دواړو نومیالو نه کم نه وو. د
ډیر لوئ ملک حکمران وو. ډیر لوئ وسائل او خونخوار قواعد
دان فوځ ئې لرلو د هغه په جنګ وهل آسان نه وو. هغه ئې
په مکر او فریب او وهلو. د غازی امیر دوست محمد خان والی
افغانستان مثال ځونږ د وړاندے دے. هغه چه د سکهانو
یا انګریزانو په خلاف کله هم حمله کړے وه نو په پیښور باندے
چه د هغه کوم سکه خپل رونړه وو. سرداران پیښور د هغوئ
د سازشونو د لاسه ئې شکست خوړلے وو. دغه شان د عمراخان
یو خپل دور وو. عبدالمجید خان د عمراخان جرنیل وو.
وزیراعظم ئې وو. هغه فرنګیانو په بیعه واخیست چه فرنګیانو
په مالاکنډ حمله اوکړه د دے حملے هرڅو مره خبرو نه او اطلاع
مکانے چه به عمراخان ته لیږلے شوے هغه به عبدالمجید خان
شلولے. عمراخان په چترال پاتے شه او فرنګی په مالاکنډ داوریده
د دغے نه علاوه په هغه زمانه په صوبه سرحد کښې یو ډیر لوئ
او مشهور بزرګ وو. عمراخان ئې هم معتقد وو. د هغه نه
خطونه عمراخان ته رسیدلی وو. چه ته په چترال جنګیږه د
مالاکنډ فکر مه کوه. عمراخان ئې بے فکره کړ. او فرنګی په مالاکنډ
واوړیده. په ۲۳ اپریل سنه ۱۸۹۵ء چه عمراخان د چترال نه مونډه
ته راراورسیده او د فرنګیانو د توپو ډزے په کوسم کښې کیدے
آوازے مونډه ته راورسیده نو د عمراخان توپ په مونډه کښې

هیسے پروت وو۔ که عمراخان له خپل رور عبدالمجید خان او دَ
صوبه سرحد بزرگ دهوکه نه وے ورکړے نو دغه توپ به
په مونړه کښې نه بلکه په مالاکنړ کښې وو۔ دَ مازیګروخت
وو۔ دَ مونړه دَ قلعه نه بهر په جماعت کښې یو عمراخان و ویو
دَ زکئ قاضی صاحب ووچه دَ عمراخان مشر قاضی وو۔ یو ځما
عبدالحلیم اثر مؤلف دَ دے کتاب مشر تره عبدالکریم وو۔ ځما تره
عبدالکریم او ځما پلار رسید کریم دَ عمراخان دَ ترور ځامن وو۔
دَ عمراخان دَ پلار خور ځما عبدالحلیم اثر نیا بی بی وه۔ ځما تره به
عمراخان ته "پاچالالا" ویلو۔ ځما تره خبره کوله چه په دغه وخت
کښې چه دَ مونړه قلاخالی شوے وه۔ کړے دَ مونړه وتلے وے
په مسکینی دره دالګام ته روانے وے۔ عمراخان دوه خبرے
کړے وے (۱) یوه داچه ارمان دے چه که ځما شپاړس سوه
ځلمی په مالاکنړ پراته وے۔ او زه پخپله موجود وے۔ نو دَ فرنګی
شل زره فوځ به په مالاکنړ نه وو را اوړیدلے۔
(۲) زه خفه نه یم ځما نه خانی لاړه۔ دَ خلقو نه ایمان لاړ۔ زه
فرنګی او نه وهلم بلکه هغه چا او وهلم چه ماته خپل ښکاریدل
او ماته بزرګان ښکاریدل۔
چه ماښام مونځ او شه عمراخان روان شه۔ په آس سور
شه۔ اول دَ مونړه دَ قلاته چاپیره تاو شه۔ یو ساعت ولاړ وو۔
بیا دَ سین زو، معیار او مسکینی په لاره اسمار ته لاړ۔
چه دَ عمراخان حکومت ختم شه عبدالمجید خان چه غداری
ئے کړے وه هغه له انګریزانو څلور سوه روپئ نغدے او یوه سرداری
تما چه انعام ورکړه۔ او دَ صوبه سرحد دَ بزرګ پکښې شپږ زره

روپئ سالانه جاګير اوشه. فاعتبروا يا اولی الابصار!

داچه بيان شه دا د ۱۸۹۵ء دمالاکنډ دجنګ پس منظر وو. اوس به لږ شان د دے جنګ واقعات بيان کړو.

په ۱۴ مارچ حکومت هند اعلان اوکړو. چه دعمراخان رويه قابل اعتراض ده د هغه برخلاف اقدام ضروري دے. په ۱۹ مارچ په پيښور کښے د لښکر راجمع کولو کار شروع شه. او په دے باندے "چترال ريليف" نوم کيښودے شه. چه کرنل فولر او کرنل ايډورډس د عمراخان د بند نه راخلاص کړی. دا لښکر په نوښهر راجمع شه او په يکم اپريل ۱۸۹۵ء د نوښهر نه د مردان په لاره مالاکنډ ته روان شه. په پنځم تاريخ د مردان نه روان شه د ګائيډ پلټن هم ورسره ملګرے شوله او د دير جلاوطن خان اخند زاده محمد شريف خان چه د مردان د خان شاد محمد خان سره ديره وو. هغه ئے د خان سره روان کړ. په دے معاهده چه که د عمراخان حکومت ختم کړے شه. نو محمد شريف خان به بيا په دير باندے کينوی او چه څه ورته فرنګيان وائی هغه به کوی. خان شاد محمد خان او مياں رحيم شاه کاکاخيل د محمد شريف خان سره امداد اوکړو. دا فوځ چه د مردان نه روان شه. نو په دے کښے درے بريګيډه وو. نيم ګوره فوځ وو. نيم ديسی فوځ وو. دوه رسالے د آسونو د سورو وے. شپږ پهاړی توپ خانے وے. ورسره د پائنيرز او سيپرمائنرز د دے رجمنټونه وو. چه سرړ ابرټ لو ئے کمان کولو. پنځه نور انګريزان فوجی افسران وو. چه د هر يو عهده د بريګيډ ترجنرل وه. ۱ء بريګيډ ترجنرل. بی بلډ ۲ء بريګيډ ترجنرل. اے کے کينډوسی ۳ء بريګيډ ترجنرل جی ايچ. واټر ۴ء بريګيډ ترجنرل. ډبليو. کے. ګاډفری. ۵ء اے. جی. هيمنډ.

دَ دے نه علاوه دَ کائیډ پلټنې سره چه کوم انګریزان افسران وو۔ دَهغوئ نوموونه دادی ۱۔ کپتان ایچ مز ۲۔ لفټننټ کرنل بالټ ون ۳۔ لفټننټ کرنل بے۔ ټی ۴۔ جرنیل فریډرک کیمپل۔ او دسفرمینا دَ پلټنې دکمانډر نوم لفټننټ کرنل ایلمروو۔ او هرکله چه دَ دریائے پنجکوړه په محاذ دَ خزانه نومے کلی سره کرنل بی ټی اوژلے شه۔ نو دَ کائیډ پلټنې کمان جرنیل فریډرک کیمپل ته ورکړے شوے وو۔ دَ پایونیرز رجمنټ کمان کرنل کیلی کولو۔ او دَ توپ خانے کمان کپتان پیبلز کولو چه دے هم دَ کامرانۍ په غرکښے اوژلے شه۔ او دَ فرنګی دَ فوځ سره چه کوم لوئ توپ وو (میکسم توپ) نوهغه بیکاره شه ځکه چه هغه بغیر دَ کپتان پیبلز نه بل چانه شه چلولے۔

په عمراخان باندے دَ حملے کولو دَ پاره چه دَ مردان نه چه فوج روان شه۔ نو فوځ ئے تقسیم کړ څه دَ کوهی برمول په لاره په موره غر باندے ورغے۔ او څه دَ پلئ شیرخانۍ په لاره باندے په شاکوټ کنډو باندے ورغے۔ او څه دَ درګئ خرکی په لاره په دره مالاکنډ ورغے۔ غرض ئے دا وو چه غازیانو له دهوکه ورکړے شی او طاقت ئے تقسیم شی۔ تر دغه وخته پورے دَ سوات۔ دیر۔ باجوړ لاره په شاه کوټ کنډو باندے وه۔ غازیانو په شاه کوټ او فرنګے په مالاکنډ واوریده۔ دَ مالاکنډ په کنډو باندے غازیان هم پراته وو۔ مګر تعدادئے ډیرکم وو۔ بیا هم قبائلی غازیانو چه په دے محاذ په کوم مجاهدانه انداز کښے مقابله کړے وه دَهغے احوال دَ یو انګریز دَ خُلے نه دَ آوریدلو دے چه هغه بخپله په دے جنګ کښے شامل وو او هغه لیکلی دے۔ لیکی:۔

" دَ دشمن ( یعنے غازیانو ) هغه حقیقی بهادری دَ

هیرولو نه ده. چه دَ توپ خانے دَ پرله پسے
ښځه کهینټے سخټے گوله باریٔ او بمباریٔ په مقابله
کښے ئے ښکاره کړے وه. او چه کله دَ گوله باریٔ
نه روستو دَ سنگینونو جنگ شه سینه په سینه
جنگ شه نو غازیانو چه کومه بهادری ښکاره
کړے وه هغه خپل مثال نه لری.

دَ غازیانو یو سردار بیرغ ئے په لاس
کښے وو. سور او سپین بیرغ وو. دَ فرنگی فوځ
به دَ غره نیمائی ته رسیدلے وو. چه غازیانو
ته ئے په انگریزی فوځ دَ حملے کولو غږ اوکړ.
حمله ئے اوکړه. غازیان په قدم قدم پړیوتل
او هغه شان په حمله راروان وو. تردے چه
قبائلی سردار یواځے پاتے شه. هغه شان بےخوف
او خطرے په حمله راروان ـ زخمی شه او لویده.
بیا راپورته شه. بیائے حمله اوکړه بیا اولگیده.
بیا اولویده. بیا راپورته شه. بیائے حمله اوکړه
(انگریز توپچی ئے په توره اووهه مړئے کړ خپله
شړیٔ راغونډه کړه دَ توپ په خوله کښے ئے ورکړه)
پرے دپاسه دے هم په گولئ اولگیده شهید
شه. دَ دے نه زیات دَ همت او جرأت تصور هم
څوک نشی کولے (دَ دغه توریالی شهید زیارت
نن ورځ دَ سړک په غاړه دے هر څوک چه په
دغه لاره ځی سلام ورته کوی.)

## هارون خان شهیدؒ

دَ دے سختے جګړے یو نومیالے غازی هارون خان سلارزائی وو۔ دَ فرنګی توپچیانو سخته ګوله باری کوُله۔ دے ورله دَ شا دَ طرف نه راتاؤ شه چه ورله را اورسیده توپچی له ئے توره را خلاصه کړه دوه توپچی ئے کړ۔ دَ پاسه پرے دے هم په ګولو اولګیده شهید شه۔ چه هارون خان په فرنګی توپچی باندے توره را اوچته کړه په دغه موقع ئے یوه پښتو مصرعه کړے وه۔ یوه مصرعه ده لیکن دَ پښتنو شاعرانو په لویو لویو دیوانونو درنه ده۔ هارون خان وئیلی وو۔

سے:۔ په ملکنډ توره تیاره شوه
هاروَن توره ځلوه چه رڼا شینه

دَ سینکونو جنګ دَ مالاکنډ په سر شوے وو۔ دَ دغه جنګ دوه واقعے به یادګار پاتے وی۔ یوه داچه په دے جنګ کښے شپاړس سوه دَ دینی علمونو طالب علمان شهیدان شوی وو۔

دویمه داچه په دے جنګ کښے دَ باجوړ دَیو غازی شپږ ځامن شهیدان شوی وو۔ دغه غازی چه به راغے خپل ځوی به ئے اولیده چه شهید شویدے ورته به او نه درید ه صرف دومره تد به ئے اووئیل بچیه! شهادت دے مبارک شه او مخکښے به ئے قدم واخیست مخکښے به ئے بل ځوی شهید پروت وو۔ هغه ته ئے هم اووئیل بچیه! شهادت دے مبارک شه او مخکښے به روان شه۔ شپږ وارو ځامنو باندے ورتیر شه۔ مبارکی ئے ورکړله۔ او دَ مورچے سرته چه ورسیده پخپله هم شهید شه۔ دَ دغه بهادر نومیال "ډلوئ غازی" چه په قام مامون وو۔ زیارت دَ مالاکنډ په سر کښے دَ خوتانو په بنړ کښے دے۔ او زهٔ عبدالحلیم اثر چه کله هم ملکنډ ته ورشم دغه لوئ غازی اد

"تورزن شهید" ته په ډیر ادب سلام کوُم. یواځې زهٔ نه بلکه نور ډیر خلق هم ورته سلام کوی. زیارت پرے جوړ دے. البته دَ مالاکنډ په دے جنګ کښې چه هرڅومره انګریزان افسران قتل شویدی او دَ هغوئ قبرونه دَ مالاکنډ په سر کښې دی. دَ هریو انګریز په قبربانده کتبه شته دے. دَ هغه نوم او حالات پرے لیکلی دی. او دَ شهیدانو په قبرونو یوه کتبه هم نشته دے. چه دے څوک وو. او څومره په بهادرئ شهید شوے دے.

دَ درېم دَ مالاکنډ په کنډ وُجنګ اوشه. دَ شپې شپې دَ مورے غر او دَ شاه کوټ کنډ وُغازیان او تقریبًا شپږ زره هغه غازیان چه یو "صاحب" په چل ول په یو ځای کښې دَ فرنګی دَ خوشحالولو دَ پاره کلاصا کړی وو. دَ مالاکنډ غاښی له را روان شول. ټوله ورځ په دغے کښې تیره شوله صبا شپې له ئے په فرنګی حمله اوکړله. دَ فرنګی فوځ دَ سوات رانی زی په میدانی علاقه کښې خور شوے وو. په صباله دَ تهانه کلی په مقام جنګ اوشه. په بله ورځ دَ عمرا خان کشر رورخان محمد شاه خان سره دَ فوځ نه را اورسیده بیا فرنګی دَ سوات رانړی زی آواره علاقه نیولے وه. محمد شاه خان په چکدره پریو. دَ فرنګی فوځ په سیند ورپورے وتلو. خطره وه چه دَ محمد شاه خان په ګیره کښې راشی چه په دغه منځ کښې دَ حضرت نجم الدین صاحب المعروف هډے ملاصاحب په مشرئ کښې دَ باجوړ او مهمند و غازیانو لښکر را اورسیده. او دَ محمد شاه خان فوځ ئے بچ کړ. غازیان دَ چکدرے قلعه نه په شا شول. په دا موره قلا پریوتل. بیا هغې نه دوستو غازیان قدم په قدم دوستو تلل په تورورسک په کاټ کله. په زیارت په کامرانی سخت جنګونه اوشول ورپسې

دَ دریائے پنجکوړه په غاړه دَ تاریخ سخت جنګونه اوشول. غازیانو
له نوے امداد اګرا او رسیده لیکن دَ غازیانو سره دَ دارو مردکی کے
وو. په تش لاس جنګ وو. په تش لاس جنګ چرته کیږی. دَ
انګریزانو دَ فوج سره دَ لاهور پنجاب دَ سول اینډ ملټری ګزټ اخبار
نمائنده "مسټر رونټی اوون" مذکرے وو. هغه لیکی:

"وه غازی، لوگ دنیا اور مافیہا سے بے نیاز۔ بڑے بڑے
پتھر اٹھا کر انگریزی لشکر پر پھینکتے رہے۔ اسی طرح خود بھی مرتے
رہے۔ اور دشمن کو بھی مارتے رہے۔"

انګریزانو په ۲۸ ګنټے کښے په دریائے پنجکوړه دَ شکوکس په مقام
پل جوړ کړ. فوج په سینډ ړوسے وتلو په کوسم ډاک ورغے. دَ مُنډا
قلات خالی پرته و. عمراخان موجود نه وو. په مونږ اکښے دَ عمراخان
یو اژدها توپ پروت وو. "سر جارج ینګ هزبنډ" لیکی په دغه توپ
باندے په فارسی ژبه کښے دا عجیبه عبارت لیکلے شوے وو.

"اس توپ کا منہ نگلنے کیلئے کھلا ہوا ہے۔ اس کا نام کیا بتاؤں؟
توپ یا اژدہا؟ یہ توپ نہایت وزنی ہے۔ اور جہاں جاتی ہے
فتح پاتی ہے۔ اس کی نظیر نہ ہندوستان میں ہے۔ نہ کابل میں۔"

"ساختۂ غلام رسول"

انګریزانو دغه توپ په ډیر مشکله سره راوړلو. په مردان کښے چه
دَ کابل دَ ۱۸۷۹ء ۱۸۸۰ء په جنګ کښے وژلی شوو انګریزانو افسرانو کوم یادګار
جوړ شوے دے دا توپ کیښودے شه. په دغه یادګار کښے دَ پنجکوړه سیند
په غاړه مړ شوے کرنل ډیپ ...ی. دَ ملاکنډ په جنګ کښے مړ
شوے کرنل ایچی سن. دَ لنډاکی سوات په جنګ کښے مړ شوے کرنل
میک لین. او دَ کابل په جنګ کښے مړ شوی کرنل هم لیستی کیوکنړ

(کامنداری) جنکنز۔ ډاکټر کیلي شیخ دی۔ شاید دَ هغوئ دَ روح خوشحالو
دَ پاره دَ هغوئ دَ یادګار مخې ته دَ عمرا خان توپ ئې دَ دې دَ پاره ایښې
دې چه دَ دوئ بدل ئې دَ عمرا خان نه واخیست۔
دَ منډا قلعه دَ فتح نه روستو انګریزانو را اوګرځیدل۔ اخند زاده
محمد شریف خان ئې په دیر باندې خان کړ۔ معاهده ئې ورسره
اوکړله۔ دَ سړک او ډاک دَ حفاظت وعده ئې ترینه واخیستله۔ مواجب
ئې ورله مقرر کړ۔ بیا دَ فرنګی فوځ مخ په وړاندې روان شه چترال ته
اورسیده او پوره دَ اولس ورځو منزل اوکوشش نه روستو په چترال
کښې قلا بند فوځ او کرنل فولر او کرنل ایډ ورډس ئې راخلاص کړل۔
خان عمرا خان دَ امیر الملک په ځای شیر افضل خان دَ چترال مهتر
(بادشاه) کړے وو۔ انګریزانو بیا امیر الملک مهتر مقرر کړ۔ او
معاهده ئې ورسره اوکړه۔ انګریزانو ته سوات۔ دیر۔ باجوړ په لاس
ورغے او امیر عبد الرحمان نه کونړ او کافرستان په لاس ورغلل۔
او په دې جوړ دَ امیر کابل او انګریزانو شریک دشمن ختم کړے شه۔
دَ مالاکنډ ایجنسئ په نوم پوره نوے پولیټکل ایجنسی قائم شوه ــــ
چترال هم پکښې شامل کړے شه۔ او میجر ایچ۔ اے۔ ډین ئې اولنے پولیټکل
ایجنټ مقرر شه۔
دَ مالاکنډ په دې تاریخي غزا پورې دَ هغه زمانے
ډیرو پښتنو شاعرانو چار بیتے جوړې کړې دی۔ چه
په ایغ کښې دَ ضلع مردان دَ کالو خان نومے کلی دَ یاسین
نومے شاعر چار بیته ذیاته مشهوره ده او ډیر تاریخي مواد
احتمالًا پکښې موجود دی۔

# دَ مالاکنډ دوېمه غزا

په سنه ۱۸۹۵ء ۲۴ رمئی کښې حکومت هند دَ حکومت برطانیه نه دَ پېښور نه ترچترال پورې دَ سړک جوړولو او ورسره دَ هغې دَ حفاظت کولو دَ پاره اجازت غوښتې وو. دَ هغې جواب په ۱۶ راګست سنه ۱۸۹۵ء کښې را رسیدلې وو. او اجازت ورکړې شوې وو. انګریزانو دَ دغه غرض دَ پاره اقدامات شروع کړی وو. چه په دغه منځ کښې دَ سنه ۱۸۹۶ء هغه کال را ورسیده چه په دې کال کښې دَ بنیر نه ترچترال پورې ټول قبائل دَ انګریزانو په خلاف راپورته شول. دَ انګریزانو په خلاف دَ دې اور لمبه په اول سر کښې په وزیرستان کښې شعله شوې وه. بیا په کرم خیبر. سهمند کښې ئې لمبې اوچتې شوې او تر مالاکنډ. بنیر پورې را ورسیدلې. په مئی سنه ۱۸۹۷ء کښې په بره سوات کښې دَ انګریزانو خلاف خلق راپورته شو. دَ دیر نواب فرنګیانو ته خبر راولیږه چه دلته یو بزرګ دې "پالم ملا صاحب" نوم ئې دې. دَ غزا خبرې کوی خلق راپورته کوی. علاج ئې پکار دې. انګریزانو دَ "پالم ملا صاحب" دَ علاج تدبیر کولو چه په دغه منځ کښې دَ سوات په علاقه کښې په ۱۸ رجولائی سنه ۱۸۹۷ء "ملا مستان" نومې یو بزرګ راپورته شو. دَ لنډاکی په مقام ئې غازیان راجمع کړل او دَ غزا اعلان ئې اوکړ.

## غازی ملا مستان

دَ ملا مستان اصلی نوم سعدالله خان وو. دَ بونیر دَ یو عزتمند کورنئ سړې وو. دینی علم ئې کړې وو. ډیر عمر ئې په اجمیر شریف کښې تیر کړې وو. بهادر. زړه ور. توریالې او غازی وو. دَ جهاد په مینه مست وو. په ملا مستان نامه مشهور شو. اکثر به سر تور ګرځیده.

په "سرتور فقیر" نامه مشهور شه. دَ سوات دَا خونس صاحب نه روستو په سوات بنیر کښې لوئ شهرت ئے موندلے وو. چه انګریزان دَ هغه دَجهاد دَ اعلان نه خبر شول. نو دَ مردان ګائیډ پلټن ته ئے حکم اوکړ. چه شپه په شپه دَ بټ خیلے خواته په امان دره باندے قبضه اوکړی. بل خواته ملامستان المعروف "سرتور فقیر" په ۲۶ جولائی ۱۸۹۷ء دَ لنډاکی نه روان شه. دَ سوات مشهور کلی تهانه ته راغے. لږ شان لښکر ورسره وو. چه تهانه ته را رسید. ګنړ غازیان ورسره نور ملګری شوی. په اله ډهنډ. ډهیری. بټ بانډ کړاغے. دَ امان دره په ګائیډ پلټن ئے غم غرض اونه کړ. په بټ خیله کښې ئے صلاح اوکړه چه په پیرکلی ورشی او په مالاکنډ حمله اوکړی. دَ مالاکنډ پولیټکل ایجنټ میجر ایچ. اے. ډین فوځ ته حکم کړے وو. چه دَ سرتور فقیر لښکر را اورسی نو سمدستی پرے حمله اوکړئ ختم ئے کړئ. لیکن سرتور فقیر دَ غازیانو لښکر دَ شپے نهه بجے په مالاکنډ را واچاوه. دَ فرنګی په لښکر وار خطائی راغله چه ترڅوئے ځان تیار ولو دَ هغے پورے دَ سکهانو پلټن ته ئے حکم اوکړ چه په غازیانو ورشی. سکهانو دَ جے ست سری اکال چغے پورته کړے. مګر سکه سپاهی په لا چغه نه وه اوکښلے چه ساه به ئے ختلے وه. غازیانو په یوه حمله دَ سکهانو پلټن صفا کړه. ګوره فوځ را مخکښے شه. لاس په لاس جنګ اوشه. دَ دواړو غاړو نه بے شمیره ځوانان مړه او ژوبل شول. غازیانو په کوارټر ګارډ قبضه اوکړه. چه څو مړه وسله او میګزین وو هغه ئے لوټ کړ. ټوله شپه جنګ اوشه. تر سحر صبائی پورے جنګ وو دَ انګریزانو مخپله وسله ئے انګریزان ورا ته کړل. سحر دَ مړو او زخمیانو شماره اوشوله. فقط ۷ غازیان شهیدان په میدان کښے پراته وو.

او د انګریزانو یو کرنیل یو میجر یو لفټین قتل شوی وو. یو کپتان او یو لفټین ئې زخمي شوی وو. او د دغې نه علاوه ۲۱۵ سپاهیان ئې مړه او یو زر یو دیرش سپاهیان ئې زخمي شوي وو.

د دې واقعې نه روستو په ۳۱ جولائی ۱۸۹۷ء فرنګیانو دا اعلان جاري کړ.

"ګورنر جرنل به اجلاس کونسل یو لښکر ته د حملې کولو اجازت ورکوي چه د دغه لښکر نوم به "مالاکنډ فیلډ فورس" وي. چه مقصد ئې په مالاکنډ او ورسره ملحقه فوجي ځوکو باندې قبضه کول. او که ضرورت پېښ شي د خواؤ شا قبائلو په خلاف ضروري کاروائي کول دي."

مسټر چرچل چه روستو د برطانیه وزیراعظم وو. هغه په دې "مالاکنډ فیلډ فورس" کښې کپتان وو. او د لاهور پنجاب د "سول اینډ ملټري ګزټ" اخبار نامه نګار وو. هغه د دې جنګ د حالاتو او چشم دید واقعاتو په باره کښې د "مالاکنډ فیلډ فورس" په نوم یو کتاب لیکلې دې. او مونږ ه د دې جنګ اکثر واقعات د هغه په حواله دلته درج کړي دي.

په ۳۱ جولائی ۱۸۹۷ء د دې مذکوره لښکر په نوښهر چاؤنړۍ کښې غونډه اوشوه. جنرل بنډن بلډ ئې سپه سالار مقرر شه. د ۳۱ جولائی په شپه بیا قبائلي غازیانو د چکدره په قلعه حمله کړې وه. دوه انګریزان افسران ۲ اسپاهیان ۲۶ آسونه ئې وژلي وو. په یکم اګست ۱۸۹۷ء بیا غازیانو حمله کړې وه. د چکدره قلعه ئې قبضه کړې وه چه په ۲ ر اګست ۱۸۹۷ء د فرنګي فوځ ورا ورسیده.

جنګ شروع شه. دَ فرنګی لښکر په امان درّه قبضه اوکړله غازیان په شا شول. په چکدره جنګ شه. غازیان په چکدره قلا پرانه وو. انګریزانو قلا بند کړل. دَ سکهانو پلټن را اوګرځیده دَ بټخیله په کلی ئے حمله اوکړه. دَ کلی غازیانو مقابله اوکړه ئے شمیره سکهان ئے قتل کړل دے غزاله دَ سوات. باجوړ. اتمانخیل نه علاوه دَ ضلع مردان دَ علاقه "بابزئی" او دَ ضلع پیښور دَ علاقه تنګی غازیان هم راغلی وو.

دَ سوات رانی زئی بے شمیره کلی انګریزانو تالاکړل. وران ئے کړل. په ۱۶ اګست ۱۸۹۷ء ئے په تهانه کلی حمله اوکړله. بیائے "برسوات" ته مخه کړله. په لنډاکی ئے حمله اوکړله. غازیان ورته مورچه شوی وو. توله ورځ جنګ اوشه. دَ فرنګی فوځ ئے په شا وتښتا وه جرنل بلډ شرمنده شه په ۱۷ اګست ئے نوے حمله اوکړه په لنډاکی دویم جنګ اوشه. دَ انګریزانو مشهور جرنیل میک لین پکښے قتل شه په دے ورځ دَ لنډاکی نه را ډیغرا په جلاله جنګ شوے وو. دغلته غازیانو ورسره لوبه اوکړه یو حَل ئے ماتے اوکړه فرنګیانو دا خیال اوکړه چه غازیانو شکست اوکړ دَ مورچو نه را اوتل. چه ناسا په پړے غازیانو پیرا اوکړ. دَ فرنګی فوځ په مخه کړ. قتلان ئے پړے کنی کړ. کوتره ئے کړل. بیا په شا شول. په لنډاکی مورچه شول په لنډاکی بل خونړے جنګ اوشه. دغلته غازیانو یو انګریز افسر لفټننټ ګرینوز قتل کړ. غازیانو دَ هغه لاش پورته کړ وړلو ئے، انګریزی سپاهیان ورغلل چه هغه لاش غازیانو نه واخلی. دَ ګایډ پلټنے دَ مردان په میس (طعام خانه) کښے یو تصویر دے دَ لفټننټ کرنل لاش غازیان یوخوا را کاږی. او دَ فرنګی سپاهیان

ئې بل ځوا را کاږی. دا جنګ اوږد شه په ۱۹ اګست دَ فرنګی فوځ منګوره ته اورسیده کلے ئې تالا کړ. بیا را وپس شول. په ۲۳ آګست بری کوټ ته ورغلل. بیا واپس چکدره ته راغلل. او په باجوړ دَ حملے تابیاسے اوکړه. او دا پالیسی ئې جوړه کړه چه په نوم قبائلی یه محنه درځی هغه وژنی.

دغه ظالمانه او وحشیانه حمله وه په مخکښے روان وو. دَ دیرخان محمد شریف خان ئې ملګرے وو. غازیانو ته ګرانه پیښه وه. په ۷ ستمبر دَ فرنګی فوځ دَ "کوسم ډاک" ته اورسیده. دَ دے مقام شمال ته وادئ جندول او جنوب ته دَ اتمان خیلو علاقه ده دَ فرنګی فوج دَ "رودِ باجوړ" په غاړه مخ په بره روان وو. او دَ جنوب او شمال طرف ته غرونو نه پرے غازیانو حملے کوؤلے. په ۱۲ ستمبر توره غونډئ ته اورسیدل دلته دَ تاریخ عظیم جنګ اوشه. دغلته ورله دَ باجوړ قبائلو لاره ورکړه چه دَ فرنګی فوځ دَ "رودبار باجوړ" منځ ته تیرشی نو په آسانه به ئې په ګیره کښے واخلی. دَ فرنګی فوځ دَ "شمَس غره" په جنوبي لمنو کښے وړاندے شه. جار ته اورسیده. ورپسے دَ خار میدانی سلاقے ته شه او غازیانو دَ څلور واړو طرفونه ګیر کړ. دَ انګریزانو فوج په "درهٔ بابوقره" او دره وتلئ هم حملے اوکړلے. چه تنګ شه نو صلح ته جوړ شه. سوال ئې اوکړ چه یو کلے راکړئ چه هغه وران کړو نو د فرنګی به څه عذر اوشی. او بیا لار راکړئ چه خپل فوځونه دَ باجوړ نه اوباسو دَ باجوړ غازیانو دغه خبره اومنله. یو کلے ورانولو له ورکړ چه دَ هغے نوم "باوټ" وو. ټول تال خوارلس کورونه وو. انګریزانو وران کړ. په بله ورځ دَ لاشور په

«سول اینډ ملټری ګزټ» اخبار کښې یو سرکاري خبر چاپ شه. چه انګریزي فوځونو د باجوړ په جنګ کښې دوه سره عظیم الشان ښهر وران کړ چه ځنې څوارلس دروازے وے. او د ښهر نوم بلوټ وو. مسټر چرچل د دغه اخبار نامه نګار وو. او دا سے ښوونې دروغ ئے خپل اخبار ته لیږل. د دے نه د انګریزانو مصنفانو د نورو کتابونو د غلط بیانئ اندازه دے اولګولے شي.

د باجوړ اوس د فرنګي د فوځ دویم درخواست او منلو چه د فرنګي په فوځ به نورے حملے نه کیږي. د ناوګئ او مهمند و د کمالي په لاره دے لاړ شي. غرض ئے دا وو. چه مهمند غازیان هم بیرے خپل ایمان تازه کړي. په ۱۴ ستمبر فوځ ناوګئ ته اورسیده. دلته ورته خبر را اورسیده چه هډے ملا صاحب د یو لوئ لښکر سره ورته په لاره کښې پروت دے. په فرنګیانو لړزان ګډ شه. د مهمند و غازیانو او د هډے ملا صاحب د لښکر د مقابلے تاب ئے نه لیده. ویره پرے راغله چه که دغه غازیانو حمله اوکړله نو د فرنګي یو فوځئ به هم ژوندے پاتے نه شي. د شپے د شپې بیائے د "دودبار باجوړ" لار اونیوله. جار ته ئے تخته کړه. دلته د راله د دره بابوقره غازیان په "رمبت" او "پښت" راغلي وو. غازیانو پرے حمله اوکړه د فرنګي فوځ د جار په کنډو. ختانو او خار خوړ وکښې سرونه پناه کړل او چه کوم یو به سر ښکاره کاوه د هغه د سر نه به ګولئ وتلے وه. د ټول شپه او د صبائے تر ۳ بجو پورے جنګ اوشه. دوه انګریزان افسران یو دیسي افسر او بے شمیره فوځیان او قچرے مړه شول. صباله چه رڼا اولګیده. د غازیانو پته نه وه. د فرنګي فوځ روان

چه څه منځ لاړ. دمه ئې کوله. آسونه ئې اودرولی وو. یو ناساپه قبائلی غازیان راپیدا شول. په آسونو سواره شول. په هوا شول دَ فرنګی فوځیان حیران دریان پاتې شول. انګریز واپس راروان وو. قبائل ورپسې وو. مزید ارجنګ وو. قبائیلو دا کار شروع کړ. چه بیا به ئې کوشش کولو چه فرنګیان افسران ژوندی اونیسی. ډاکټر هیوز نوشې یو انګریز ئې ژوندے اونیولو چه بیائې دوستو هیڅ پته اونه لګیده. په دغې فرنګیان لاوارخطا شول. ځای په ځای دَ فوځ کمپنئ دَ غازیانو په ګیره کښې وے. دَ ټولونه بدحال دَ سکهانو فوجیانو وو. ټوپک نوره وسله هرڅه به ئې اوغورځول مګر دَ خلاصی درک به ئې نه وو.

په ۱۷ ستمبر دَ باجوړ دَ تاریخ لوئ جنګ اوشه. په هغې کښې نهه انګریزان افسران څلور دیسی افسران او تقریبًا څلور زره فوځیان ئې مړه شو. یو لوئ جرنیل ئې پکښې هم مړ شه. انګریزانو دَ شرمه نه دَ دغه جرنیل نوم نه دے ښودلے. په میدان کښې دَ فرنګی دَ فوځیانو او قچرو دَ لاشونو لوئ انبار پروت وو. ماښکښې شپې له فرنګی فوځ ته حکم اوکړ لویه کنده ئې اوکنستله سرې خره قچرې ګډ وډ په هغه کنده کښې پناه کړل. کنده ئې آواره کړه چه غازیانو ته دا ځائ معلوم نه شی او دَ مړو بے عزتی اونه کړی.

خبره دا وه چه انګریزان چه دَ "ناوګئ" نه دَ شپې په تیښته راغلی وو چه دَ باجوړ نه ځان اوباسی. باجوړ وورته دَ څار سره لاړ نیولے وه یا هر تللو ته ئې نه پریښودلو. بیرته ئې راګرځولے وو. او بیا په رود باړ او خواوشا درو کښې په جنګ اخته وو. او کشاله ورته داپیښه وه چه دَ فرنګی فوځونو به دَ دوویار دَ دا که میدان نه یوې

درے ته مخه اوکړه چه غازیان رالاندے کړی دَ شا دَ طرف نه به دَ بلے درے غازیانو پرے حمله اوکړه اوچه دوئ به هغه خوا مخه کړه دَ بل طرف نه به دَ بلے درے غازیان پرے راغلل۔ اوپه دغه شان ئے دَ فرنگی نه وارخطا کړے وو۔ غازیان به ۲۰۰ په لاسونو وژلل او دَ فرنگی فوځیان به مړه کیدل۔ آخر دا چه فرنگے ډیر تنګ شه۔ نو په ۱۱ اکتوبر ئے ځان له دَ اورواوبو پوزه جوړه کړه۔ او دَ ډیرو زیانډو او شرمیدلو نه واپس مالاکنډ ته راغے۔ او مسټر چرچل او لیکل چه دَ باجوړ په جنګ کښے چه څومره ډیر فوجی افسران او فوځیان مړه شول هغه دَ هیریدلو نه دی۔

# نامور غازیان

دَ قبائلی علاقے هغه نامور غازیان چه دَ سنه ۱۸۵۵ء نه تر سنه ۱۹۳۰ء پورے په اتیا کاله زمانه کښے ئے دَ انګریزانو په خلاف په ډکه۔ میچنئ۔ شبقدر۔ پړانګ غار۔ آګره۔ مالاکنډ۔ چکدره۔ شکو کس کوسم۔ رمبت۔ وتلئ او ناوګئ باندے غزاګانے کړے دی، په هغوئ کښے دَ یو څو مشهورو غازیانو نومونه دلته یادول مناسب معلومیږی۔

## دَ تبئ جان صاحب

تبئ دَ یو کلی نوم دے۔ دَ سلارزو په علاقه کښے دَ باجوړستانه دارپکینے آباد دی په سنه ۱۸۵۷ء کښے چه په میچنئ باندے دَ کونړ دَ سید احمد باچا صاحب په مشرئ کښے غزا کیدله نو دَ تاریخ مخزن پنجاب بیان دے۔ چه په دغه غزا کښے دَ باجوړ دَ تبئ جان صاحب هم موجود وو۔ دَ باجوړ غازیان ورسره وو۔ دَ شبقدر مورچے

ته دَ باجوړ غازیان سیلمه وو. او دغه مورچه ئے وهلے وه.

## سید فقیر جان

دَ پیربابا دَ مشرځوی میاں مصطفیٰ نوم وو. دَ هغه دَ مشرځوی میاں عبدل نوم وو دَ هغه دَ مشرځوی میاں ساقی نوم وو. دَ میاں ساقی زیارت دَ باجوړ په علاقه جندول کښے په میاں کلی کښے دے. دَ میاں ساقی دَ پو ځسی نوم شاه نظام وو. دَ دے شاه نظام په ځسو کښے سیّد فقیر جان هغه بزرګه هستی وه چه دَ خان عمراخان ښے لاس وو. او دَ باجوړ په ټولو غزاګانو کښے ئے ښه سړانه ښکاره کړے وه.

## دَ باړی ملا صاحبؒ

دَ باړے ملا صاحب نوم دَ باجوړ په بزرګانو غازیانو کښے زیات مشهور دے. دَ ده اصلی نوم امیر سید وو. چه په "امیر سید جان" به یادیده. په قام سلارزی وو. په هغے کښے سین خیل وو. په هغے کښے یار محمد خیل وو. دَ درهٔ بابو قره دَ لوئ ګرام دَ علاقے په لیتئ نومے کلی کښے پیدا شوے وو. دینی علم ئے حاصل کړ. دَ حضرت مولانا نجم الدین صاحبؒ دَ هډے نه ئے لاس نیوه او کړه. ماذون شه. دَ "درهٔ چارمنګ" صیدا شاه نومے کلی ته راغے دلته آباد شه. دَ بزرګئ شهرت ئے اوشو او مر معروف به ئے کُولو دَ خیل پیر هډے ملا صاحب په ژوند دَ هغه سره په ټولو غزاګانو کښے شامل وو. چه په سنه ۱۹۰۲ء کښے هډے ملا صاحب وفات شه. بیا دَ باجوړ دَ غازیانو رهنمائی به ده کوله. په سنه ۱۸۹۷ء کښے چه انګریزان باجوړ ته ننوتلی وو. او دَ باجوړ دَ ښارنه تیر شول دَ ناوګئ سره په "دربنړو" نومی ځائی پراته وو. نو باړے

ملا صاحب فقط دَ یو دوه طالبانو سره دَ فرنګی په کیمپ دَ شپې ورختلے
وو. او یو لوئ انګریز افسر ئے وژلے وو. هم په دغه کال دَ لکرو په غزا
کښے ورپسے څخ کال له دَ شبقدر په محاذ. دَ پنډیالئ په محاذ او دَ
شبقدر سره دَ سوربانړ په محاذ دَ باجوړ دَ غازیانو مشری ئے کړے
وه. په اسپه به سور وو په غازیانو به ګرځیده او چه کومه مورچه
به سخته وه هغے ته به ئے ځان رسولو. بهادر میړه او توریالے
غازی وو. روحانی پیشوا وو مګر دَ خلوتخانے بزرګ نه وو بلکه
دَ میدان جهاد سپاهی وو. دَ باجوړ دَ غزاګانو په تاریخ کښے دَ
بهادرئ نوم به ئے تل یادیږی.

# دَ چکدره غزا

په سنه ۱۹۱۵ء کښے دَ سوات قبیلے دَ "سنډاکئ ملا صاحب" دَ
بیرغ لاندے راجمع شولے. سنډاکئ ملا صاحب دَ یوسفزو په
صلاح مشوره باندے دَ امازی دَ علاقے دَ ستهانه نومے کلی دَ
سیدانو دَ خاندان دَ مشهور مردِ مجاهد سید اکبر شاه بادشاه
صاحب وراره سید عبدالجبار شاه صاحب را اوغوښتلو او دَ
سوات بادشاه ئے کړو. هغه دَ بادشاه کیدلو نه پس دَ
سواتیانو یوه لویه جرګه سیدو شریف ته راوبلله دَ دغے جرګے
په صلاح مشوره ئے دَ سوات دَ پاره یوه نظام نامه جوړه کړه.
دَ دغه نه روستو ئے سنډاکئ ملا صاحب دَ سوات قاضی القضاة
مقرر کړو. دَ سنډاکئ ملا صاحب خپل نوم احمد جان وو دَ اباسیند
کوهستان دَ سنډاکئ نومے کلی اوسیدونکے وو. ځکه په دغه نوم
مشهور وو. لوئ عالم وو. صوفی. حاجی. مجاهد وو. دَ جزیره نمائے

عرب سیاحت ئے کړے وو۔ په الجزائر۔ مراکش۔ مصر کښے اوسیدلے وو۔ دَ سید جمال الدین افغانی دَ تعلیماتو نه متأثر وو۔ چه قاضی القضاة مقرر کړے شه هم په دغه کال سنه ۱۹۱۵ء ئے دَ انګریزانو په خلاف دَ جهاد اعلان اوکړو۔ دَ سوات بُنیر خلق ورسره شول۔ غازیانو دَ چکدره او مالاکنډ په قلاګانو حملے اوکړے۔ دَ صوبه سرحد چیف کمشنر سرجارج روس کیپل ئے مقابلے له بچ پله ورغے۔ خونړی جنګونه اوشول دَ غازیانو سره دَ وسلے کمے وو۔ واپس شول۔ دا دَ مالاکنډ آخرنئ غزا وه۔ دَ دے نه روستو په سنه ۱۹۳۰ء په آګره غزا شوے وه دَ هغے حال مخکښے بیان شویدے۔

---

# شپږم باب

# دَ

# بشېراو امازي

# غزاګانې

# دَ بُنیر او امازی غزاګانې

مونږ په دې باب کښې چه دَ کومو غزاګانو تذکره کول غواړو هغه مو دَ "بُنیر او امازی غزاګانې" په سرخط باندې یاد کړې.
اګرچه واقعات دادی چه دَ دې علاقو دَ غزاګانو ابتداء دَ مغ دره نه شوېده چه دَ خدو خیلو په علاقه کښې دې. دا علاقه دَ مهابن دَ ګدون قوم دَ چمله او بُنیر په پوله ده. دغه شان په تاریخی هم غزا شوې وه چه دا کلې تن ورځ دَ مردان په ضلع کښې دې. او دغه شان دَ حسن زو په علاقه هم غزا شوې وه چه دا علاقه دَ امازو په پوله ده. او دغه شان دَ مهابن په درو کښې او دَ ګدون قوم په علاقو باندې هم غزا شوې وه. لیکن هر کله چه په دې اکثرو غزاګانو کښې هندي مهاجرین شامل وو. چه دَ هغوئ اولنې امیرالمؤمنین دَ امازی دَ علاقې دَ ستانه کلی سید اکبرشاه بادشاه صاحب وو. بیا مولوی ولی محمد مولوی عبدالله مولوی عنایت الله او سید مبارک شاه ئې امیران وو. او مرکز ئې دَ امازی دَ علاقې ستانه وه. په دې وجه مونږه دا ټولې غزاګانې دَ امازی غزاګانې شمار کړې. په دې غزاګانو کښې اولنۍ غزا دَ مغ دره وه او لوئې غزاګانې پکښې دَ "قتل ګړه غزا" او دَ "سرکاوی غزا" وه. دا علاقه چه دَ ۱۸۲۶ء نه تر ۱۹۱۲ء پورې ۸۶ اته شپیته کاله پرې فرنګیانو کوم جنګونه کړي دي. مونږه په ډیر اختصار سره دَ دغه جنګونو او غزاګانو واقعات دلته درج کوو.

## دَ مُغ دره غزا

په ۱۸۲۶ء کښې چه لا په صوبه سرحد کښې دَ سکهانو حکمرانی موجوده

وه. او د لاهور د فیصلې مطابق انګریز اسسټنټ ریزیډنټ او فوجي افسران
د انتظام د پاره دلته راغلي وو. یوه نوې پلټن سره د کانډه پلټن
په نوم جوړه کړې وه. او د دې کمانډر هیري لمسډن نومې انګریز
وو. د دې پلټنې د جوړېدلو اوومه میاشت وه. او د ضلع مردان
د کالوخان په کلي پرته وه. چه حکم ورته اوشه. چه د خدو خیلو
په علاقه کښې د پنجتار په غرونو کښې مخ درّه نومې کلي باندې حمله
اوکړي. د سکهانو رسالې ورسره کړه چه هغې ته روکو دراوالا
معلومه وه. ځکه چه په پنجتار باندې د سید احمد شهید برخلاف
او ورپسې د پنجتار د خان فتح خان او د هغه د ځوئ مقرب خان په
خلاف ئې په دغه زمکه جنګونه کړي وو. دې فوج ټوله شپه مزل
اوکړو. د سحر د رڼا خورېدلو نه څه ئې شان ورپاندې داسې تنګې
درې ته اورسیدل چه په هغې کښې فقط یو کس تیرېدې شي. کانډه پلټن
او د سکهانو پلټن په دغه تنګه دره ورننوتل. په کلي ورواوختل
د کلي ملک ئې اونیوه. درې سوه څاروي ئې راپه مخکښې کړل.
را واپس شول. د کلي چه ورپسې را اووتله د دغه تنګې درې
په اړخونو کښې ئې د ګرو سره او مزل سکهان د تیښتې مرلي وو.
اکثر خلاص شول. د کانډه پلټنې فوجیان پکښې زیات مړه شول.
د مخ درې دا واقعه د هغه جنګونو په فهرست کښې اولنئ واقعه
وه. غازیان ئې بیدار کړل. او بل خوا د کالوخان. نارنجي.
نوي کلي مسلمانان ئې راپورته کړل.

## د بابوړو غزا

کرنل جارج لارنس چه په پیښور کښې اسسټنټ ریزیډنټ

مقرر شوے وو. دَ رارسید لو سره ئے دَ سکهانو دَ فوځ یو بریګیډ
دَ ځان سره واخیست (یو بریګیډ په هغه زمانه کښې به پنځه
زره فوځ وو) دَ مالیئے دَ وصول کولو دَ پاره دَ بُنیر په مغربي سرحد
دَ بابوزي یوسفزي قام په کلي ورا وختو. دَ هیري لمسهان په
کمان کښې دَ کاتیډ پلټنې فوځیان هم ورسره وو. دا حمله په
سنه ۱۸۴۶ء کښې شوے وه. دَ کاتیډ دَ مته کلي نه مجاهدین تاؤ شوه
په غره باندے ور اوختله دَ جنوب دَ طرف نه ئے حمله اوکړه او
دَ سکهانو فوځ په آواره باندے دَ میان خان کلي په لاره حمله اوکړه
غازیان دَ مجاهدینو نه خبر شوي وو. خونړے جنګ اوشه. بے
شمیره سکهان دَ بابوزو په کنده کښې کوتره شول. غازیانو دَ
سنګاؤ کلي ته په شا شول او چه دَ سکهانو فوځ ئے دَ غره لمنے ته
په ځان پسے راوخیژاوه نو بیا پرے راواوګرځیدل اتمان خیل غازیان
ورله رارسیدلي وو. لاس په لاس جنګ اوشه. دَ انګریزانو
فوځ زیانمنے واپس شه.

# دَ حسن زي غزا

په جنوري سنه ۱۸۵۳ء کښې انګریزانو دَ کرنل میکسن په کمان کښې په
حسن زي قبیله باندے حمله اوکړه. حسن زي دَ اباسیند په غاړه
پراته دي. دَ هزاره ډپټي کمشنر میجرایبټ ئے زغلولے وو. کرنل میکسن
دَ پیښور کمشنر وو. دَه پرے دَ پیښور دَ طرف نه حمله اوکړه. دملکا
هندي مهاجرین دَ حسن زو امداد له راورسیدل. جنګ اوشه انګریزان
مخکښې لاړل دَ مجاهدینو مرکز ملکا ئے اوسیزلو. کله چه اوخت وختیل دَ جنګ سیلا
له وو اوورسیدل. تو دجنګ اوشه. دَ انګریزانو فوجونه واپس شول.

# د ناړنجي غزا

د ۱۸۵۳ء نه تر ۱۸۵۷ء پورے چه د بنير په محاذ د انګريزانو اوغازيانو ترمنځه کوم وړے وړے غزاګانے شويدي مونږ ه د اختصار په وجه د هغے بيان پريښودو. په ۱۸۵۷ء کښے چه په تاريخي اعتبار سره کوم دوه غټ واقعات پيښ شوي وو. او د هغے تعلق د بنير د غزاګانو سره دے. هغه دا دوه واقعات دي:-

**اولنۍ واقعه**

اولنۍ واقعه دا پيښه شوله. چه په تاريخ ۱۱ مئي ۱۸۵۷ء د تاربرقي په ذريعه پيښور ته خبر راورسيد چه په ميرټه کښے د هندوستاني پلټنو د جنګ آزادۍ اعلان اوکړو. او ټول انګريزي افسران ئے قتل کړل. دغه وخت په پيښور ښهر کښے (۲۸۰۰) ګوره فوج او (۸۰۰۰) هندوستاني فوج وو. او (۱۹) توپونه ورسره وو. په دے کښے د مردان په مقام د ۵۵ نمبر هندوستاني پلټنے سپاهيانو بغاوت اوکړو په دے پلټن کښے ټول (۱۳۷۰) سپاهيان وو. فقط (۱۲۰) پاتے شول (۱۲۵۰) دولس نيم سوه د مردان چهاونړۍ نه راووتل. بنير ته لاړل د مجاهدينو غازيانو سره ملګري شول.

**دويمه واقعه**

هم په دغه ۱۱ مئي ۱۸۵۷ء د سوات او بنير د علاقو د مسلمانانو بادشاه سيد اکبر شاه باچا صاحب وفات شه. د تاريخ مخزن پنجاب جلد ۲ صفحه ۵۱۵ الفاظ دي

"اس وقت کہ دہلی میں غدر برپا ہوا تھا حکومت برطانیہ کو بسبب دشمنی سرحدی علاقہ سوات بہت خیال تھا کہ وہ وحشی قوم ایسے نازک وقت میں اس طرف آکر خلل انداز انتظام سرکار کے ہوں۔ مگر وہاں ایک ایسا اچھا اتفاق پیش آیا۔

کہ ہزارہ، بنیر اور سوات کے لوگوں نے ایک سید جس کا نام سید اکبر شاہ تھا اپنا بادشاہ بنا کر دسواں حصہ اپنے پیداوار کا اس کو خراج دینا منظور کیا تھا۔ وہ بادشاہ مورخہ ۱۱ مئی ۱۸۵۷ء کو کہ اسی روز دہلی کے فساد کی خبر پشاور میں پہنچی تھی مر گیا اور سید مبارک شاہ اس کا بیٹا باپ کا جانشین ہوا اور اس کی سازش سے سپاہی نمبر ۵۵ پلٹن کے قلعہ مردان سے بھاگ کر اس کے پاس چلے گئے "۔

دَ دے واقعاتو نه روستو چه دَ هندوستانی پلټنی فوجیان دَ هندی مجاهدینو سره ملګری شول۔ دَ مجاهدینو امیر مولوی عنایت الله ورسره شه۔ پنجتار ته راغلل۔ خان مقرب خان ورسره یو ته شه۔ میر باز خان نومے یو قبائلی سردار ئے په تول اتمان زئی کښے اوکرځاوه دَ صوابئ تحصیل په تولو کاو کښے دَ غزا چغه پورته شوله۔ په نارنجی راجمع شول۔ دَ انګریزانو فوځ دَ میجر وان په کمان کښے حمله اوکړه دَ انګریزی فوځ سره دوه لوئ توپونه هم وو۔ ګوله باری ئے ګوله۔ میر باز خان پکښے شهید شه۔ غازیان پرے راغلل۔ میجر وان ئے مر کړ۔ دَ انګریزانو نور فوځ دَ کپتان جیمز په کمان کښے راغے بل جنګ اوشه۔ ورځ نیمه جنګ قلار وو۔ دَ دهلی دَ جنګ آزادئ (غدر) نوی نوی خبرونه راتلل په خلقو کښے جوش زیاتیده بل خوا ته دَ فرنګیانو دَ فوځ نه نور هندوستانی سپاهیان راتښتیدل او دَ غازیانو سره ملګری کیدل۔ کپتان جیمز بیا دَ یو لوئ فوځ سره دوباره حمله اوکړه۔ داځل شلور غټ توپونه ورسره وو په نارنجی بیا جنګ اوشه۔ په دے غزا کښے شپیته غازیان شهیدان شول مولوی عنایت الله چه دَ مجاهدینو امیر وو هغه بیا تیاری اوکړله۔ بیائے په فرنګیانو حمله اوکړه۔ کپتان جیمز بیا

مقابلې له ورغے غازیانو په ډیر جرأت سره او په ډیرلوئ تعداد کښې د فرنګی په فوځ حمله اوکړله. سخت جنګ اوشه. انګریزی فوځ ئے اوزغلولو لیکن انګریزی فوځ بیا راغوګرز یدلو بیا ئے حمله اوکړه. فرنګے ئے بیا په شا کړه. په دے مقابله کښې ډیرش غازیان شهیدان شوی وو او د فرنګی د فوځ دیارلس سوه فوجیان قتل شوی وو. دا جنګونه چه د ۲ جولائی ۱۸۵۷ء نه شروع شوی وو. د اکتوبر ۱۸۵۷ء پورے جاری وو. او د تحصیل صوابۍ په نارنجی. مات خوړ. ډمے. بنګزاده. اسوټا. شیخ جانا. او نوی کلی کښې دا غزاګانے شوے وے. خاص په نارنجی د دے غزاګانے شوے وے. د نارنجی کلے قلاګانے او بر جونه ئے د ۲۱ جولائی نه تر ۳ اکست ۱۸۵۷ء پورے په هاتیانو ورانې کړی وو. د دے جنګونو په حقله سرهربرٹ ایډورډس لیکی:

"چه که په دے وخت سید اکبرشاه بادشاه صاحب ژوندے وے نو د ۱۸۵۷ء د جنګ آزادئ په موقع چه د سوات بنیر خلق را پورته شوے وو. د سید اکبرشاه بادشاه صاحب په قیادت کښې به غازیانو هغه څه کړی وو. چه د جنګ نقشه به څه نور څه وه."

په دے غزاګانو کښې دینجتار د مقرب خان ورور مد دخان شهید شوے وو. او د آسوټا دوه غازیان پردل خان او آموخان چه فرنګیانو ژوندی نیولی هغه ئے پهانسی کړی وو۔

---

# دَچنګلئ غزا

دَ دے غزا کیدلو واقعه داسے پیښه شوے وه چه دَ اپریل ۱۸۵۸ء سنه په اولو ورځو کښے دَ مجاهدینو مشر مولوی عنایت الله وفات شه. نو دَ هغه نه روستو مولوی عبدالله ئې مشر شه مجاهدین دَ پنجتار نه چنګلئ ته تلی وو. دَ دغے نه وړاندے دا واقعه پیښه شوے وه. چه په اکتوبر ۱۸۵۷ء سنه کښے دَ مجاهدینو مشر مولوی عنایت الله او دَ پنجتار خان مقرب خان دَ شیخ جانا دَ غازیانو په امداد دَ مردان په اسسټنټ کمشنر مسټر هورن حمله کړے وه هغه ترینه بچ شوے وو. او بیائې دَ مردان چهاونړئ په میګزین هم حمله کړے وه. لیکن کامیاب شوی نه وو. دَ انګریزانو په زړه کښے مقرب خان ته او خاص طور مجاهدینو ته هغه قهر وو. هرکله چه دَ هندی مجاهدینو امیر مولوی عنایت الله وفات شه نو فرنګیانو په پنجتار او چنګلی دواړو باندے دَ حملے تجویز جوړ کړ. چه بدل ترینه واخلی.

چنانچه په ۲۳ اپریل ۱۸۵۸ء سنه په نوښهره باندے ئې لښکر جمع کړ. لفټننټ کرنل ایډورډس راغے په سلیم خان ئې پړیوت وړلے په ۲۶ اپریل دَ نوښهرے نه نور فوځ را اورسید ه. دَ طوطالئ خلق محض په دے چه دَ مقرب خان سره ئې ذاتی وراته وه دَ فرنګی دَ فوځ مَلګری شول چه دَ فرنګی دَ لښکر په زور مقرب خان ګرفتار کړی. مقرب خان دَ خپلو مسلمانانو رونړو مقابله کول مناسب او نه ګنړل کلے ئې خوشے کړ.

فرنگیان ورغلل پښتانه خالي پروت وو هغه ئې اوسېزه. بیا روان شول چنګلئ ته او د سید ل هغه هم خالي پرته وه غازیان غرونو ته ختلي وو. هغه ئې هم او سېزله. بیا واپس شول چه واپس کېدل قدم په قدم پرې غازیان راپاسیدل. ډېر سخت پرې کېدل. د فرنګي نه ئې بیم شمیره مړي او ژوبل اوکړل. حساب برابر شه. د فرنګي فوځ سلیم خان ته راغي. کیمپ ئې اولګاوه.

# د منګل تهانه غزا

هر کله چه چنګلئ او سوزیدله نو مجاهدین منګل تهانه نومې ځای ته راغلي وو. دا د سید اکبر بابا د پیر بابا اولاد پکښې آباد دے. سید عباس پاچا پکښې یار سرے. لوئ غازي د سید اکبر شاه بادشاه صاحب دور عزیز او د طاقت خاوند وو د مجاهدینو کلک ملګرے وو. په دغه وجه د مولوی عنایت الله مرحوم قلا هم په منګل تهانه کښې وه. چه څه وخت مجاهدین منګل تهانه ته غونډ شول نو انګریزانو په ۲۸ اپریل ۱۸۵۸ء په منګل تهانه باندے د حملې کولو تابیا اوکړه د کرنل ایډ ورډس په کمان کښې فوځ د سلیم خان نه روان شه. د طوطالئ دوه سوه اولسی خلق د خپلو ټوپکو او وسلې سره د فرنګي د فوځ سره روان شول داید پښتان د فرنګي فوځ ته د لار ښودلو د پاره روان شوی وو. فوځ لاړ منګل تهانه ته اورسید جنګ اوشه. په ۳۰ اپریل د سید عباس پاچا او مولوی عنایت الله قلا ګانې چه ورانې شوې واپس شول. او مجاهدین لاړل کهایاکیل ته واوړیدل.

# دَ ټوپۍ غزا

په ۱۸۶۳ء کښې دوه انګریزان قتل کړې شول. فرنګیانو اعلان اوکړو
چې دا انګریزان دَ مسلمانانو دَ بادشاه سید مبارک شاه په اشاره قتل
شوی دی. بیا یې په تربیله واخلو. په دې بهانه دَ سید مبارک شاه او
دَ مجاهدینو برخلاف دَ جنګ تیارے شروع کړې. چې مجاهدین تربیله
خبر شول هغوئ ټولو قبایلو کښې کاغذونه خواره کړل چې ټول قبائلي
مسلمانان دَ انګریزانو په خلاف په یو آواز راپورته کړی دغه خط دَ
کرنل ایډمز په کتاب "ستهانه" کښې درج شوی دے چې دَ هغې نه ځما
خوږ دوست مرحوم اله بخش یوسفي په خپل کتاب "یوسفزائي" صفحه ۲۲۳
و ۲۲۴ کښې نقل کړے دے. دَ دے خطونو لیږلو نه پس په ۲۰ ستمبر ۱۸۶۳ء
دَ مجاهدینو لښکر دَ امیرالمجاهدین مولوی عبدالله او ملک عیسی خان
جدون په مشرئ کښې دَ تحصیل صوابۍ په موضع ټوپۍ کښې دَ انګریزانو
په کیمپس فوځ حمله اوکړه. حمله دومره سخته وه چې ګائیډ پلټن
په تیښته ځان خلاص کړو او بې شمیره مړی او زخمیان ئے په میدان
کښې پریښودل. یو انګریز مؤلف په خپل کتاب "پیلټ اینډ میسن رپورټ"
کښې لیکي چې "دا فرار همه ګیر او شرمناک وو" مګر ځو نزه دا خیال دے چې
مسټر پیکټ که په دغه موقع موجود وے نو دَ ټولو نه اول به دے
تښتیدلے وو. لیکن دَ حیرانتیا خبره بله ده. کرنل ایډمز او کرنل پیکټ
خو لیکي چې دَ ګائیډ پلټن فوځیان تښتیدلی وو. لیکن میجر جنرل ینګ
هزبنډ دَ ګائیډ دَ بهادرئ تعریف کوی. چې دوئ نه وو تښتیدلی او دا ځکه
چې جنرل هزبنډ په تیښته کښې دَ ګائیډ دَ ټولو سپاهیانو نه مخکښې تللے
وو. تښتیدلے ئے نه وو. د دوغو ویلو ته ژوندے پاتے شوے وو.

# دَ قتل گړهٔ غزا

دَ "توپي دَ غزا" نه روستو انګريزانو دَ جنګ تيارے شروع کړے - پټ په پټه ئې تيارے کولو. چه تيارے ئې اوکړے نو په درځ دَ سه شنبه (منګل) ۳۰ ربيع الثاني سنه ۱۲۸۰ھ مطابق ۱۳ اکتوبر ۱۸۶۳ء دَ انګريزانو يو مضبوط فوځ دَ جنرل چيمبرلين په کمان کښے صوابئ ته اورسيده دَ ګائيډ پلټن ور سره ملګرے شوه دَ ګائيډ پلټن کمانډر ميجر کينو وو. په دے جنګ کښے چه دَ انګريزانو کومو پلټنو حصه اخستے وه په هغې کښے دَ يو څو پلټنو نومونه دا دي.
۱ نمبر پنجابي پياده پلټن ۲ نمبر پنجابي پلټن ۱۴ نمبر ديسي پلټن ۱۷ نمبر لاټ هائي لينډ پلټن ۱۰۱ نمبر رائل بنګال فيوسيليرز پلټن.

دے فوځ په ۱۸ اکتوبر دَ صوابئ نه دَ شير دره او درېن په لار حمله اوکړله. غازيان ئې مقابلے ته راوتل. دا لښکر په ۲۰ اکتوبر دَ امبيلے درے ته اورسيده دا دره نهه ميله اوږده ده لار ډېره سخته ده چاپئ مقابله او نه کړله. دَ سرکاوڼي کنډۀ ته اورسيدۀ کيمپ ئې اولګاوه دَ ۲۱ اکتوبر په ورځ ئې تيارى اوکړه. په ۲۲ اکتوبر دَ سورو رساله دَ کنډۀ نه ښکته کوزه شوه دَ حملے په طرف ترڅه منځه لاړه. څه معمولي ډزنيم پرے اوشه. نور څوک نه ښکاريدل چه صرف دا رساله واپس راواګرځيده نو کيمپ ته دَ تللو لار ئې نه موندله دَ هر يو کا نړى بوټي خواته غازيان پراته وو. شروع ئې پرے اوکړه. بيا ئې لا ... کړه او چه رساله محکښے شوه. غازيان ورپسے وو. ... په کيمپ ورا وختل. لاس په لاس جنګ اوشه. ... دَ انګريزانو دَ فوج نه ئې وا ... يار کړ ... دى. بنيادم دى که پريان د؟

راپیدا شول. دَ فرنگی په خیال کښې هم دا نه راتلله چه غازیان به دومره
زړه ور تیا وکړی چه په کیمپ به راوخیژی. پوهه شول چه خبره کرانه
ده شپه په شپه ئې پیښور ته جواب اولیږه چه نور فوځ راولیږئ.
دے خواته فرنگیانو خپل امداد له نور فوځ راوغوښتلو بل خواته
دَ سوات اخوند صاحب دَ غزا میدان له راروان وو. دَ سوات. بنیر
دیر. باجوړ. مهمند و غازیان څه ورسره وو. او په څه پسے ئې خپل
مریدان خواره کړی وو. هغه راروان وو. سل بیرغونه په هوا کښې
رپیدل مطلب دا چه دَ مختلفو سل قبیلو او قامونو غازیان دَ خپل خپل
بیرغ دَ لاندے راروان وو. یو بیرغ دَ نواب دیر دَ نیکه اخند زاده غزن
خان وو. یو بیرغ دَ خان عمرا خان دَ نیکه خان فیض طلب خان وو. بل بیرغ
دَ سمت مشرقی افغانستان دَ لال پورے دَ خان سعادت خان وو. یو
بیرغ حُا عبد الحلیم اثر دَ نیکه سید احمد خان وو. او نور ماذونان او
بزرګان وو. لکه شاه بابا. تیملکرے بابا. هلهے ملا صاحب. ملا خلیل
دَ درے حاجی صاحب او داسے نور. دا ټول خلق غزا له راغلی وو. دَ
کفارو مقابله دَ دین اسلام دَ دشمن سره مقابله وه. دَ سوات دَ اخوند
صاحب او دَ مجاهدینو ورانه وه لیکن په دغه موقع په یوه مورچه کښې یو ځائ
جنګیدل.

په ۲۴ او ۲۵ اکتوبر بیا سخت جنګ اوشه. دغه وخت غازیانو ته نوے
امدادی لښکر څوارلس زره پیاده غازیان او شپږ شپیلے سواره راسیدلی وو.
نهه سوه هندی مجاهدین وو. درے زره [illegible] امازی اتمانزی اکدون
[illegible] زاک او اخون خیلو لښکر دسید مبارک ش [illegible] ملی وو. غازیان
زور کښې وو. په فرنګیانو نوے او دبل [illegible] سر
[illegible] ش له دَ خپلو فوجی څوکو دَ حه [illegible]

په ۲۶ اکتوبر دَ مولوی عبدالله په مشرئ کښے هندی مجاهدینو او غازیانو په فرنګی جنګ ودروَلو. چقړه نخته او شوله. دوه پنځوس غازیان پکښے شهیدان شول دَ فرنګی دَ مړو څه شمار نه وو.

په سرکاوئ کښے دَ غره یوه څوکه انګریزانو دَ "ایګل نسټ" په نوم یاده کړے ده. دا څوکئ دَ فرنګی دَ کیمپ نه یو نیم میل لرے وه. دَ غلته دَ فرنګی فوځ پروت وو. غازیان ورغلل نزدے ورته پریوتل. دَ ۲۹ او ۳۰ تاریخ دَ اکتوبر په منځنۍ شپه غازیانو په دغه څوکئ حمله اوکړه. دَ فرنګی فوځ ئے اوواهه ۲۹ ئے ترینه مړه کړل. ۹۲ ئے ترینه زخمیان کړل دَ ۳۰ اکتوبر په سحر غازیانو دغه څوکئ قبضه کړله.

دَ نومبر په اولنۍ هفته کښے سواتیانو دَ انګریزانو په کیمپ حمله اوکړه. دَ دواړه طرفه ځوانانو ښه بهادری ښکاره کړه دَ دواړه طرفه مړی او ژوبله اوشوه. لیکن فرنګیان پکښے زیات مړه شول سخته پرے راغله. پیښور ته ئے دَ نور لښکر راليږلو جواب اوکړ میجر جنرل کاروک په کمان کښے نور امداد ورله راغے.

## دَ باجوړ دَ غازیانو حمله

دَ نومبر ۱۸۶۳ء په دویمه هفته کښے دَ باجوړ دَ غازیانو دویم نوے لښکر راغے. دَ حملے کولو اجازت ئے اوغوښت. په ۱۲ نومبر ئے دَ انګریزانو په یوه فوجئ څوکئ حمله اوکړه چه دَ هغه څوکئ نوم "کریګ" وو. حمله ئے دَ شپے کړے وه تول شپه پرے جنګ اوشه لیکن څوکئ ئے وانخستله په صباله ۱۳ نومبر ئے پرے بیا حمله اوکړه سخت جنګ پرے اوشه فرنګیان ئے اووهل کریګ ئے قبضه کړ. دغه ډیره اهمه څوکئ وه انګریزانو ورپسے توپخانه راوړه بیائے دَ غازیانو نه څوکئ اونیوله. غازیانو پرے بله ورځ بیا حمله اوکړه بیائے فرنګیان اوزغلول. فرنګیانو بیا حمله اوکړله. بیائے

دغه مورچه ادینوله غازیانو پرے بیا حمله اوکړه بیائے فرنګیان اوزغلول.
په دے مورچه دومره غازیان او دومره دَ فرنګی سپاهیان قتل شول
چه غازیانو پرے نوم "قتل ګړه" کیښود ه. انګریزانو دَ دے مقام نوم
"کریګ" یاد کړے دے. مقامی خلق ورته کړاک وائی. او دَ دے تاریخی جنګ
په وجه دَ قتل ګړه په نوم مشهور شوید ے. دَ "قتل ګړه" دَ جنګ حال
دَ "میجر جنرل ینګ هزبنډ" چه څرنګ بیان کړید ے اګرچه خپل صفت
ئے پکښے ډیر کړید ے بیا هم دَ لوستلو دے. لیکی:-

دَ "کړاک" په کمر دَ انګریزی فوج دَ پهره دارو څوکئ وه. دَ دے څوکئ
نه چار چاپیره پر له پسے دَ څو هفتو نه جنګ کیده. دا سے سخت جنګ
چه بیان ئے نشی کیدلے. "کائیډ پلټن" هم په دغه جنګ کښے شامله
وه. دا څوکئ په یو ډیرا وچت او سینه ماتونکی کمر بانده وه. دَ فرنګیانو
دَ کیمپ دَ طرف نه ورته یو تنګ شان ناؤ ورغلے وو. او دَ دشمن (غازیانو)
طرف ته چه کومه ژوره وه هغه دَ لرے غرونو پورے رسیدلے وه.
په دغه زمانه دَ توپک ګولئ به دومره لرے نه شوه رسیدلے.
زیات بټتورو او پیش قبضو وو. او سینه په سینه جنګ به وو.
په دے څوکئ کښے لوئ نقصان دا وو. چه که دا څوکئ دشمن (غازیانو)
له په لاس ورغلے وے نو دَ دے لاندے نزدے دَ فرنګیانو دویمه
څوکئ چه دَ هغے خانقاه څوکئ نوم وو. یواځے په هغے نه بلکه دَ انګریزانو
په ټول فوځ بیا غازیانو (دشمن) ګوله باری کولے شوه. دَ دے څوکئ
دویم نقص دا وو. چه په دے بانده دَ حملے کولو دَ پاره دَ دشمن لاره
آزاده وه هر وخت ئے حمله پرے کولے شوه او امداد ورته هم رارسیدلے
شه. په دے کمر (څوکئ) بانده دَ غازیانو اولنئ حمله په ۳۰ اکتوبر
شوے وه. دا ډیره سخته حمله وه. او په دے څوکئ کښے چه دَ نمبر ۱ پنجابی

پیاده پلټن کوم سپاهیان ووځه یُ مړه کړل څه یُ اوزغلول - دَ
څوکۍ نه لاندے دَ دغه پلټنی نور سپاهیان - دَ گائیډ پلټن او پنځله
میجرکیپز تول پر اته وو - لیکن کمو دو مره سخت دے چه دَ ورځتلو درک
نه وو - چه ورځ شوه نو عـ۳ نمبر پنجابي پلټنی پر ے حمله اوکړه -
توپ خانے پر ے گوله باری اوکړه - بیا میجر کیپز پر ے حمله وروړه
سینه په سینه اوچے برچے داسے سخت جنگ اوشه چه شپیته غازیان
مړه شول - پنځه کم شپیته انگریزی سپاهیان اویوانگریز میجر ډیوډسن۔
په ۱۲ر نومبر دَ باجوړ غازیانو په دے څوکۍ حمله اوکړه۔اندازاً
دوه زره غازیانو به حمله کړے وه - په دغه وخت کښے په کراک څوکۍ
باندے دَ عـ۳ نمبر پنجابي پیاده پلټنی فوځ پروت وو - غازیانو دَ
راتللو سره هغه په گیره کښے واخیست - قتل عام یُ شروع کړ -
په دغه سخته دَ گائیډ زپلټنی ځوانانو ډیره توره کړے وه چه
گیر شوی پنجابي فوځیانو له یُ امداد ورکړ - دَ انگریزانو ډیر فوځیان
مړه او ژوبل شول - لیکن غازیانو مورچه قبضه نه کړے شوه -
په ۱۳ر نومبر دَ باجوړ غازیانو بیا په دغه څوکۍ حمله اوکړله -
په دغه شپه په څوکۍ باندے عـ۱ نمبر پنجابي پلټن پرته وه - دَ
غازیانو حمله دومره سخته وه - او ورپسے دَ غازیانو نور دومره لښکر
راروان وو - چه دَ پنجابي پلټنی فوځیان په لړزان شول - قیصه خرابه
شوله مقابله کول په ځائ پریږ ده - ځان بچ کول ورته گران شول
په دغه سخت وخت کښے میجر راس نومے انگریز افسر را اورسیده دَ
گائیډ پلټن - عـ۱ نمبر پنجابي پلټن او عـ۱۲ دلیسی پلټن سپاهیان یُ
دَ ځان سره کړل چه دَ غازیانو مقابله اوکړی - مگر هغه هم هیڅ اونه
کړے شول - غازیان دومره ډیر وو - چه خالص سیلاب وو - لکه

دَ قحطی ملخانو په کانړو بوتو آوار بهیدل. میجر راس توره او کړه سپاهیان
ئې مړه شول خوده ځان را خلاص کړ.

چه تیصه سخته شوه سرنیول چیمبرلین پخپله را او راندے شه۔
ځکه چه معامله ډیره نازکه شوے وه دَ کراګ نومے کمر په رساسر
باندے دا مورچه که دشمن (غازیانو) له په لاس ورشی لکه چه ورغلی
ده. نوبیا دَ سرکاوی په کنړ وکښے دَ فرنګی دَ فوځ پښے نه شی ټینګیدلے.
چیمبرلین دا سے کار اوکړ چه دَ ع۱۰۱ نمبر رائل بنګال فیوسیلیرز فوځ
ته دَ ګائیډ پلټنې ته او دَ میجر راس فوج ته ئے حکم اوکړ چه سنګینونه
چړا وُ کړئ او په دشمن (غازیانو) حمله اوکړئ. دا حمله اوشوه لاس
په لاس او سینه په سینه جنګ اوشه. ۲۳۰ غازیان مړه شول
۱۵۸ انګریزی فوځیان مړه شول او مورچه انګریزی فوځ اونیوله.
دا حمله په ۱۹، نومبر شوے وه.

په ۲۰، نومبر دَ مازیګر په وخت کښے دَ باجوړ غازیانو دَ کراګ
پیښے قتل ګړه په څوکئ حمله اوکړله. دغه وخت په څوکئ باندے دَ
ع۱۰۱ پلټنې دَ ع۲۰ پلټنې فوج پروت وو. سرجارج لیکی:-

"یہ حملہ بھی غنیم نے ایسی دلیری اور ایسی زبردست فوج کے ساتھ
کیا کہ انگریزی فوج کو پہاڑ پر سے بھگا دیا۔ اور اس میں ان کا جانی
نقصان بھی بہت ھوا"

دَ دغے نه روستو چیمبرلین پخپله دَ فوځ کمان واخیست چه دا څوکئ
دَ غازیانو نه واخلی. دَ ع۱۰۱ نمبر لائټ ھائی لینډ پلټن او دَ ګائیډ
پلټن ئے واخیسته په څوکئ ئے حمله اوکړله. او بیځل بیلے ئے څوکئ قبضه
کړله. لیکن پخپله پکښے سخت زخمی شه. چیغے ئے او وهلے. میجر جنرل ینګ هز
بنډ لیکی (صفحه ع۱۱۲ و ع۱۱۳)

"چٹان کی چوکی کی یہ تاریخ ہے۔ ایک دلیر دشمن نے جسمیں مذہبی جوش بھرا ہوا تھا۔ جمعیت کثیر کے ساتھ چار بار اس پر حملے کئے۔ تین بار اس پر قبضہ کرلیا۔ اور تین بار ہمت مردانہ اور کوشش دلیرانہ سے انگریزوں نے اسے دشمن کے ہاتھوں سے چھڑالیا۔ واقعی وہاں کے لوگوں نے جو اس کا نام قتل گڑھ رکھا ہے درست ہے کیونکہ اس بنجر چٹان کو قبضہ میں رکھنے یا چھڑا لینے میں انگریزوں اور غنیم کے تقریباً ایک ہزار جوانوں کا خون پانی ہوکر بہہ گیا۔"

# دَ سرکاوئ غزا

پورته چه کوم حالات بیان شول دے ته دَ "سرکاوئ غزا" او دَ "امبیله غزا" هم وائی۔ دا جنگ په ۲۰ اکتوبر سنه ۱۸۶۳ء شروع شوے وو۔ او تر ۲۲ دسمبر سنه ۱۸۶۳ء پورے جاری وو۔ او آخر دا چه په دے جنگ کښے دَ فرنګیانو دَخپل حساب مطابق ۹۰۸ فوجیان مړه شول۔ څه په لاس ور نه غلل او ناکامیابه واپس شول۔

دا مبیلے دَ جنګ نه دوستو انګریزانو په بنیر او خواؤشا علاقو کښ جنګونه کړی دی۔ او په هر وار غازیانو ورسره سخت مقابلے او غزاګانے کړے دی۔ چه دلته دَ دغه غزاګانو فقط یو فهرست دَ اختصار په وجه درج کوؤلے شی۔

(۱) په سنه ۱۸۸۷ء کښے دَ کرنل بردم په کمان کښے په بنیر حمله کړے وه۔

(۲) په سنه ۱۸۸۸ء په "کوه سیاه" باندے دَ کوتکی په مقام حمله کړے وه۔

(۳) په سنه ۱۸۹۱ء کښے په کوه سیاه باندے دویمه حمله کړے وه۔

(۴) په سنه ۱۸۹۷ء کښے [illegible] په کمان کښے په بنیر حمله کړے وه۔

[illegible] بنیر حمله کړے وه۔